# لړلیک

## دریم څپرکی

## د ښاروالۍ ځمکپوړ او په انفرادي سلول کې دژوند خاطرات

## څلورم څپرکی

## بیا هم په اوین کې



## پنځم څپرکی

## د قصر په زندان کې

# د«محسن خپرندویه» سریزه

د«مقاومت حماســه» کتاب چې د ملګرې اشرف دهقاني په قلم لیکل شوی، پښتو ژباړه په داسې حال کې خپرېږي چې افغانســتان د څلویښــتو څخه زیاتو هیوادونو تر یرغل لاندې دی او هر هیواد پــه ځانګړي ډول کوښــښ کــوي ترڅو د نوي کهول فکر لــه خپلواکۍغوښــتنې، عدالت، یووالي، مبــارزې... څخــه پاک کړي. په دې شــرایطو کې چې لــه یوې خوا پر خلکو د امریــکا او طالب او داعش او لاســپوڅي دولت ناتار زور اخیســتی له بــل پلوه بیوزلی، بېکارۍ او فســاد خلک د هیواد پریښــودلو ته اړ کړي دي او روڼ‌آندي هم د پیســو او څوکۍ په بدل کې د امریکا لاسپوڅي دولت ته تســلیم شــوي؛ ددې کتاب خپرول خورا اړین دي. ددې کتاب د خپریدو موخه داده چې د افغانستان خلک او په ځانګړې توګه پښــتون میشته سیمو خلک چې له بدمرغه د ځناورو طالبانو او داعشیانو ځاله ګرځیدلې مبارزې ته راوبلي او هغوي ته دا روحیه ورکړي چې په ستونزمنو شرایطو کې څرنګه مبارزه وکړي او بریالي هم شي.

اوســني شرایط د پخوا پرتله خورا ســتونزمن دي. په عامه اصطلاح ځوانان په «پخته حلالوي». نن ورځ لاسپوڅی دولت او د هغه قلمي چوپړان په ډولاډول بڼو او د هغو امکاناتو له لارې چې په لاس کې لري کوښښ کوي د ځوانانو په ذهن کې دا خبره ځای پر ځای کړي چې د ناخوالو او ظلم څخه د خلاصون لار همدا د غني «جمهوریت» ده. په دې توګه دوی هڅه کوي چې د افغانســتان د تاریخ مخکښــې، مبــارزې او نقلابي څېرې لکه مجید کلکاني، ډاکټر فیض احمــد... تر دې کچې راټيټې کړي چې هغوي له حبیب الله کلکاني او احمد شاه مسعود سره پرتله کوي. ددوي کوښښ داده چې ځوانان او راتلونکی نســل له مبارزې څخه ناهیلی او تسلیم‌غوښــتنې ته اړ کړي. نو په داسې شرایطو کې د «مقاومت حماســه» کتاب پښــتو ژباړه او چاپ کولې شي تر یوې کچې ددغو زهرجنو تبلیغاتو مخه ډب او خلک مبارزې او مقاومت ته راوهڅوي.

ملګرې اشــرف دهقاني یــوه مبارزه، توریالۍ او میړنۍ ښــځه چې نه یوازې په ایــران کې بلکه په

افغانستان او ټوله نړۍ کې يې خلک پېژني. د ساواک ځناوريزو ربړونو پر وړاندې د هغې مقاومت او په زړورتيا او حيرانونکي ډول د «صدارت له زندان» څخه تيښته، ملګرې اشرف دهقاني د ميليونونو مبارزانو لپاره يوه بېلګه وګرځوله. ملګرې اشــرف دهقاني په داســې يوه ټولنه کې رالوی شــوه چې د شــاهي زورواکۍ او ناتار ترڅنګ وروسته‌پاتي او د ښــځو ضد افکارو هم هلته ژورې ژرږې لرلې. په هغه ټولنه کې ښځې ته د دويم جنس په سترګه کتل کېدل او د هغې دنده يواځې اخلی پخلی، د ماشوم زيږونه، د کور ساتنه... ګڼل کېدله. په داسې يوه ټولنه کې د مبارزې ډګر ته د ښځې راتګ، په وسله‌واله مبارزه کې ونډه او په مېړانه د ســاواک داړونکو ســپيانو پر وړاندې د هغې مقاومت هغوي هک‌پک حيران کړي ول.

ملګرې اشــرف دهقاني په داســې شــرايطو کې د مبارزې بيرغ اوچت او رپانده وساته چې ډېر په اصطلاح چپانو ايران پريښــوده او په دې پلمه چې «نور دننه په هيواد کې مبارزه ناشــوني ده» بهر ته ولاړل او له مبارزې لاس په ســر شول. ملګرې اشرف دهقاني په سرښندنې او قرباني ورکولو سره دا جوته کړه چې ريښتينی مبارز هغه ده چې په ستونزمنو شرايطو کې مبارزه وکړي کنه په آرامه شرايطو کې هر اپورتونيســت، مارکسيســت کېدای شــي. که څه هم ملګرې اشــرف دهقاني په يوه مذهبي کورنۍ کې رالوی شــوی وه خو د ملګري جواد ســلاحی، ملګري خليل ســلمانی‌نژاد، ملګري کاظم ســعادتي، ملګري امير پرويز پويان، ملګري بهروز دهقاني، ملګري کاظم ســلاحی، ملګري مسعود احمدزاده... او نورو ســره په وخت تيرولو له هغې څخه د ايران يوه پياوړې مبارزه جوړه کړه چې نن زمونږ لپاره د دښمن پر وړاندې د مقاومت او مبارزې يوه ځرګنده بيلګه ده.

د ملګــرې اشــرف دهقاني، مرضيه احمد اســکويي، مهرنوش ابراهيمــی، عليرضا نابدل، مهدی اســحاقی، علی اکبر صفايي... مبارزې او وينې داســې تخم په ايران کې شــيندلی چې نن ورځ هم له هغې څخه د شــيرين علم‌هولی، ســپيده قليان، امير اميرقلی، شاهرخ زماني، فرزاد کمانګر... په شان ځوان مبارزان را غوړيږي او په خپلې مبارزې ســره يې د ايران وينی‌څښــونکی رژيم جرړې سســتې کړي او ډير ژر به ددغو مبارزانو د کرکې په توپان کې راګير او رانسکور شي. دوي له کلونو راهيسې د هيــواد خلاصــون لپاره مبارزه کړې او د ايــران ملامافيايی رژيم ځناوريــزه ربړونې يې زغملي خو هيڅکلــه يې خواري او تســليمي ته ســره نده ټيټ کړی خو لــه بده‌مرغه د افغانســتان ليکوالان او شــاعران او هنرمندان لکه ســميع حامد، رهنورد زرياب، پرتو نادري، وحيد قاســمي، فرهاد دريا... يواځــې د څــو ډالرو او مقام او څوکۍ لپاره خپل وجدان، غيرت او ناموس تر پښــو لاندې کوي او د لاســپوڅي دولت په غوړه‌مالانو او تالي‌څټو بدليږي. لکه سميع حامد چې د ډالرو په بدل کې د غني

ســلاکاری او د ګلبدیني کریم امین تر څنګ کیناســتو ته راضي شو او له څو کاله عیش او عشرت وروسته لکه د تشناب کاغذ په څیر ایسته واچول شو.

امیر امیرقلی چې په دې وروستیو کې د ایران په ربړون‌خونو کې د آزادۍغوښتنې په جرم بندي ده په یو پرانیستي لیک کې یې د ایران وینې‌څښونکي رژیم جلادانو ته داسې لیکلي:

«لــه هر وخت څخه زیات نن انقلابیان له ډیرو ســختو حالاتو څخــه تېرېږي، د کرکې او مقاومــت او پــولادي ارادې دوره چې پر خپله ژمنه د پاتې‌کیــدو یوائنی لامل زمونږ پوهه او ایمان ده.... زه امیر امیرقلی د ایران اتل ولس بچی او د آزادۍغوښــتونکو خلکو او کارګرانو او زیارکښــانو د ســمندر یو څاڅکی تر وروســتي بریده یم او د خپلو پلرونو او نیکونو میراث ته ژمن پاتې کېږم.

نــو نن له پخوا څخه په لــوړ غږ چیغې وهم، دیکتاتورانو او دجالانو ته وایم، د یو اســویلي آرامان به مو په زړه پاتې کړم او د مرګ تر شېبې به خپل وچولی تریو نه کړم.»

خو زمونږ وطني روړاندي چې سفارت او وزارت او ریاست ته ورسېږي تر وروستۍ کچې کوښښ کوي چې لومړی د خلیلزاد او امریکا نورو اســتازو او وروســته د لاسپوڅي دولت د چارواکو دومره غوړه‌مالي وکړي چې آن د هغوي هم بدې راځي. په هغه هیواد کې چې د پورته یادو شو انقلابیانو او مبارزانــو پــه څیر خلکو خپله وینه توی کړې او لاهم په زندانونو کې تر ربړونو لاندې خپلې لارې او ایدیولوژي ته ژمن پاتي، هغه هیواد به هیڅکله هم مذهبي داړونکو او امپریالیستي چوپړانو ته تسلیم نشــي او ډیر ژر به د ظلم او ناتار او ځناورتوب تورې وریځې د هغه هیواد له آســمان څخه لرې او د خپلواکۍ او آزادۍ او برابرۍ ځلانده لمر به راښکاره شي.

**محسن خپرندویه**

۱۴۰۰ کال دچنګاښ میاشت

# په پښتو ژباړې په اړه
# دملګرې اشرف دهقانی پیغام

د «محسن خپرندویه» له لوري په پښتو ژبه د مقاومت حماسې کتاب چاپ کولو ته په درنښت سره، د افغانستان له مبارزو او انقلابي ځواکونو هم مننديه يم چې تل يې د خلق فدائي چريکانو څخه ملاتړ کړی او ددې کرښو ليکونکې ته يې تل مينه او پيروزينه ورکړی ده. خوشالەيم هغه ستونزې چې پښتو ژبې ته ددې کتاب ژباړې لپاره ګالل شوی وې نن ددې کتاب په چاپ سره هغه ثمر ته رسېږي. له دې پلوه هيلەمنه يم چې پښتانه پوه او مبارز وګړي هم د خپلو نورو هيوادوالو په څېر ددې کتاب له مخې د ايران مبارزاتي تاريخ او مبارزو او په بندخونو کې د ربړونکو پر وړاندې د انقلابيانو مقاومت په اړه پوه شي. که څه هم دا د هغو لپاره چې په خپل هيواد کې د انقلاب ستره لاره پرمخ بيايي ډيره وړه توښه ده. په واقعيت کې د «مقاومت حماسه» د شاه رژيم د امنيتي ماموران په منګولو کې د يو کس تاريخ نده بلکه دا کتاب د ټولنې د مخکښو ځواکونو او په ځانګړی توګه د کمونيستانو د مبارزو يوه بيلګه ده چې د مبارزې ډګر ته يې د خلکو په راکښلو او منظم کولو کې له هيڅ ډول سرښندنې اوږې سپکې نکړې او له ناتار او ښکيلاک څخه د ټولنې خلاصون لپاره له خپل سر څخه تير شول. په همدې دليل ددې کتاب محتوا د ژونديو مبارزاتي تجربو څخه ډکه ده.

پرته له شکه په پښتو ژبه د «مقاومت حماسې» ژباړه او چاپ او خپرول، هغه هم په داسې شرايطو کې چې د نړۍ ټولې ډيرې ګڼې لرونکې رسنۍ زمونږ د دښمنانو په لاس کې دي، په افغانستان کې پښتو ژبې خپل شويو خلکو په خدمت کې د مبارزې يو ډول ده. واقعيت دا ده چې د ايران او افغانستان تر ناتار لاندې خلک د يو شان ګډ دښمن پر وړاندې دي او ددې ترڅنګ چې په دوه بيلابيلو هيوادونو کې ژوند کوي خو د امپرياليزم او پانګوالو له واکمنۍ څخه چې له بيوزلۍ او بدمرغۍ، جګړې او بې کورۍ پرته زمونږ خلکو لپاره بل څه نه لري، خلاصون لپاره ګډه مبارزه پر

مخ بيايي.

په تيرو څو لسيزو کې د افغانستان خلک لا د پخواني شوروي له زنځيرونو خلاص نه ول چې د امريکا په بند کې راګير شول. دغه امپرياليزم د خلکو پر ځان او مال يا د طالبانو پر واکمنولو او يا په مستقيمه توګه د افغانستان په نيولو سره او له هغې وروسته د خپل لاسپوڅي رژيم په واسطه او سربيره پر دې د اسلامي جمهوري له لارې چې خپله د امريکا امپرياليزم او د هغوي د ملاترو په مرسته د ګوادلوپ په کنفرانس کې د ايران پر خلکو وروتپل شو، د افغانستان په رنځځپلو خلکو يې د ناخوالو او کړاونو پېټي وربار کړل. اسلامي جمهوري نه يوازې په افغانستان کې د مستقيمو لاسوهنو او په هغه هيواد کې د مرتجع ډولو په ځواکمنولو سره بلکه په ايران کې پر افغان ګډوالو د سختو ظلمونو او ناخوالو په ترسره کولو سره، عملا د ايران او افغانستان ځپلو شويو وګړو ګډ دښمن ده.

رينښتيا يې ويلي چيرته چې ظلم ده، هلته مبارزه هم شته. له همدې پلوه، هغه ظلم او ستم چې د افغانستان پر رنځيدلي ولس ترسره کېږي، او په ځانګړې توګه په افغانستان کې د ښځو پر وړاندې سخت ناتار ته په کتو سره، ددې شاهد يو چې دغه وګړي له افغانو زړه‌ورو او مبارزو ښځو سره يوځای، د ټولو ناخوالو او خنډونو سربيره چې دوي وسره مخ دي، په هره بڼه چې شوني وي د اوسني حالاتو پر وړاندې جنګېږي او د هيواد خپلواکۍ او آزادۍ او مساوي حقونو او هوساينې لپاره يې هيڅکله هم له مبارزې لاس ندی اخيستی.

بايد په دې ټکي هم ټينګار وکړم چې نن هم په ايران کې او هم په افغانستان کې هغه ځناورتوبونه چې د کارګرانو او نورو کړيدلو خلکو پر وړاندې ترسره کېږي، له پخوا څخه د مبارزې شرايط ډير ستونزمن شوي دي. دا د خلکو او دښمنانو (امپرياليزم او واکمنه پانګوالۍ) تر منځ د تضاد ډيروالي نښه ده او په ورته وخت کې ددې ښکارندوی ده چې د ټول واک‌ښودنې سره سره د دښمنانو د مړينې وخت را نږدې شوی ده. ددې واقعيت په پام کې نيولو سره، اړينه داده چې بايد هڅه وکړو د بيلابيلو انقلابونو او په ځانګړې ډول د اوسني وخت له تجربو څخه زده کړو. له هغې ډلې د ايران زړه‌ورو خلکو مبارزې چې د شاه رژيم يې رانسکور کړ، بايد دا زده‌کړو چې شاه لاړ خو د ايران په ټولنه کې د امپرياليزم واکمني او هغې پورې تړلي مناسبات په خپل ځای پاتی شول چې په پايله کې زبيښناک او ظلم او ناتار له پخوا څخه لا ډير دوام لري. دا د منځني ختيځ ټولو خلکو لپارهستره تجربه ده چې بايد هڅه وکړي د ډوډۍ، کور، آزادۍ او خپلواکۍ تر لاسه کولو مبارزه کې او د هر ډول ظلم او ناتار او زبيښناک څخه د خلاصون لپاره چې په حقيقت کې د امپرياليستانو له بند څخه د هيواد خلاصون ده، په پام کې ونيسي.

د مقاومت حماســي کتاب په اړه وروســتی تکی ووایم. دا کتاب مې د (۱۹۷۳ کال د می په ۲۵مه) د ایران قصر بندخوانې ځخه له تېښــتې وروســته ولیکه. هغه مهال ددې لپاره چې ددې تېښتې په اړه دښــمن له ځینو مالوماتو بې‌برخې کړم، اړینه وه چې ددې تېښــتې په اړه ځیني مسایل ولیکم. خو په دې وورستیو کلونو کې د قصر له بندخوني ځخه د تیښتې په اړه پوره مالومات ددې کړښو لیکونکې له لوري او د مبارزې په اړه ځیني نور مسایل د «بذرهای ماندګار» په کتاب کې ولیکل او د لوستونکو په واک کې ورکړل شول. د کتاب له خپرونکو ځخه په بیا مننې سره، د بذرهای ماندګار کتاب ځخه د زندان ځخه د تیښتې برخه له دې سریزي سره یوځای درلیږم که اړینه مو ګڼله هغه هم د افغانستان پښتوژبې لوستونکو په واک کې ورکړئ.

**اشرف دهقاني**

**د ۲۰۲۰ کال د اکتبر اتمه**

# پر نوي چاپ د ليکونکې سريزه

کوم ملګري چې د دې کتاب د نوي چاپ په کار کې بوخت ول، ما څخه يې وغوښتل چې پر هغه سريزه وليکم او د ځينو مسئلو په هکله توضيحات ورکړم. ما په دغو غوښتنو عمل وکړ خو توضيحاتو ډيرې پاڼې ځانته ځانګړې کړې. په پايله کې د کتاب د زيات پنډوالي د مخنيوي لپاره پريکړه وشوه چې د توضيحاتو ډيره برخه په جلا کتاب کې خپره شي. له همدې کبله په دې ځای کې خپله «د مقاومت حماسه» کتاب سره يوه سريزه او د مطالبو ځينې توضيحات په نوي چاپ کې زيات شوي.

تر دې کتاب وروسته به «د مقاومت د حماسې يادانښتونو» تر عنوان لاندې بل جلا کتاب خپورشي. کوښښ مې کړی ځينې هغه مسايل چې پدې کتاب کې د يادونې وړ دي مطرح کړم او هم هغه برخې چې ترمخه پوره توضيح شوې نه وې توضيح کړم. همدارنګه مې پدې کتاب کې هغو پيښو ته اشاره کړې چې تر مخه مې د هغوی په هکله بشپړ مالومات ليکلی نه وو. تر ټولو مهمه د ماڼی زندان څخه زما د تېښتې د څرنګوالی په هکله مالومات. د دويم کتاب «د مقاومت د حماسې يادانښتونه» وروستۍ برخه په ۵مه لسيزه کې د شاه د رژيم د زندانونو او په ۶مه لسيزه کې د اسلامي جمهوري رژيم د زندانونو تر منځ د توپير بيان ته ځانګړې شوې او کوښښ شوی په لنډه توګه هغه ځانګړې شرايط په ګوته کړم کوم چې د دې لامل شول ترڅو اسلامي جمهوري رژيم په خپلو زندانونو کې د شاه د رژيم د زندانونو په پرتله په کراتو ډيرسخت او تر زغم وتلي شرايط منځ ته راوړي. د دې برخې په څنګ کې فرصت تر لاسه کوم تر څو د هغه حماسه جوړونکو سياسي بنديانو چې زياتره يې نوم ورکي دي او هغوی چې د اسلامي جمهوري د ارتجاع په وړاندې د نه تسليميدو حرمت ساتلی او خپلې مبارزې ته يې د دوام ورکولو په خاطر د ټولو ارتجاعي او غير انساني کړنو په وړاندې يې مرسته رسولې قدرداني او درناوی وکړم.

**اشرف دهقاني**

**۱۳۸۳ کال د ورې مياشت**

# پر نوي چاپ د لیکونکې سریزه

په ۱۳۵۲ کال کې د تهران د قصر له زندان څخه زما تیښــتې ماته دا بریا په لاس راکړه چې خپل ســازمان (د ایران د خلکو د فدایي چریکانو ســازمان) سره له سره اړیکه ونیسم او ما ته یې په هماغه کال کې دغه امکان په لاس راکړ چې وکولی شــم د شــاه د رژیم په ربړونه ځایونو کې د ویروونکو او زړه بوږنوونکو واقعیتونو شــرحه چې د ایران د ربړېدلي ولس په عزیزانو او اولادونو تیرېدل ولیکم، او په ورته وخت کې د هغه افســانوي مقاومتونو او د ســتاینې وړ زړورتیاؤ په هکله چې د هغې دورې له ســرتیرو مبارزینو د ســاواک او امنیتي حوزې جلادانو په وړاندې له ځانه وښودل شاهدي ورکړم. او پدې توګه یې له زندان څخه بهر د خپلو همســنګرو مبارزینو ســره د اړیکو له لارې د شاهنشاه د ظلم او ستم ستني لړزولې.

طبیعتاً هغه څه چې زما له خوا لیکل شوي ول، د هغو تجاربو ښکارندوی کوي کوم چې پخپله ما د ربړونکو او حکومتي مزدورانو په وړاندې له ســره تیر کړي ول. ښکاره ده که چیرې نورو ملګرو، په ځانګړې توګه هغو چې د ډیرو ربړونو له زغم څخه وروســته د اعدام جوخې ته ولیږدول شــول هم فرصــت تر لاســه کړی وای تر څو یې د شــاه د رژیــم په زندانونو کې د ربړونکو پــه وړاندې د خپلو تجاربــو نکلونــه په ډاګه کړي وای، یا یې لږ تر لږه یواځــې د رژیم په بېعدالته محکمو کې دهغوی د دفاع متن خپور شــوی وای، او ډیر ښایســته او کرغېړن واقعیتونه، په ژوندي او ملموس ډول د ایران د پوه او مبارزو خلکو د ســترګو په وړاندې ایښــودل شــوي وای. مطمیناً پدې صورت کې به د شاه د رژیم د امنیت (ســاواک) او د اطلاعاتو د ســازمان او د هغې دورې په زندانونو کې د نورو ربړونکو له ډیرو پراخو دردوونکو جنایتونو د بربندولو امکانات منځ ته راشــي. پدې موضوع زما ټینکار د دې لپاره دی چې ووایم د «مقاومت حماسه» نوم (چې زما ملګرو پدې حاضر کتاب کیښود) باید یواځې د یو ســند او ســاري په توګه وپیژندل شــي چې په یوې تاریخي مقطع کې د زندان له منځه واقعیتونو څخه پرده پورته کوي.

باید پوه شــو چــې دغه دوره په واقعیت کې زموږ د خلکو د تاریخ یــوه ځانګړې برخه وه. په کال ۱۳۴۱ کې د شاه رژیم په ایران کې د امپریالیستانو په ځانګړې توګه د امریکا امپریالیزم د ګټو خوندي کولو لپاره د ټولنې په اقتصادي -ټولنیز جوړښتونو کي په بدلونونو لاس پورې کړ، دغه حکم د «سپین انقلاب» تر عنوان لاندې په ډېرو زیاتو تبلیغاتو ســره بدرګه شــو. د امپریالیستي پانګو د نفوذ شرایط د هیواد په ډېرو برخو کې حتي په ډېرو لرې ســیمو کې برابر شــول او تړل شوی پانګوال سیستم یې زموږ په ټولنه کې د یو برلاسي سیستم په بڼه واکمن کړ.

پدې توګه فیوډالانو او شــاه پورې تړل شــوو کســانو چې زیاتو یې په حکومتي دســتګاه کې نفوذ درلود وار په وار خپل ځایونه تړل شوو پانګه والو ته پرېښودل (البته فیوډالانو یا بورژوا فیوډالان لکه «علم» او «فرمان چلونکو» او «امینی» او داســې نور، پخپله شاه د مځکو له اصلاحاتو څخه یوه موده مخکــې خپلې مځکې په تدریج ســره یا په مکانیزه کروندو واړولــې او یا یې تر خپلې ولکې لاندې د کلیوملکیتونه پلورلي وو او په نورو ګټورو برخو کې یې پانګونه کړې وه. دولتي ماشــین چې تر مخه هم په لوړه کچه د امپریالیســتانو په خدمت کې قرار درلود. د بورژوازي د بدلون په لا پیاوړتیا ســره، حاکمــې طبقې کوښــښ کاوه چې د ټولنې شــرایط زیات څخه زیات د هیــواد د زیرمو لوټولو، د کار د نیرو زبیښــاک (البته د امکان تر پولې) په «ارزانه» قیمــت د بهرني او داخلي پانګوالو د ګټو لپاره اســانه کړي. پدې وخت کې هغه بدلونونه چې د مځکې د اصلاحاتو په اړه د ارباب رعیتي سیســتم په ټولنه کې له منځه تللی وه، شــاه د تبلیغاتو په حوزه کې کوښــښ کاوه تر څو خپل ځان او ســلطنتي رژیــم پر مخ تللی او متمدن وښــایې، خــو د عیني واقعیت له مخې او په عملــي ډګر کې د ارتجاع له ښــکاره بربنډېدو پرته بل څه نه ول. د توده یې مبارزاتو او بزګرانو له وحشــیانه ځپلو نیولې (چې شاه خپل ځان دهغوی ژغورونکی باله) د کارګرانو او نورو ستمکښو پرګنو د بیان او اندیشې آزادي څخه مخنیوی کاوه، په رسنیو او کتابونو سانسور، له دولت څخه په هر ډول خپلواکه ګوندونو او تشکیلاتو جوړولو له هغې ډلې د کارګرانو په تشــکل بندیز لګول، په بیســاري توګه آیت الله ګانو او ډول ډول مذهبي ټولنو ته چې د خلکو په منځ کې پراته د وروســته پاتې مذهبي فرهنګ د تداوم او خوندیتوب لپاره او د هغوی په منځ کې د درواغو او خرافاتو خپرولو څخه بل کار نه درلود مالي مرستې تر لاسه کولې. د بې‌شمیره جاسوسانو ګمارل چې حتی په کوچنیو خصوصي ټولنو کې یې هم احساس کیده، وحشــیانه نیول او بندي کول، زندان او ربړونه (حتی کتابونو د لوستلو په خاطر) اعدامول، په ټولیزه توګه یوې پراخې دیکتاتورۍ او ټینګو قهرجنو کړنو ښــودله چې د شــاه حکومت یواځې او یواځې د مرتجع پانګه والو د ګټو لپاره خدمت کوي چې تاریخاً نور نو د تمدن، پرمختګ او دموکراتیکې نړۍ

ســره تړاو نلري، بلکه کــړه وړه يې يواځې د منځنۍ پيړۍ د بربريــت دورې ته ورته دي. په څلورمه لســيزه کې تر سپين انقلاب وروســته، له يوې خوا ديکتاتوري د يو اساسي فکتور په عنوان او له بلې خوا نور منفي عوامل له هغې ټولګې په ټولنه کې د حرفه يي انقلابيونو د سازمان نشتوالی چې سياسي پوليســو سره د مبارزې په څنګ کې وکولی شي د ستمکښانو ملاتړ او نظر تر لاسه کړي او د هغوی د مبارزاتي ځواک په بســيج کولو سره د امپرياليزم او د هغوی د لاسپوڅو په وړاندې سر پورته کړي، دغه ناخوالو د شــاه لپاره امکانات برابر کړل تر څو په ټولنه کې بيســاری او له حده زيات د خپکان، ښېرې او وحشــت چاپيريال لاسبری کړي او «شاهنشاه آريامهر» د چا خبره «خدايي» وکړي. په دې وخت کې رژيم د خپل واک ښــودلو لپاره ميدان داســې تش ننداري ته وړاندې کړی وو چې په ډېرې بې پروايي يې د خلکو له خوا نيوکې، حتی د خپلې لاسباړې (دستمزد) د کموالي اعتراض ته په ګوليو ځواب ورکاوه[1]. پداســې شــرايطو کې هغه مبارزې چې د رفرميستي موخو د پلی کولو لپاره کوم چې لږ موده وړاندې لکه «قانوني حکومت»، «آزاده ټاکنې» د موجوده اقتصادي ټولنيز سيستم د خوندي کولو په څنګ کې مطرح شوي وو، د مسالمت آميزې مبارزې له لارې شونې نه وه چې کوم کار سرته ورسوي، په ټوليزه توګه داسې رژيم سره چې «يواځې د زور په ژبه خبرې کوي» سياسي مبارزې خپل بې ګټيتوب او شــنډتوب په ډاګه کړی وو. همدا وجه وه چې د ايران په ړنګو او ناکامه کنډوالو کې وسلهوال خوځښت منځ ته راغی.

دغه کتاب په ايران کې د پورته ياد شــوو شــرايطو د تاريخي پړاو د انځور يوه ګوښــه په ګوته کوي، او کيدای شــي د ايران د خلکو دهغې دورې د کمونيســتي او امپرياليستي ضد خوځښت د مسايلو د پوهاوي لپاره د يو ســند په توګه ګته واخيســتل شي. د کتاب د خپرونې په وخت کې شرايط پدې ډول وو چې د ايران د خلکو فدايي چريکانو د يو کمونيســتي سياســي جريان په توګه د ايران د ستمکښو خلکو دښمنانو ته اخطار ورکړی وه چې د ګوليو ځواب په ګوليو ورکوي پدې وخت کې نورو وسلهوالو مبارزينو هم د ويني‌څکونکي رژيم د ځواک په وړاندې خپله ځواکمني په ډاګه څرګنده کړه او پدې ډول وســلهوال غورځنګ امپرياليســتان او د هغوی ايراني مرتجع ملګري تر ســختو ټکولو لاندې ونيول، د شــاه د رژيم د مرګ شــيپلۍ په ترنم راغلې وه. په هغه وخت کې بيرنيو موخو ته د رســيدو لپاره يو له مهمو مســايلو څخه چې د وســلهوال غورځنګ په مخ کې پراته ول، هغه ستمکښو پرګنو ته په سر کې کارګرانو ته د رژيم د پروپاګند او تبليغاتو پوچوالی په ګوته کول ول. د شاهنشاهي رژيم مبلغينو په خپلو زهرجنو تبليغاتو کې پرګنو ته ويل، هيڅوک نشــي کولی د رژيم دم او دســتګاه سره ډغرې ووهي. مبارزه بې ګټې ده او روڼ‌آندي يواځې تشې خبرې کوي د ځواکمن قدرت په وړاندې د

ودریدلو وس نلري او له دې لارې یې بیا هم سـلګونو ځله په بې رحمي د خلکو د مبارزاتو په ټکولو کې کوښـښ کاوه تر څو د ایران ستمکښـې پرګنی د خپلو عادلانه او انقلابي غوښـتنو د عملي کولو لپاره له مبارزې څخه په شـا وتمبوي. «د مقاومت حماسه» چې پخپله د وسلهوال غورځنګ د زړه له تل څخه راپورته شـوی وو پدې ډول چاپیریال او د انقلابي پرمختګ د هڅو په درشل کې خپور شو. کتـاب په خپل وار دغـه درواغ بربنډ کړل د ناهیلي او ناامیدي واکمنه چاپیریال یې له منځه یووړ او دهیلهناک شورانګیزه ژوند زیری ورکوونکی وګرځیده. په واقع کې دغه کتاب په هغه تاریخي مقطع کې د خلکو د فدایي چریکانو اصلی ایده چې «کولی شـو مبارزه وکړو» او «واک خلکو سـره ده» په خپل وار نقش تر سـره کړ. کولی شو ووایو چې «د مقاومت حماسه» د خلکو د دښمنانو په بربنډولو کې، د پوهاوي د کچې او د پرګنو د جګړه ایزې روحیې د کچې په لوړوالی کې او په ټوله کې د ایران د خلکـو د فدایـي چریکانو د موخو پرمخ وړلو کې یو له مهمو فکتورنـو او آغیزناکو لاملونو څخه شمیرل کیږي. په ځانګړې توګه د دې کتاب آغیزه دمبارزې په ډګر کې د ایران د مبارزو ښځو هڅونه او په مختلفو حوزو کې له هغې ټولګې په وسلهوالې مبارزه کې د هغوی ګډون انکار نه منونکی دی.

د «حماسـه مقاومت»کتاب د ایران دخلکو د فدایي چریکانـو د آثارو له ټولګې څخه دی چې په پراخه توګه په پنځمه لسـیزه کې د ټولنې په کچه خپور شو. ملګرو نه یواځې د جدي خطرونو په منلو سـره د هغه په خپرولو خپله زړورتیا وښـودله، بلکه یوه مخفي راډیو (د میهن پرسـتانو راډیو) چې ګڼ شـمیر اوریدونکي یې درلودل په هماغه کلونو کې هره ورځ د ایران د خلکو لپاره برنامې خپرولی د هغه په ویشـلو کې یې ډیره مرسـته وکړه (جالبه ده وروسـته معلومه شو ځینې سیاسي زندانیانو هم د دوه موجه راډیوګانو په مرسـته چې په مخفیانه ډول یې ځان سـره درلودې د راډیو برنامې اوریدلې) په ورتـه وخت کې ډیرو انقلابي مبارزینو د راډیو له لارې امکان تر لاسـه کړی وه ترڅو کتاب په لاس نـوټ کـړي یا یې له بلې لارې بیـا ځلي تکثیر کړي او په مخفیانه ډول یې پـه خپرولو اقدام و کړي (ځینـې لـه دغو مبارزینو په پټه د کتابونو د تیتولو په وخت د شـاه د مزدورانو له خوا ونیول شـول) د ۵۷ کال د سـتر پرګنیـز پاڅون په وخـت او د انقلاب په لمړیو کې «د مقاومت حماسـه» کتاب د مختلفو خپرندویانو له خوا بیا ځلي په علني ډول چاپ شـو. البته علني چاپ یې له هیواد څخه بهر چـاپ شـوی وه او اتفاقاً مبارزینو هم هغـه په مختلفو ژبو ژباړلی وه.[۲] اړینه ده چې وویل شـي کله چې په ۵۷ کال کې «د مقاومت حماسـه» د مختلفو خپرندویانو له خوا په علني ډول چاپ شـو. پدې شرایطو کې چې د ایران لویې پرګنې د انقلاب لپاره لاس په کار وې، په کلکه توګه د هغوی له خوا، په ځانګړې توګه د ځوانانو او نوي انقلابي ځوانانو له تود هرکلي سره مخامخ شو چې د ځینو لپاره دغه

کتاب سیاسي مسایلو سره د بلدتیا پیلامه شوه.[۳] رښتیا خبره داده چې زه پخپله د دې کتاب د اغیزو د توضیح لپاره ور کس نه یم کوم چې د ایران په انقلابي خوځښــت کې یې ځای نیولی په تیره بیا که دغه خبره په ناوړه توګه تعبیر شــي.[۴] خو که چیرې بهرني واقعیتونو ته چې زموږ له ذهن څخه بهر دي وکتل شــي، باید لږ تر لږه دغه واقعیت ته اشــاره وکړم چې په هماغه ۵۷ او ۵۸ کلونو کې ځوانانو او نوي انقلابي ځوانانو په ټول هیواد کې د خپلو انقلابي هڅو په لړ کې د خپلو ښــوونځیو نومونه په هغه نومونو چې د «مقاومت حماسه» په نوم پیژندل کیدل بدل کړل دغو واقعیتونو ته په کتو سره کله چې «د خلکو فدایي چریکانو» په ۵۸ کال کې خپل صف له خپل غصب شوي سازمان څخه جلا کړ (د اقلیــت او اکثریــت تر جلا کیدو وړاندې) زما له خوا یې د خمیني د رژیم په وړاندې موضع اعلام کړه، د ایران د زیارکښو پرګنو دښمنانو د اسلامي جمهوري له تازه کارو مبلغینو نیولې تر سازشکارو خاینینو چې زموږ د سازمان په منځ کې نفوذ کړی وه د توده اي کهنه کارانو څخه یې زده کړه کوله نور یې زما په ضد له هیڅ ډول دښــمنانه تبلیغاتو څخه لاس وانه اخیست. په خواشینۍ سره د هغه وخت ډیرئ مبارزینو چې د خمیني د رژیم ارتجاعي او خلقي ضد ماهیت نه پیژانده زموږ نظرات یې چپ لاري بلل او له دغه تبلیغاتو سره یو ځای ملګري شول.[۵]

د «مقاومت حماسه» کتاب په اړه باید یو څه نور ټکي هم ووایو. په ۱۳۵۲ کال کې کله چې ملګرو ما څخه وغوښتل د زندان په هکله هغه څه چې پخپله ما لیدلي، ولیکم ما اصلاً فکر نه کاوه چې زما لیکنې به یوه ورځ د کتاب په بڼه چاپ شــي. ما هغه د ســازمان ملګرو ته د یو ګزارش په توګه لیکلی وو. خــو ملګرو یې د چاپ لپــاره تصمیم ونیوه. ملګرې مرضیه احمدي اســکویې[۶] د کتاب د کره کتنې (ویراســتاري) دنده په غاړه اخیســتې وه. هغې چې په هغه وخت کې د تهران په پوځي ســنګر (پایګاه)[۷] کې فعالیت کاوه د ملګري علي اکبر (فریدون) له لارې جعفري ما ته چې په مشهد کې اوســیدم پیغام اســتاوه د بیلګې په توګه پلانی موضوع د لږ توضیح کړې بایــد زیات ولیکئ یا یې نور اړونده مســایل مطرح کول.... زما یادداښتونه پدې ډول پروســه کې د کتاب په بڼه راغلل. ما باید هر څومره ژر چې ممکنه وه تکنیکي کارونه لکه (ټایپ، چاپ او داسې نور) ترسره کړي وای او کتاب مې په ټولنه کې تیت کړی وای. د ژوند مخفي شرایطو خپلې ځانګړتیاوې درلودې. باید په هیڅ ډول مو وخت له لاسه ورکړی نه وای. ځکه چې د نیولو په وخت کې د دښمن مزدورانو سره جګړې کولی شول د کتاب په خپریدلو کې خنډ واچوي یا حتی د دې لامل شي چې هیڅکله خپور نشي. مسأله د تجربې د انتقال او د هغه د آغیزمنتوب په ســر وه. له دې کبله ما ته نه یادیږي چې د کتاب له چاپ څخه به مخکې ما یوځل هم سر تر پایه لوستی وي تر څو د بیلګې په توګه هغه موضوعات چې ښایي

په شروع کې له قلم څخه پاتې شوي وو په هغوی ورزيات کړم. نن ورځ چې کتاب ګورم، وينم د هغو ربړونو او مقاومتونو شرح تر هغه ځايه چې مستقيماً ما پورې اړه لري يا د هغو مبارزينو په اړه چې په يو ډول نه يو ډول له نږدې څخه د هغوی د مقاومت او ربړونو په جريان کې وم يا د هغوی په هکله په هماغه وخت کې پخپله د رژيم مزدورانو څخه اوريدلي هيڅ ډول مبالغه نده شوې او عين واقعيت مې توضيح کړی دی.[۹] سره له دې بيا هم په کتاب کې د ځينو خبرو د درج شاهدان يو چې زياتره د هماغه کلونو مسايلو ته د زندان په چاپيريال کې انعکاس ورکوي.[۱۰]

د (انستنسل په مخ) زما د ليکنو د ټايپ کولو زحمت ملګرې شيرين معاضد[۱۱] په غاړه واخيست. همدا رنګه په هماغه وخت کې د سازمان نور آثار هم د هغې په واسطه ټايپ کيدل. د دې کار سرته رسول د موجوده امکاناتو په چوکاټ کې او د کلکې مخفي کاري پام کې ساتل واقعاً يو سخت کار وه. د دې لپاره چې د ټايپ غږ بهر لاړ نشي، شيرين له توشکې او بړستن څخه په ګټې اخيستو ځانته د کوټې په کنج کې کوډله جوړه کړې وه چې يواځې د ځمکې په سر د خپل ناستې او ټايپ لپاره يې ځای درلود. هغه د شديد سردرد سره سره په ساعتونو ساعتونو په هغه ځای کې کښيناسته او ټايپ يې کاوه. دغې فداکارې جنۍ چې دا کار سرته رساوه يواځينی انګيزه يې «د کمونيسم ښايسته نړۍ» سره عشق او مينه وه (له دغه عبارت څخه موږ دوه کسانو په خپلو خبرو کې د راتلونکې په هکله کار اخيست) د استنسلونو تکثير کول د فوټوکاپي په واسطه د مشهد پايګاه کې پخپله زما له خوا او زما د ډير ګران ملګري ابراهيم پوررضا خليق[۱۲] په مرسته چې د صفا او صداقت بيلګه وو او زړه يې د دښمن په وړاندې له ژورې کينې او کرکې ډک وو سرته ورسيدل. سازمان په هغه وخت کې د چاپ يوه کوچنۍ دستګاه درلوده چې په سُرپي حروفو سمبال وه، چې موږ ټولو په هغې ويار کاوه. د کتاب لمړی مخ او تيترونه يې اسماعيل خاکپور[۱۳] په سُرپي چاپ وهل البته ما هم ورسره مرسته کوله. که مې صحيح په ياد کې پاتې وي تيترونه مو په سور رنګ چاپ کړل د «حماسه مقاومت» مقدمه ملګري حميد اشرف وليکله (د توضيحاتو برخې ته مراجعه وکړئ) او بيوګرافي يې ملګرې مرضيه د هغه متن له مخې چې ما پخپله د هغې د سپارښت له مخې ليکلی وو سمبال کړيدی. د کتاب پايليک (پاورقي) هم ټول د ملګرو حميد اشرف، شيرين معاضد او مرضيه احمدي اسکويې په ملتيا ليکل شويدی.

«د مقاومت حماسه» له نورو اړخونو هم د ايران د خلکو د فدايي چريکانو سازمان له تاريخي رشد او غوړيدو سره غوټه خوړلې. د سازمان آرم په لمړي ځل د دې کتاب له لارې په ټولنه کې خپور شو. البته چې لمړني ارم له اوسني آرم سره توپيرونه درلودل. ملګری فرامرز شريفي[۱۴] چې د سازمان

د آرم د طراحي وياړ لري د خپلې طرحي له مخې، د ايران د نقشــې په منځ يو لاس کې توپک رســم شوی وه. بيا وروسته نورو ملګرو دهغوی له ټولګې ملګري کيومرث سنجري[۱۵] او ملګري فريدون جعفري کوښــښ وکړ چې په لاس کې ټوپک پدې ډول چې د ايران له زړه څخه راوتلی وي ترســيم کړ. څه پدې بڼه يا څه په لمړۍ بڼه د سازمان آرم تر دې وخته لور او څټک نه درلود. لور او څټک د ۵۴ کال په لمړيو کې پر هغه ورزيات شو، په آرم کې د ترسيم شوو انځورونو په اړه بايد ووايو چې دغه انځورونه هر يو په ســمبوليکه توګه د ســازمان د ځانګړو مبارزاتي خصلتونو او ليد لورو ښــکارندوی وه او دي. د بيلګــې پــه توګه پدې آرم کې چې لاس کې توپک نيول شــويدی د مبارزې اصلي لار په ګوته کوي يعنې (وســله واله مبارزه) او د ځمکې کُره انترناسيوناليســتي خصلت په ګوته کوی چې د نړيوالې مبارزې ابعاد دي.

نن ورځ وروسته له ديرشو (۳۰) کلونو چې لمړی ځل د «مقاومت حماسې» خپريدو څخه تيرېږي، ښکاره ده چې موږ اوس له پخوا څخه په بشپړه توپيرنا که شرايطو کې ځای لرو. د انقلابي روڼ آندو ځوانانو هڅې او د ايران د ستمکښــو پرګنو بيســاري سربښــيندنې په ۵۰ کلونو کې يواځې پدی پای ته ورسيدې چې د شاهينشاهي رژيم يې د تاريخ کندې ته وليږداوه خو د دې مبارزو وروستې موخه چې د امپرياليزم او د تړلي پانګه والي سيســتم له بند څخه خلاصون وو د ځينو دلايلو له کبله تحقق ونه موند. په پايله کې داسې رژيم منځ ته راغی که څه هم شکل او کړه وړه يې په بشپړه توګه د شاه رژيم ســره توپير درلود خو د ماهيت له مخې يو شــان وه، په همدې خاطر له هماغه پيل څخه نه د پرګنو د ګټو خوندی کول بلکه د امپرياليســتانو او پرديو پورې د تړل شــوو پانګه والو د ګټو خوندیتوب ته د کار په ســر کې ځای ورکړ. نن ورځ د نوي رژيم د (اســلامي جمهوري رژيم) تر حاکميت لاندې په ايران کې د امپرياليزم نفوذ نور هم پياوړی شوی او تړل شوی پانګه وال سيستم لا نور هم ارت شوی. په چټکتيا سره د ټولنې قطبي کيدل، د طبقاتي تضادونو پياوړي کيدل، د ډول ډول ناخوالو زياتيدل، دغه ټول اقتصادي بنسټونه د دې لامل شول چې دا ډول سيستم ساه واخلي، چې حاصل يې د ايران د ټولنې اوســني اقتصادي او ټولنيز شــرايط دي. پدې ډول شرايطو کې له يو پلوه د واکمنې سلطې په ضد د ژوند د عيني شرايطو له مخې او له بل پلوه د پوهاوي د کچې د لوړيدو په رڼا کې او د خپلو تيرو مبارزاتي تجربو څخه د ګټې په اخيستو سره د خلکو د پرګنو مبارزه په مختلفو بڼو جريان درلود او له بلې خوا حاکم رژيم تر خپلې واکمنۍ لاندې د پرګنو ساتل او له دې لارې د موجوده ښکيلاککر نظم د پياوړي کولو په خاطر اسلامي ارتجاعي ايدئولوژي چې د هغوی د خلکو ضد کړنو توجيه کوونکې ده په خدمت کې نيولې په داسې ځناورتوب او وحشت عمل کوي چې د شاه تر رژيم يې خپله څېره

ډېره جنايتکاره او بد رنګه ننداري ته وړاندې کړه. دغه واقعيت نن ورځ حتی ســلطنت پلويانو ته له دومره بربنډو رســوا او وينې تويونکو دوسيو سره ســره فرصت ورکوي چې خپل ځانونه «دمکرات» وښــايې. له دې کبله دغه کتاب پداسې شــرايطو کې له سره چاپيږي چې د اسلامي جمهوري رژيم د جنايتونو شــدت او وســعت، د شاه د رژيم د جنايتونو او کرغيړنو کړنو رنګ چې د ايران د ستمکښو پرګنو په وړاندې يې ســرته رســول ظاهراً پيکه کړي وو، او د سلطنت د پلويانو لپاره يې له ريا څخه ډکو غولونکو تبليغاتو فضاء برابره کړيده. له نيکه مرغه پخپله ملګرې عزيزي او دوستان چې د دې کتاب د بيا ځلي چاپ کولو غوښتونکي وو، د هغه د چاپ ضرورت دا ډول توضيح کوي نن له هيواد څخه بهر د شــاه رټل شــوؤ او رسوا شوؤ پلويانو «د سا اخيســتلو موکه تر لاسه کړې» د ځوان نسل د اغفال او دوکه کولو لپاره ډيرې هڅې په لار اچوي پخپله زه د شــاه تر واکمني لاندې د ژوند تجربه نلرم. دا يو منل شوی حقيقت دی چې د تيرو انقلابي تجربو ليږد ځوان نسل ته يوه انقلابي دنده ده. او د دې په څنګ کې تر اوســه ډېرو ځوانانو (په واقع کې تر دوه نســله ځونانو) په کراتو مراتو څه په مســتقيمه توګه او څه د نورو له لارې د «حماســه مقاومت» د لاسته راوړلو غوښتنه کړی او په ټينګار سره يې خپله مينه د هغه د لوستلو لپاره مطرح کړې. په هر حال دغه واقعيت سره سره چې په خپل وار د دې کتاب د بيا چاپولو اړتيا په ګوته کوي، سربېره پر دې د هغه د بيا چاپولو په اړه د بل واقعيت په هکله هم بايد ټينګار وکړو.

د اوسنيو شرايطو له ځانګړتياؤ څخه يو، د کمونيستانو او مترقي ځواکونو په وړاندې د ايدئولوژي او نظر په ډګر کې د جبهې پرانيستل دي. پدغه جبهه کې چې د اسلامي جمهوري رژيم د ايدئولوګانو له خوا سازمان ورکړل شوی، د خلکو ضد ځواکونو څخه نيولې دشاه تر پلويانو، توده يانو، اکثريتانو او د رژيم د قانوني اپوزيسون (غير حکومتي اپوزيسون) ګډون لري. د دغه ځواکونو تر منځ اختلافاتو سره سره په ايران کې بيا هم د تړل شوي پانګوال سيستم د خوندي کولو لپاره يوه خوله (متفق القول) دي. نــن ورځ هغوی لاس پــه لاس هر يو له يوې زاويې څخه په ځانګړو قالبونو کې پداســې ليکنو تمرکز کوي چې په ۵۰ کلونو کې د ايران د زړورو ځوانانو د افکارو او مبارزو بڼه تحريف کړي. پدې لار کې هغوی کله ناکله د اســلامي جمهوري د زندانونو شــرايط چې هرومرو د شــاه له جهنمي او بوګنوونکو زندانونو څخه ډېر ويروونکي دي د ســاواک په تبرئه کولو بوخت دي، پدې ډول کوښــښ کوي د هغې ويروونکې دســتګاه جنايات چې د شــاه په دوره کې انقلابي مبارزينو او سياسي بنديانو سره شويدي له سترګو پټ کړي، مبارزاتي ارزښتونه تياره وښايې، کوم چې هغه کلونو کې د جنګياليو د بيساري زحمتونو او ځان تيريدنې څخه تر لاسه شوي بې آغيزه کړي. له همدې کبله د دغه هڅو

په وړاندې د «حماســه مقاومت» له ســره چاپول ترسره شول. پرته له شک څخه د دې کتاب په متن کې مطرح شــوي واقعیتونه بیا ځلي په خپل وار کولی شــي د ایران د مبارزو او اګاه بچیانو د افکارو، اندیشو، مبارزو او زړور مقاومت روښانه کړي او د اسلامي جمهوري رژیم[۱۶] او ټول هغه کسان رسوا کړي کوم چې په مغرضانه توګه د ۵ لسیزې د سرتیرو انقلابیونو او اګاه مبارزینو پر ضد لیکنې کوي.

غــواړم یــو بل مهم ټکی هم پدې ځای کې ور زیات کړم؛ او هغه دا چې هغه څه چې په «حماســه مقاومت» کې راغلي، په ۵۰ کلونو کې د شــاه د رژیم د زندانونو د واقعیت یوه ګوښــه انځوروي. باید وپوهیږو چې په خلکو د وسله وال غورځنګ اغیزې، د ټولنې سیاسی چاپیریال وار په وار د رژیم په تــاوان بدلون کاوه. له دې کبله هــر څومره چې دغه مبارزه د پرګنو له ملاتړ څخه برخه منه کیدله په هماغه کچه یې ډیر ځوانان ځانته راکښل، په زندانونو کې د رژیم کړه وړه هم د مبارزینو په وړاندې لا زیات وحشتناک کیدل. نږدې تر ۵۲ کال وروسته، ربړونې او سختوالي په زندانونو کې زیاتوالی وموند او د رژیم په بې عدالته محکمو کې هم د مبارزینو په هکله ډیر لوړ احکام صادرول.

په پای کې د ځینو ټکو یادول اړین ګڼم:

۱ د دي کتــاب د نــوي چاپ په اصلي متن کې هیڅ ډول بدلــون ندی راغلی. یواځې، د «پیروزي» شعر د کتاب له اخر څخه د ښاروالۍ زیر زمیني اړوند د انفرادي سلول برخې ته لیږدول شویدی

۲ د پخوانــي چــاپ برخلاف چې په هغه کې د اړونــد متن ټول توضیحات د دي کتاب په پای کې یــو ځــای راغلي وه، پــه نوي چاپ کې هر څپرکي پــورې اړوند توضیحات د هماغــه څپرکي په پای کې لیکل شــویدي. ټول کتاب په ټولیزه توګه په پنځه (۵) څپرکیو ویشــل شــوي او په ترتیب سره د شمېرې له مخې په نښه شویدي. سر بیره پر دې د چاپ په پای کې د پخوانیو توضیحاتو پام کې ساتلو په څنګ کې یو څه کره توضیحات نور هم ور زیات شــوي چې هغه ټول په نښــې ځانګړي شوي او پخوانیو توضیحاتو پسې ورزیات شویدي. نوې کښته نی لیکنې (پاورقي) هم په همدې نښې مشخص شویدي.

## توضیحات:

۱– کولی شو په هغه وخت کې د زیارکښو پرګنو د مبارزو غوره بیلګې د رازلیق دهقاني خوځښت (رازلیــق، د اذربایجــان پــه ختیــځ کــې د یو کلي نــوم وه) او په کرج کــې د جهان چیــت د کارخانو د کارګرانو سوله یېز لاریون څخه یادونه وکړو چې د شاهي رژیم د وسله والو ځواکونو له خوا په وینو ولړل شــو. پدې هم باید پوه شــو چې په کارخانو کې تر بل هر ځای وحشــتناکه پولیسي شرایط حاکم

وو تر هغه ځایه چې د پرلت لپاره هر ډول هڅه په بی رحمانه توګه لکه (نیول، ربړول او له کار څخه شړلو) سره مخامخ کیدل.

۲- په اوس وخت کې د «حماسه مقاومت» ژباړې په انګلیسي، الماني، سویډني او کردي ژبو تر لاسه کیدای شي. د هغه فرانسوي ژباړه د سازمان یو دوست (فریدون ایل بیګي) تر سره کړې وه. هغه ټینګار کاوه چې د کتاب خپلې پای‌لیکونه د په کتاب کې ورزیات کړي خو کتاب هغه پای‌لیکونو سره داسې حجم وموند چې چاپ یې تقریباً ناشونی کړی وه. د کتاب فرانسوي چاپ لپاره رژې دبره (د دبره نوم په ایران کې زیاتره د «انقلاب در انقلاب» کتاب له مخې چې په هغه کې د کوبا انقلاب تجزیه او تحلیل شوی وه پیژاندل کیږي. دبره ظاهراً په ۵۰ کلونو کې چپ اړخ سره مینه درلوده. چې د کتاب سریزه یې لیکلې وه، خو وروسته بدله شو او کله چې میتران د فرانسې ریېس جمهور شو، هغه یې له سلاکارانو څخه یوه وه. په هر حال ما د هغې فرانسوي ژباړه د چاپ په بڼه و نه لیدله.

۳- د سلواغې تر پاڅون وروسته د دې پاڅون او کله چې ما خپل بیلتون د خلکو د فدایې چریکانو له غصب شوي سازمان څخه په علني توګه د ټولنې په کچه اعلان کړ د دغه واټن په منځ کې ډیرو مبارزو ځوانانو او نوي ځلمیانو ما ته په خپلو لیکونو کې د فدایې مشرتابه خطاب کړي وه. په خواشیني سره د سازمان نوي مسئولینو د زیاتو دموکراتیکو(!!) او پیاوړې روحیۍ (!!) له مخې هغه لیکونو څخه یو هم ما ته رانکړ. ما وروسته واوریدل دغه مسئولین د زیاتو لیکونو او تیلفونو څخه چې ما سره یې د اړیکې نیولو په خاطر استولي وه سربداله شویدي. البته پدې ځای کې هغه څه چې ما ته د پام وړ دي هغه یواځې د یو تاریخي واقعیت بیانول دي. یو دوه کاله مخکې، په یو انترنیټي سایټ کې له احساسه ډکه او واقعاً پارونکې لیکنه هم ولیده چې یو مبارز سره یې تړاو درلود. په ۱۳ کلنی کې یې د حماسه مقاومت کتاب لوستی وه او د دې کتاب په لوستلو سیاسی مسایلو سره بلد شوی وه. هغه چې په خلکو باندې د خمیني رژیم د برید د پیل په لمړیو کې نیول شوی وه او د خپل عمر خوږې شیبې یې د اسلامي جمهوري په جهنمي زندانونو کې تیرې کړې وې. هغه په خپل لیک کې یواځې غوښتي وه چې زموږ له ملګرو څخه په کاناډا کې د سیاهکل د مراسمو د لمانځنې په خاطر قدرداني وکړي. د دې ډول افرادو وجود پدې ډول لیکنو سره او دې ډول پوهاوي سره او دا چې ځینې شعرونه او شعارونه پدې کتاب کې مطرح شوې د هغه وخت (د اسلامي جمهوري د راتګ په لمړیو کلونو کې) د ځوانو مبارزینو له خوا د زندان د سلولونو په دیوالو لیکل شوي وه، د دې ډول ستر مسئولیت بار زما په اوږو اچوي. نور نو ښه پوهیږم چې «حماسه مقاومت» په هیڅ ډول یواځې ما پورې اړه نلري.

۴- ورک نومی انقلابي، د تل لپاره زما په ذهن کې ځانګړی ځای لري او زما په زړه کې یې درناوی او لوړ ارزښت راپارولی. خو داسې پیښې شول چې برعکس، زما نوم په ځانګړې توګه د کتاب په اړه چې ستاسې په لاس کې دی، جنبش کې په لوړه کچه مطرح شو، غوره مې وګڼله پدې ټینګار وکړم، ووایم چې دغه ستر ویاړ د همدغو نوم ورکو مبارزینو د سرښیندنې حاصل دی. په هر حال دا یو واقعیت دی چې «حماسه مقاومت» د ښځو او نارینه ؤ د حماسه زیږونکو مبارزو په بیلګې بدله شویده چې زموږ د ربړیدلو خلکو د پرتمین غورځنګ په یوې تاریخي دوره کې نوې او ځلانده پاڼې

ورزیاتې کړې. له همدې لید لوري باید د دې کتاب آغیزه د خلکو په غورځنګ کې د پام وړ وګرځي.

۵- په هماغه ۵۸ کال کې ما او نورو ملګرو په «چریکهای فدایي خلق» کې، (دغه نوم د سازمان لـه کلمې پرته د هماغه تشـکل لمړنی نوم دی چې د ګروه جنګل او د احمد زاده ګروه یو ځای کیدو سره منځ ته راغی. په همدې نوم موږ د سیاهګل ترحماسې وروسته په ټولنه کې د ۱۳ اعلامیو د خپرولو په څنګ کې خپل موجودیت اعلام کړ) تشکل وموند او د اسلامي جمهوري د رژیم په وړاندې موږ خپل دریځ اعلام کړ په خواشینۍ سره په دغو شرایطو کې عمومي انګېرنه داسې وه چې ګویا د «آزادي پسرلی» را رسیدلی دی د کیهان ورځپاڼي یوه ورځ یو مخ زما د کړنو او چلند د ستاینې په هکله له ملنډو ډک طنزونو ته ځانګړی کړی وه او لیکلي یې وه چې ګویا زما ورځ وسله په لاس پیل شویده او په همدې ډول به دوام کوي. لنډه دا چې ګویا زه په وسلې مېنه یم او هغه کارونه چې کیدای شي پرته له وسلې سرته ورسیږي، ما ټینګار کړی چې هرومرو باید د وسلې په زور سرته ورسیږي او دا ډول نور... ښکاره ده کیهان پدې ډول څرګندونو سره، چې زموږ د اعتقاداتو او افکارو له واقعیت څخه یې په فرسنګونو واټن درلود خپل ځانګړي اغراض سرته رسول او د هماغې دورې له ډیرو مهمو موخو څخه یې ذهنتونه بې لارې کول هغه واقعیتونه یې ککړول کوم چې موږ مطرح کول. په هغه دوره کې زموږ اصلي خبره دا وه چې تازه ځای پرځای شوی رژیم د خپل خلقي ضد ماهیت له مخې ژر یا په ځنډ په خلکو خپل یرغل پیل کوي، نو ځکه د کار بنسټ باید د وسله والو پرګنو په سازمان‌ورکونه متمرکز شي تر څو د دوی د پاڅون لاس ته راوړنې خوندي شي او پرګنې هغه وسله والې مخامخ جګړې ته چې په دوي تپل کیږي په وسلو سمبال او تیار اوسي (په ډیر افسوس چې لږ ځنډ وروسته رژیم خپلې وحشیانه بریدونه په ډیرې بی رحمي سره په خلکو پیل کړې، خلکو د دې بریدونو په وړاندې هیڅ ډول خپله سازماندهي نه درلوده البته پرته له څو ځایونو). نابېره «د خلکو د فدایي چریکانو سازمان» (چې اوس یې په سر کې سازشکار او غیر انقلابي ځواک ځای نیولی) د تبلیغاتو اصلي ټیکاؤ هم زموږ په هکله په هماغه بڼه وو. هغوی زه د یو احساساتي فرد په توګه چې ګواکې د تېرو خاطراتو په خاطر د اوسنیو شرایطو بدلونونه په پام کې نه ساتم له دې کبله وسله والی مبارزې پورې نښتې یم، انګېرنه کوله او زما په وړاندې یې لکه د«اشرف د ماشوم توب د دورې پاتې شوې» لیکنی خپرولې. په هغه زمانه کې د شاملو شعر «با چشمها» زما د حال تصدیق کوونکی وو. دغه شعر هغه شرایط او چاپیریال انځور کاوه چې په درواغو او چلوټو یې خلک دوکه کول او شپه یې چې د تورتم او اختناق سمبول دی«سمبل سیاهي و اختناق و...» په داسې حال کې چې اوس هم له هغه څخه دوه ډانګه «دو دانګ» واټن پاتې وه او شپه هم «له نیمایې څخه وتلې نه وه «شب از نیمه نیز نگذشته» خلکو ته یې د ورځې په عنوان زیری ورکاوه. لمر چې د خلکو لپاره پرته له شک څخه عدالت وو «افتاب که مفهوم بي دریغ عدالت بود» د لمر په شان یې په ښکاره ډول خلک غولولي وو. پدې منځ کې انقلابي ځواک چې دغه چلوټو او دغلکاریو ته متوجه دی، چیغه پورته کوي او وایې خلکو په دغه شیانو باور مه کوئ. خو دغلکاران د هغه ځواک په وړاندې تبلیغاتي غوغا په لاره اچوي او ملنډې پرې وهي.

واقعیت پدې ډول وه چې د شاه د دیکتاتوري رژیم نسکوریدو سره سم چې نیمه شپه لا هم تیره

شـوې نه وه. زموږ د خلکو دښـمنان (امپریالیستان او هغوی پورې تړلي پانګه وال) سره له دې چې د ایران د مبارزو خلکو له خوا ټکول شـوي وو، لا تر اوسـه تر پښـو لویدلي نه وو، چې د خپل نوي استازي،د اسلامي رژیم د بنسټونو د پیاوړتیا لپاره په هڅو بوخت وو. پدغه شان حالاتو کې هغه ټول ځواکونه چې رژیم پورې تړل شـوو مرتجعینو څخه نیولې تر هغه ټولو سازشـکارو ځواکونو چې زموږ په سـازمان کې یې رخنه کړې د هغوی تبلیغاتي غوغا او زموږ په ضد ملنډې وهل او د «خنداګانو شورماشور» اسلامي جمهوریت ته یواځیني موکه په لاس ورکړه تر څو یې یو دوه کاله وروسته وکولی شول د خلکو په هستي او ژوند د ویجاړونکی سیلاو څپې خپرې کړي.

۶– مرضیه اسکویي: د ۵۲ کال د غوایی په میاشت کې ملګری نادرشایګان او څو تنه نور ملګري د خلکو د فدایي چریکانو سـازمان سـره د مستقیمو اړیکو درلودلو په تړاو تر اعدام وروسته، مرضیه د ۱۳۵۳ کال د غوایي میاشـتې په شـپږمه نیټه له دښـمن سـره د یوې زړورې جګړې بهیر کې په شهادت ورسیده. پدې جګړه کې د رژیم وسله وال ځواک پداسې حال کې چې له وېرې یې هغې ته د نږدې کیدو جرئت نه درلود او د خپل ذهني تحجر له مخې یې د یوې زړورې جنۍ په هکله دغه ډول سـوچ نه درلود او انګیرنه یې کوله چې هغه یو نارینه دی او پړونی یې په سـر کړیده، د ماشـینداري په ډزو یې وینو کې لت پت کړه. ملګرې مرضیه په ځانګړې توګه د خپلو تلپاتې انقلابي شـعرونو له مخې ټولو مبارزینو ته پیژندل شوې څېره ده.

۷– نـږدې ۵۲ کال څخـه وروسـته، مـوږ د خپلـې اسـتوګنې ځای«ټیمي کور» څخـه د پوځي اډې (پایګاه) په عنوان ګټه اخیسته.

۸– علي اکبر(فریدون) جعفري: په ۵۰ کال کې د ملګري چنګیز قبادي په واسـطه سـازمان سـره یوځای شـو د ۵۰ کال په لمړیو کې تر نیولو وروسـته هغه له ملګرو حمید اشـرف او حسـن نوروزي سـره د سـازمان په مرکزیت کې د تازه ملګرو په سـازمان ورکولو او سـازمان په ساتلو کې ډیر مهم نقش ولوباوه.. د هغه ټول مبارزاتي او له مسئولیته ډک ژوند د ۵۴ کال د غوایي میاشت کې پداسې شـرایطو کې پای ته ورسـید چې د ډیر کار له امله د زیاتې سـتړیا او ستوماني په دلیل د موټر چلولو په ټکر کې ټپي او دحرکت کولو وس له لاسـه ورکړ. نو ځکه یې له دښـمن څخه د ځان خلاصون په خاطر خپل ملګري څخه وِغوښـتل چې په ګولۍ یې وولي او خپله د مرګ ځای څخه بهر لاړ شـي. دا د ملګري جعفري وروستنی نظامي امر وو.

۹– پدې واقعیت د ټینګار له کبله لازم ګڼم ووایم چې په ورسـتیو کلونو کې یو شـمیرمرتجعینو او دارمدارغوښتونکو هڅه کوله د «سولې» او «صفا» غولونکي افکار د ربړونه ګر او قرباني تر منځ خپاره کړي او د ستمګرانو په وړاندې د ستمکښانو غوسه ناک اور مړ کړي تر څو په زندانونو کې د ساواک د مزدورانو وحشتناک جنایات پټ او خاورو لاندې کړي. پدې چوکاټ کې هغوی په بی شرمه توګه په «حماسـه مقاومت» کې درج شـوي واقعیات هم خپله موخه ګرځوله او هغه یې «مبالغه آمیز» او «له ځانه جوړ شوي» (خود ساخته) بللي دي.

۱۰– د بیلګـې پـه توګـه د ۲۳ ملګرو د محاکمې په اړه (هغه کتـاب چې زما په واک کې دی چاپي تیروتنـه منځ ته راغلې او د ملګرو شـمیر ۲۱ کسـان ذکر شـوي دي)، پداسـې حـال کې چې د هغې

محاکمې مبارزاتی چاپیریال په سمه ستایل شویدی او هغه ډول چې ما وروسته د هغې تاریخي محکمې له ځینو پاتې شوو کسانو څخه نیغ په نیغه اوریدلي، هغوی په واقع کې دشاهي رژیم ناعدالته محکمه د رژیم د محاکمه کولو لپاره په عدالتې محکمې بدله کړه، خو په ځینو برخو کې اوریدل شوې خبرې له واقعیت سره سمون نلري. لکه د بیلګې په ډول«ملګري احمدزاده شخصاً حسین‌زاده مزدور ته سخت غوږ مروړی (ګوشمالي) ورکړه» او یا دا چې «د ملګرو زیات شمیر مخکې له اعدام څخه تر لاندي په شهادت رسیدلي دي» پدې ډول ډغه خبره چې ملګرو په هغې نمایشي او ساختګي محکمې کې د اعتراض ښوولو په توګه د جاري دود برخلاف له خپلو چوکیو پورته نشول، یا دا چې یو لېږغښتلي ساواکي په غوسه ملګری مسعود احمد زاده له خپل ځای څخه پورته کړ او په بهر کې یې د هغه په وهلو او ډبولو پیل وکړ، یا دا چې په هماغه نا عدالته محکمه کې ملګرو د ساواکیانو د بد چلند په غبرګون کې، د سازمان سرود (زه د خلکو فدایې چریک یم، زما ځان دې له خلکو جار وي...) په ډله ایزه توګه وو‌ایه او اصولاً د همدې ډول کړنو د دلیل له مخې یې هغوي وروستنیو جلساتو ته په ډله آیزه توګه محکمې ته نه راوستل او داسې نور، دا ټولې رښتیا دي او بیان یې عین واقعیت سره سمون لري.

۱۱– شیرین معاضد: د ځنګل ډلی څخه یواځنی پاتې شوی ملګری وه چې نه یواځې یې د خپلو بې دریغه زحمتونو له مخې بلکه د خپلو واقعي کمونیستي ځانګړتیاو په درلودلو سره یې د ۵ لسیزې په لړ کې د سازمان په بیا رغونې کې ستره آغیزه درلوده او هغه یې له ټوټه کیدلو وژغوره او د هغه د پیاوړتیا لپاره یې خپله دنده په ښه توګه سرته ورسوله او په هغه ورځ چې ملګرې مرضیه اسکوني شهیده شوه، د ساواکي مزدورانو له خوا ونیول شو او د هغوی تر وحشیانه ربړونو لاندی یې ساه ورکړه، د هغه د ربړول شوي تن انځور د کب میاشی ترپاځون وروسته د خلکو لاس ته راغی.

۱۲– ابراهیم پور رضای خلیق: یو له ارزښتناک ملګروڅخه دی، سازمان سره تر یو ځای کیدو د مخه د تهران په صنعتي پوهنځي کې محصل وه. پداسې شرایطو کې چې د مشهد په ښار کې دښمن تازه د چریکانو فعالیت ته متوجه شوی وه او په ښار کې وضعیت په بشپړه توګه پولیسي شوی وه د ۵۲ کال د کب میاشت کې ونیول شو او تر ډیرو سختو وحشیانه ربړونو لاندې شهید شو.

۱۳– اسماعیل خاکپور: د صنعتي پوهنځي محصل او د ابراهیم هم دوره وو. د ۵۲ کال د کب په میاشت کې له یو ملګري سره یوځای تر نیول کیدو وروسته هماغه وخت ساواک د مشهد په ښار کې د چریکانو له شتون څخه خبر شو، اسماعیل وروسته تر نیول کیدو سختو ربړونو لاندې ونیول شو. ساواک هغه د دوه کالو په موده په ځانګړي سلول کې بندي وساته چې په هغه زمانه کې یي سابقه نه درلوده. هغه چې په عمري بند محکوم شوی وه، د ګڼو پړګنو د پاڅون په پایله کې آزاد شو. د دې موضوع په هکله چې هغه وروسته بیا د اسلامي جمهوري رژیم په اسارت کې راغی او کوم برخه لیک سره مخامخ شو، دقیق مالومات په لاس کې نشته.

۱۴– فرامرز شریفي: سازمان سره تر یو ځای کیدو د مخه د تهران په یو پوهنتون کې محصل وه. هغه په ۵۱ کال کې د شاه رژیم مزدورانو سره په مخامخ جګړه کې په شهادت ورسید.

۱۵– کیومرث سنجري: د خلکو د فدایې چریک په عنوان د ژوند زیاته برخه په مخفي ډول درلوده

(نږدې شــپږ کلونه). هغه مخکې تر دې په تهران کې د علم او صنعت د پوهنځي په دريم ټولګي کې محصــل وه. د ۵۰ کال د وري پــه مياشــت کــې د محصلينو د اعتراضونو او پرلتونو تر شــا وپيژندل شــو او مخفي شــو، وروســته د خلکو د فدايې چريکانو ســازمان سره يو ځای شو. د ۵۵ کال د کب د مياشــتې په ۹ ورځ چې د مشــهد په پايګاه کې فعاليت درلود او په تهران کې ملګرو ســره د تماس په خاطر تلفنخانې ته تللی وه، په هماغه ځای کې د رژيم مامورانو سره مخامخ شو آو په ډله ايزه توګه ترينه چاپير شول. خو هغه د دې لپاره چې د دښمنانو په لاس ژوندی اسير نشي پدې بريالی شو چې د سيانور تابليت په خوړلو له افتخار څخه ډک خپل ژوند ته پای ورکړي.

۱۶- په وروســتيو څو کلونو کې د خلکو فدايې چريکانو او د ۵ لســيزې نورو انقلابي مبارزينو په هکله د اســلامي جمهوري د اطلاعاتو وزارت له خوا (همدارنګه ظاهراً د مســتقلو افرادو له خوا کوم چې د ورځې ډوډۍ يې د تحريف شوو افکارو د خپرولو له لارې البته د وخت د حاکمانو له خوا تأمين کيږي او د يو شمير هغو کسانو له خوا چې (ګويا په تېر کې يی تن د چا په خبره د فدايې مبارزينو تن سره لګيدلی وه) کتابونه خپاره شويدي، د يو موټې درواغو په خپرولو زيار باسي چې تاريخ د اوسني ځوان نسل لپاره سرچپه او غير واقعي په ګوته کړي. په څنګ کې د شرايطو تر شديد سانسور لاندې کتابونه يا د ځان سانسورولو يا غواړی که نه غواړی د موجوده فضأ سره په سمون کې خپريږي، البته کله ناکله د حقايقو ښکارندويې هم کوي.

# د مقاومت حماسه

«په زرګونو زرګونو شهيدانو خپل ځانونه د خلکو د ګټو په لار کې په اتلولۍ سره جار کړيدي پرېږدئ د هغوی بيرغ اوچت کړو او په هغه لار چې د هغوي په وينو سره شويده مخ په وړاندې لاړ شو.»

«ملګرى مائو»

د خلکو فدايي چريک
ملګرې اشرف دهقاني خبرې کوي

## ډالۍ:

... د خلکو هغه ټولو رښتینو مبارزینو ته چې په اتلولۍ سره یې د شاه تر فاشیستي رېږونو لاندې او د جګړې په ډګر کې په شهادت و رسیدل او د خپلو هیلو سور بیرغ یې اوچت وساته.

... د خلکو ټولو هغه سرتېرو جنګیالیو ته چې په مېړانه دښمن سره په مخامخ جګړه کې په شهادت رسیدلي او زموږ د خلکو د آزادۍ بخښونکي انقلاب نیالګي یې اوبه کړل.

... ټولو هغو سیاســي بندیانو ته چې په ټینګار او مقاومت یې د خلکو هیلو ته پیاوړتیا وربخښلې.

... ټولو هغو مبارزینو ته چې د خلکو د آزادۍ بخښونکي انقلاب په لار کې ګام ایښودی دی.

**ایران، زما هیواده!**<br>
**له وینو لت پت خلیج څخه**<br>
**تر آسمان ښکالي مغروره غرونو پورې**<br>
**د ځنځیري سپیانو د غپا اواز اوریدل کیږي**<br>
**ایران، زما هیواده!**<br>
**وګوره چې کرغېړن ځناور څه ډول**<br>
**ستا په زرخیزه کروندو کې**<br>
**د وینو د پوښې په کرهڼه بوخت دي**<br>
**وګوره ستا د رڼو چینو اوبه په څه ډول**<br>
**خسا ډنډونو ته**<br>
**لیږدولي دي**<br>
**خو ایران، ای زما هیواده!**<br>
**لوړه کوم**<br>
**د شپې چوپتیا، د ګولۍ په آواز**<br>
**د شپې تیاره، د ګولۍ په رڼا**<br>
**او د شپې ساړه د ګولۍ په سوروالي**<br>
**ځواب وایم**

# سریزه

زموږ په هیواد کې د ایران د خلکو نوې آزادۍبخښــونکي مبارزه د اوســني عصر د تاریخي بهیر د واقعیتونو د عیني تحلیل پر بنســټ پیل شــوه چې زموږ خوځښــت ته یې د نړۍ په ګوټ ګوټ کې د خلکو د آزادۍ بخښونکي غورځنګ په لیکه کې ځای ور کړ.

زموږ پیړۍ، د اســتعمار تر واک لاندې د اســارت له بند څخه د خلکو د آزادۍ پیړۍ ده، د خلکو د آزادۍ بخښونکو خوځښتونو پیړۍ ده، داسې ورځ نشته چې په هغې کې د نړۍ په دغه ګوټ یا هغه ګوټ کې د امپریالیزم د ګټو په وړاندې د یوې نوې یرغلیزې جبهې خبر تر غوږو را نشي.

دا دی چې اوس د آسیا، افریقا او لاتینې امریکا خلک راپورته شوي او له هرې خوا د ماشیندارو بغارې او د آزادۍ بخښونکو غورځنګونو چیغې غوږونو ته رسیږي. په مقابل کې د ستم لاندې خلکو د دغــه تاریخي حرکت په وړاندې، وینې څکونکی امپریالیزم او د هغه لاســپوڅي مرتجعین د مرګ تر شــیبې د قصابۍ ســاطور په مخکه نه پریږدي. هغوی مذبوحانه هڅې کوي تر څو د خلکو وســله وال مخکښــان چې قدرت یې د خلکو د قدرت څرګندويې کوي له منځه یوســي او د خلکو د قدرت په وړاندې، او د دغه را روان تاریخي ویجاړونکي ســیلاو په مخ چې د هغوی نظام او سازوســامان له منځه وړي بندونه جوړ کړي. خو نور له مرګ څخه ویره نشته، د درې قارو د خلکو د اتل بچي شهید ملګري ارنســتو چه ګوارا هیلې حقیقت ته رســیدلي دي. کله چې امپریالیزم ســره د جګړې په ډګر کې یو جنګیالی په خپلو وینو کې په مځکه پریوځي، د بل جنګیالي لاســونه شــته چې د وسلې پورته کولو لپاره را ودانګي تر څو دغه مقدسه جګړه چې د خلکو د خلاصون لپاره پیل شویدی په ټینګار ســره ادامه ورکړي. او پدې تاریخي ګذرګاه کې د خلکو ګڼ پوه او زړور بچیان په خاورو او وینو کې لت پت راښکول کیږي.

چریکي خوځښــت زموږ په هیواد او نورې نړۍ کې د یو شــمیر عیني او ذهني شــرایطو د رشــد زیږنده ده. امپریالیزم او داخلي ارتجاع ســره د خلکو د تضادونو ټینګښــت او ورپســې په ایران کې

د کمپرادورۍ بورژوازي د واکمني راتګ او د امپریالیستي انحصاراتو له خوا زموږ دخلکو سخت سیستماتیک سیاسي او اقتصادي زبیښاک او همدا رنګه زموږ په خلکو د امپریالیستي کلتور تپل، د رژیم د ظاهري رفرمیستي کړنلارو ماتیدل کوم چې د انقلابي پتانسیل د کمزوري کولو لپاره په لار اچول شوي وه، په ایران کې بیساري سیاسی چوپتیا (خفقان) چې په بشپړه توګه یې له خلکو څخه د هر ډول علني او غیرعلني مبارزې امکان اخیستی وه، او همدا ډول د خلکو د عملي تجربو له مخې د هغه بې ګټې او ماتې منونکې خط مشې د ماتیدلو شونتیا چې یواځې په مسالمت آمیزې مبارزې ډډه لګوي، د منځني ختیځ او د درې ګونو قارو د خلکو د انقلابي حرکت آغیز، د ایران د ځوان نسل تاریخي او سیاسي پوهاوی او د هغوی له خوا د تېرو مبارزاتي لارو او تجربو جمع بندي چې کیدای شي د خوځښت لپاره یواځینی لمړنی تکیه ځای وي او په ایران کې د وسله وال خوځښت د پیل یواځیني اساسي لاملونه وګڼل شي.

خو خوځښت څخه تر مخه، انقلابیون لږ وو چې کولی یې شول د راتلونکي افق رڼایې د اوسني تورتم له تل څخه تشخیص کړي او همدوی ول چې حرکت یې پیل کړ. دغه حرکت پداسې شرایطو کې پیل شو چې دښمن له نورو څخه خپل ځان پیاوړی انګیره او امپریالیستانو زموږ هیواد په بریا سره د ثبات او چپتیا جزیره ګڼله.

پداسې شرایطو کې چې ډیرو سیاسي پخ آندو د ایران په ټولنې کې روان تکاملي سیر د خپل ناسم درک له مخې په دغې معروفي جملې «اوس په ایران کې هیڅ کار نشو کولی» ځان بسیا کاوه. پداسې شرایطو کې چې ډیری ذهني پال او الګو سازان د ایران د ټولنې واقعیتونو څخه بې خبره ول او د دې وس یې هم نه درلود چې په ایران کې د سیاسي چپتیا د ماتولو لپاره د حل عملي او غوڅه لار په ګوته کړي او د فرضي ذهني مشابهاتو په وړاندې کولو یې د ایران اقتصادي او ټولنیز شرایط ځیني هغه هیوادونو سره چې په بریالیتوب یې خپل انقلاب سرته رسولی، له پخوا جوړې شوې الګو کوم چې زموږ د هیواد ځانګړو واقعیتونو سره سمون نه درلود ذره په ذره جایز او روا بلل، او زموږ د هیواد د شرایطو له مشخص تحلیل پرته او د ملګري مائو دغه مدبرانه وینا ته چې «عمل د حقیقت ملاک دی» په نه پاملرنې سره دګم وار خپلو ناسمو اندیښنو پورې نښتي ول، دا چې نه یې شو کولی مثبت او عملي ګام پورته کړي درس یې نه اخیسته، پداسې شرایطو کې ډیری فرصت پال د مناسبو شرایطو په انتظار کې چې مالومه نه وه هغه به کوم وخت منځ ته راځي او پدې انتظار کې چې خلک به یوه ورځ خپله پخپله په حرکت پیل کوي د خوځښت پیل شاته تمبوي او له سپکاوی ډک بې ګټې ژوند د مزدور شاه تر ولکې لاندې تیروي او په اصطلاح په متانت سره یې خپل خاموش، بې حرکته او له

فســاد څخه ډک ژوند ته ادامه ورکوله چې په واقع کــې د خود بخودي جرياناتو لارويان وو چې حتی مشــخص وجود يې هم نه درلود آو نه يې کولی شــو منځ ته راشــي څکه چې امپرياليزم او ارتجاع په زرګونو اګاهانه توطئو او زرګونو خلقي ضد نقشــو د هغه رشــد او پراختيا څخه مخنيوی کوي په هر حال پداسې شرايطو کې چې د تيرو دردوونکو ماتو خاطرات د خلکو په ذهنونو تور سيوری غوړولی وه، هيلي مړاوې او زړونه ســاړه ول، زموږ د هيواد ځوان نســل پاڅون پيل کړ، داسې ځوان نسل چې په دغه پړاو کې فکري او عملي بلوغ ته رســيدلی وه چې و يې کولی شــول خپل تاريخي رسالت پيل کړي، داســې ځوان نســل چې په پاک زړه او انقلابي رښــتينولۍ د تيارو له منځه راوځي او د انقلاب وسله په اوږو کوي او تر ستم لاندې د خپلو خلکو د مبارزې لار پرانيزي.

هغه ځوانانو چې د شــلوکلنو راپدې خوا د ســپکاوي محوه کولو په خاطر، د ناهيليتوب او شکونو لــه منځــه وړلو په خاطر، د خپکان او چپتيا ماتولو پــه خاطر، له عمل څخه بې تړاوه تئوري ګانو ته د پای ورکولو په خاطر، د الګوســازي او د سياسي دنباله روي محکومولو په خاطر، د اپورتونيستي خسا ډنډونــو محوه کولو په خاطر، په غوڅه توګه راپورته شــول تر څــو د خپلو خلکو هيلو او ارماندونو ته چې هماغه د ارتجاع او امپرياليستي واکمني له منځه وړل او په هيواد د خلکو حاکميت دی تحقق ورکړي.

دغه اتل نســل پرتــه له هيڅ ډول ملاتــړ کوونکي، پرته د هــر ډول عملي تجربــې درلودلو، پرته د پخوانيــو لــه هر ډول تجربو څخه د ګټې اخيســتنې پــه کار پيل وکړ. څکه چــې پخوانيو مثبتې او پنځاونکې (خلاق) تجربې چې د اوس لپاره ګټورې وای په ځای پريښودې نه وې. له دې کبله ځوان نسل په پخوانيو لاسته راوړنو له تکيه کولو پرته خپل کار صفر څخه پيل کړ.

پخوانيو مبارزو يواځې دومره وکولی شــول چې دغه نســل ته وښــايې، چې څرنګه په خلکو تکيه نه کول او هغوی په ســمه توګه نه ســمبالول مبارزې له ماتې ســره مخامخ کوي. څرنګه چې سياسي درويزه ګي او د يوې مســتقلې خط مشــې چې د ايران له ځانګړو شرايطو سره سمون ولري په لاس کې نه نيول، کولی شــي موږ په پټو ســترګو د نورو د ګټو په خاطر له دنباله روي سره مخامخ کړي. د خلکو په منځ کې د واقعی سياســی يووالي نه شــتون د مشترکو دښمنانو په ضد د خلکو مبارزې تيت او بې آغيزې کوي. څرنګه چې د غوڅې او انقلابي زړورتيا نه شتون او د مخکښو ځواکونو په نقش نه باور کول کولی شــي د دښــمن لپاره د را دانګلو لار پرانيزي او هيواد په دواړه لاســونو دښــمن ته وســپاري. څرنګه د يو مخکښ رينښتوني انقلابي ســازمان نه شتون چې د انقلابي عمل له بتې څخه وتلی وي، نه په نمايشــي سياســي لوبو کې، نه شتون يې کولی شي د خلکو بې پايه انرژي ضايع کړي

او د خلکو مبارزه ماتې او ناکامي سره مخاخ کړي. حتی که د خلکو د سلګونو اتلو بچیانو زړورتیا او ټینګښت یې هم ملاترړی وي.

پدې ډول زمورږ دهیواد د ځوان نسل درنه دنده د پخوانی ډیران «اوژاپاس» پاکول او پر ځای یې په تش لاس له ایمان او هیلو څخه په ډک زړه زمورږ د خلکو د راتلونکې مبارزې بنسټ جوړولو په خاطر د عمل په ډګر کې پل کیښود، د انقلابي عمل په بتې او د سیاسي چپتیا په تیاره کې د اور او وینو تر چتر لاندي سمه لار ومونده او هغه کسان چې خوځښت سره یوځای وه په خپلو سترګو یې لیدل او په ټول وجود یې لمس کول چې پولادو ته په څه ډول اوبه ورکول کیږي.

دغه مبارز نسل چې په خپل ځان بسیا دی، ټول شیان په خپله جوړوي. پرته له دې چې بل ځواک یې ملا تړ وکړي یواځې د ستم لاندې خلکو ملاتړ ورسره وه. هغوی باید خپل هر څه په خپله راټول کړي. ټول امکانات له سره وپنځوي، حتی د دې لاري د بنسټ جوړولو ډیر کوچني امکانات زده او تر لاسه کړي او په یو خلاق او پنځوونکي موجود بدل شي.

دغه موجود چې خپل هر څه له لاسه ورکوي بیا ځلي هر څه تر لاسه کوي. د ایران د تاریخ دغه پنډه پدیده چې اوس یې مادي او عملي واقعیت موندلی د امپریالیزم او داخلي ارتجاع زړونه لړزوي. دغه ځوانانو د دښمن په زړه کې ویره او وحشت اچولی. داسې ځوانان چې بې باکه، هیله ناک او د خپلې لارې په بریا ایمان درلودلو سره مخ په وړاندې دانګي. داسې ځوانان چې د خپلو خلکو د مبارزې په لار کې هیڅ ډول ستونزو څخه ویره نلري. داسې ځوانان چې د تاریخي رسالت دروند پیټی یې په اوږو اخیستی او د خپل هیواد د خلکو منځ ته تللي تر څو د خلکو په منځ کې مبارزې ته ځای ورکړي او ورله پراختیا ورکړي او دغه حرکت په عمل کې سرته ورسوي نه په خبرو. داسې ځوانان چې لږ خبرې کوي او ډیر عمل کوي او دا دی د هغوی د قدرت او پیاوړتیا طلسم.

ملګرې اشرف دهقاني زمورږ دهیواد دمخکښو ځوانانو د ټولګې یوه نښه او ساری ده.

ملګرې اشرف دهقاني د ۵۰ کال د ورې په میاشت کې کله چې د یو چریک د پیژندنې د ماموریت په سرته رسولو بوخت وه، د رژیم د مزدورانو له خوا د یوې نا انډولې نښتې په جریان کې ونیول شوه او د فاشیستي ډیرو وحشیانه ربړونو لاندې ونیول شوه خو د خپل ایمان، صداقت او انقلابي قاطعیت لـه مخې سختې ربړونې زغم کړې خو شونډې یې د یوې خبرې لپاره هم بیرته نکړې. هغه یې له ډیرو ربړونو وروسته محاکمه کړه او د لسو (۱۰) کلونو په بند محکومه شوه. ملګرې دوه کلونه د شاه د رژیم په زندانونو کې تیر کړل او بالاخره د ۵۲ کال د فروردین په میاشت کې د یو مناسب فرصت څخه په ګټه اخیستو له زندان څخه وتښتیده او ځان یې د فدایي چریکانو لیکې ته ورساوه. دا

دی اوس د نــورو ملګــرو په څنګ کې اوږه په اوږه د ارتجاع او امپرياليزم په وړاندې مبارزې ته ادامه ورکوي او په غوڅه توګه لکه د نورو جنګاليو چريکانو په شان د خپلې وينې تر آخرين څاڅکي پورې ځان د هيواد د آزادي بخښونکې مبارزې لپاره جاروي.

د ملګرې اشرف دهقاني غوچ دريځ د رژيم د مزدورانو او په ايران کې د امپرياليزم د کارمندانو په وړاندې يو بيســاري دريځ دی. زموږ د خلکو ډير بچيانو د ايراني فاشيســتانو او د هغوی د امريکايې بادارانو د منځنيو پيړيو تر وحشــيانه ربړونو لاندې خپله زړورتيا په ښــکاره توګه څرګنده کړيده، هغه شــان چې د غورځنګ له ښايســته نوم ســره جوړيږي. خو موږ فرصت تر لاسه کړی چې د ملګرې اشرف دهقاني مبارزه غوښتنه اومقاومت چې د نوي ايران د انقلابي نسل د زړورتيا بيلګه ده د ايران د خلکو چوپړ ته او د ټولې نړۍ افکارو ته ډالی کړو.

**په ټينګ ايمان زموږ د بريا په لار**
**د خلکو د فدايې چريکانو سازمان**

# ژوندلیک

ملګـــرې اشـــرف دهقاني د یوې بیوزلې کارګرې کورنۍ لــور ده. کوم وخت چې هغه نړۍ ته راغله پـــلار یـــې د میراو (میرآب) دنـــده درلوده او تر هغه د مخه هم میراو وه، لـــه دې کبله یې ثابت کار نه درلود، اته (۸) کسیزې کورنۍ خپل ژوند د ډول ډول کارونو په ترسره کولو تیر کړی وه. د تار اوبدلو پـــه کارخانـــه کې کارګري، څاه کیندل، باغواني د دې کارونو له ډولګې څخه وو. ښـــکاره ده چې دغه ډول کارونـــو یو هم د کورنۍ د ژوند لپاره بســـنه نه کوله. له دې کبلـــه د کورنۍ مور او اولادونو چې د کار ســـرته رســـولو وس یې درلود باید په ګډه د کور په لګښت کې برخه واخلي چې همدا ډول هم وو. کله به مشـــرانو ورونو دغه دنده د کار کولو له لارې ســـرته رسوله او کله به خور او مور په دوک باندې د تار اوبدلو له لارې د کور په معشـــیت کې مرســـته کوله. د میراوي په کار کې د منلو ده چې شـــپه او ورځ اوبو سره کار ولري او په شپو شپو د اوبو په څنګ کې بیده شي. پدې ډول پلار په ټول ژوند کې فقر او کړاونه تجربه کړي وو. له دې ســـره ســـره له هغه کسانو نه وه چې له کړاونو ډک ژوند آسماني برخه لیک وګڼي. هغه د خپل ژوند او د ځان په شـــان د نورو کارګرانو د تیاره ژوند لامل په ښـــه ډول پیژنده او پوهیده چې طبقاتي دښمن یې په همدې مځکه ژوند کوي، دی پخپله او نور ټول زیارکښان هم د همدې مځکې په ســـر ژوند کوي. پدې ډول بې پایه فقر او زحمت یې د عمر له پیل څخه د یو رېښتیني ښوونکي په توګه نقش درلود، پوهیده چې د طبقاتي ټولنې واقعیتونو د ده په زبیښناک او ستم کې مرســـته کړیده. په عین بیسیوادي کې له سیاسي پوهې برخمن وه. همدا ول چې له هرې ممکنه لارې دښـــمن ســـره د مبارزې په هڅه کې وه. د اذربایجان د ۲۵ ـ۱۳۲۴ کلونو په پیښـــو کې کله چې دموکرات فرقه جوړیده د خلکو په کتار کې ولاړ وه. د دولتي ځواک تر وحشـــیانه برید او د رېښـــتینو مبارزینو تر وژلو وروسته د هغه کوچنی کور د رېښتینو مبارزینو لپاره چې د خونړي دښمن له منګولو څخه خلاص شوي ول پټنځای شمیرل کیده.

هغه مسایل چې کورنیو کې پرې بحث کیده، سیاسي رنګ درلود او زیاتره په هغه خاطراتو خبرې

کیدلې چې د ښـکیلاکګرو ماهیت، د هغوی سـتمګري او د ټولنې په ډېرو محرومو وګړو سـتم او ښکیلاک په ډاګه کاوه. له دغې طبقاتي کرکې او غچ سره سره، هغه څه چې مور او پلار او د هغوی په شان نور کسان یې د بډایانو او شتمنو په وړاندې له ښکاره بغاوت او غوسې څخه شاته کول هغه د اوږدو کلونو ډېر سپکاوی او ناخوالي وه کوم چې په هغوی کې یې شتمن او بډایان ډېر زیات ځواکمن ګڼل او په ځان یې د یو ډول ناباوري او بې وسۍ احساس منځ ته راوړی وه. پرته له شک څخه د هغې ورځې ټولنیز جوړښتونه او مبارزاتي جریانونه کوم چې له ماتې سره مخامخ شوي ول، همدغه په ځان کې د بې وسۍ کمزوری احساس او ځانته کم ارزښت ورکول وه چې په هغوی کې یې زور اخیستی وو.

له یوې خوا د ژوند ډېرو کړاونو او له بلې خوا موجوده اسـارت‌باره شـرایطو سره د آزادۍ غوښتنې روحـي تضاد، پلار په یو غوسـه ناک موجود بدل کړی وه، آن تر هغه ځایه چې کیدای شـي هغه بد خویه وشـمیرو، په ټولنه کې د هغه د مبارزه پالو غوښـتنو نسکورولو، د هغه چلند د کورنۍ غړو سره په تاوتریخوالي او سـوړتوب کې څرګندیده او د دې ډول چلند ثمره سـره له دې چې د کورنۍ غړو یو بل سـره مینه درلوده، خو هغوی هیڅکله خپل محبت یو بل ته نه په ډاګه کاوه. ملګرې اشـرف پدې ډول کورني چاپیریال کې په ۱۳۲۸ کال نړۍ ته راغله. او چا د هغې اړتیاو ته د پوره لاسرسي فرصت نه درلود. له دې کبله له هماغه پیل څخه د هغې لپاره داسـې شـرایط برابر ول چې وکولی شـي د بل چـا له ملاتړ او خواخوږي پرته په هرې برخـه کې په خپل ځان ډاډه د مبارزې ډګر ته ننوځي. خپلې سـتونزې پخپله حل کړي، په ورته وخت کې ورځ تر بلې د ژوند له ترینګلو او کړاونو ډک واقعیتونو سـره اشـنا شي. په تېره بیا کله چې پلار یې د هغې له پیدایښت وروسته د تل لپاره د حرکت کولو وس له لاسـه ورکړی وه او د پښـو درد له کبله تل بستري وه. که څه هم کورنۍ یې په تیرو وختونو کې هم کله ناکله له تش لاسـي سـره مخامخ کیده. خو دا ځل هیله نه کیده چې پلار به بیا وکولی شـي کوم کار په غاړه واخلي.

مشـرې خور د کار په څنګ کې خپل تحصیل ته ادامه ورکوله او ملګرې اشـرف پدې وخت کې دولس کلنه وه، مور یې له خور سـره چې تازه ښـوونکې شوې وه یو لرې کلي ته ولاړه او هغه نوره هم یوازې پاتې شـوه. د کورنۍ د ټولو غړو په منځ کې ملګری بهروز هغه کس وه چې د ملګرې اشـرف زیات محبت او باور یې ځانته تر لاسه کاوه. هغې ملګری بهروز یو سپیڅلی موجود پیژنده چې نړۍ یـې د نورو معمولي خلکو له کوچنۍ نړۍ څخه ډېر توپیر درلود. ښـکلې پراخه او له مینې ډکه نړۍ چې ملګري ډېر غوښتل دغه ډول نړۍ ته د ننه شي.

په کورنۍ کې سیاسـي بحثونو د هغې پام ځانته راکشوه. ملګري بهروز له هماغه لمړیو څخه هغه

له کتاب او کتاب لوستلو سره مینه نا که وروزله، ملګرې کتابونه په ډېر شوق لوستل او ورځ په ورځ یې ټولنیزه او سیاسي پوهه زیاتیده. هغې ورو ورو خپل طبقاتي دښمن چې د ډېرو پرګنو د فقر او کړاونو اصلي لامل دی وپیژانده او له هماغه پیل څخه یې د هغې په زړه کې کرکه او کینه غښتلې کوله.

د مدرسې په چاپیریال کې تبلیغاتي کړنلارې او فرمایشي جشنونه او مېلې دهغې له روحیې سره سمون نه درلود او هغې له هر پلوه نشو کولی چې خپله کرکه او نفرت له دغه کړنلارو څخه پټه وساتي. د سیاسي فضا او طبقاتي شرایطو په خاطر چې د کورنۍ په چاپیریال یې سیوری غوړولی وه، او هغه مسایلو چې د هغې ذهن یې له ځان سره مشغول کړی وه، له هغه مسایلو څخه ډېر اوچت او جـدي وه کوم چې ټولګیوالو او همزولو یې پر هغو خبرې کولې. دهغې نړۍ د بورژوازي له خلخنده مشغولتیاؤ لکه تقلیدي مدّپالنه او داسې نورو فکري درغلیو څخه ډېر زیات واټن درلود. همدا سبب وه چې هره ورځ به یې ملګري بهروز څخه د ټولنیزو او سیاسي مسایلو په هکله پوښتنې کولې او ملګري به په ډېر ځېر او حوصلې ځواب ورکاوه.

ملګرې صمد بهرنګي او کاظم سعادتي د ملګري بهروز ډېر نږدې دوستان ول او ملګرې اشرف به هغوی سره د ډېر محبت او درناوي احساس کاوه او هیله یې درلوه کله چې لویه شي ژوند او افکار یې د هغوی په شان وي. له هغه وخت څخه یې چې سیاسي پوهه تر لاسه کړی وه انقلاب او انقلابیتوب ته یې فکر کاوه. که څه هم انقلاب د هغې لپاره یو ګنګ مفهوم درلود، خو دغه ټکی د هغې لپاره ډېر روښانه او ملموس وه چې باید خپل ژوند د انقلاب په چوپړ کې کیږدي. څه ډول؟ نه پوهیده.

خپلو ټولګیوالو ته پوهاوی ورکول یو له هغه لارو څخه وو چې هغه یې موخې ته رسوله او دا آسانه لار نه وه. ځکه چې ټولګیوال یې د هغې له فکر او علاقې سره نابلد وو. کورني او ټولنیز شرایط او د پوهاوي تبلیغات کوم چې د ژوند لازمه مسایلو څخه د بې خبره انسانانو د روزنې لپاره په پراخه توګه جریان لري، له هغه مطالبو څخه چې زده کوونکو ته سمه پوهه ورکوي، د درسي برنامو تشوالې، دغه ټولو یوبل ته لاس ورکړی وه او ځوانان یې په فرسنګونو فرسنګونو له حقایقو څخه ګوښه ساتل او ملګرې په لږ صبر او زغم سره چې د هغې د کم عمر زیبنده وه، نه یې شو کولای چې په خپل زړه خپله موخه پر مخ یوسی. له دې کبله په هره کچه یې چې د خپلو همزولو له نړۍ څخه واټن پیدا کاوه او هره ورځ د ملګرو بهروز، صمد او کاظم نړۍ ته پرمخ تلله بیا هم خپلو همزولو ته د پوهاوي ورکولو له هلوځلو نه ناهیله کیده او پدې لار کې یې له ټول ځواک څخه کار اخیست.

په یوولسم ټولګي کې یې یو دوست پیدا کړی وه چې د پوهاوي په لټه کې وه، له دې کبله ملګرې

په هیڅ ډول هغې ســره د بحث کولو فرصت له لاســه نه ورکاوه. یوځل یــې په ټولګي کې د درس په وخت هغې ته د شاهي حکومت د ماهیت او د رضاخان د راتګ څرنګوالي په هکله یو مفصل لیک لیکلی وه. ښــوونکې یې چې ســاواکي وو د هغه پام شو لیک یې ورځینې واخیست او ساواک ته یې وســپاره، دغه جنۍ چې د ملګرې په آند د پوهاوي په لټه کې وه وبېریده او بیا یې د ملګرې اشــرف بحث کولو ته دوام ورنکړ. د منځني تحصیلي کال په پای کې ســاواک هغه دواړه له ځان ســره یوړل، وروسته له بیرولو او نصیحت یې  له هغو څخه ژمنه واخیسته چې بیا به په سیاسي مسایلو کې دخالت نکوي او ملګرې هم همدا ډول ژمنه ورکړه چې په ښه شان هغه ته وفاداره پاتې شوه!

د ښــوونځي دوره پای ته ورســیده. کوم وخت چې ملګرې له پخوا څخه فکر کاوه چې باید په هغې کې خپل ژوند انقلاب ته وقف کړي، هغه وخت رسیدلی وه پداسې حال کې چې د انقلاب نښه نه تر ســترګو کیده. هغې لیدل چې ملګرې بهروز، صمد او کاظم ظاهراً خپل عادي ژوند ته ادامه ورکوي لــه دې کبلــه ډېره غوســه ناکې وه. خو نه پوهیده چې باید څه وکړي، همدغه د بې وســي احســاس هغه یو ډول د مړاوي کیدلو او د لالهاندي لوري ته کشــوله. هغې احســاس کاوه هغه ګنهګار او نه پخلاکیدونکی موجود چې په هغې کې یې وجود درلود ذره ذره مري او له منځه ځي...

په همدې وخت کې ملګرې صمد ووژل شــو! او پخپله د ملګرې په خبره، هغې د صمد له مرګ څخه ژوند تر لاسه کړ. نور نو هغه کرکه چې دښمن څخه یې په زړه کې ونیوله، تر هغې ډېره درنه وه چې یوه ګړۍ هم غلې پاتې شي. هغه ټولې پټې تورې تیارې چې پخوایې د راتلونکي ژوند لپاره درلودې دا دی اوس په ډاګه روښانه شوې وې.

پــدې وخــت کې ملګــرې د آذربایجان په یو کلي کې ښــوونکې وه او هره ورځ یــې فقر، کړاو او ســتم چې له ماشــوم توب څخه لمس کړي وو، لا زیات په روښانه توګه پیدا کاوه. راتلونکې تباهي او بدمرغي چې د بې ګناه کلیوالو بچیانو ته ســترګې په لار وه، په ښــکاره توګه یې پخپلو سترګو لیدل او هره ګړۍ یې د هغوی په وړاندې خپله ژمنه احساسوله.

دا دي«اشــرف» کیدای شي اوس «بهروز» اووســي. دوی دواړو هم دغه احساس کوه. له دې کبله دوی دواړه په اګاهانه توګه دهغه دیوالونو رنګولو لپاره راپورته شــول کومو چې تر منځ یې واټن جوړ کړی وه او د ملګرتیا پرتمینه اړیکه د وروروليې او د ښوونکي په اړیکې سیوری خپور کړ او کله چې دواړه اوړه په اوړه ملګرو ســره یوځای د وســله والی مبارزې د ایران په لمړنیو مرچلونو کې ځای پر ځای شــول، ملګرتیا یې د ویاړ پرتمینې څوکې ته لوړه شــوه او ملګرتیا یې تلپاتې او زوال نه منونکې پاتې شوه. ځکه هغه ملګرتیا چې د مبارزې په مرچلونو کې منځ ته راځي نور نو لکه د معمولي اړیکو

په شان مرګ، لرېتوب او نور لاملونه زوال منونکي ندي.

د هر مبارز لپاره ملګری تر هغه وخت پورې ژوندی دی چې ارمان ته یې وفا دار وي او هغه وخت مــري چې ارمان ته یې شــا کړې. له همدې پلوه، ســره له دې چې ملګری بهــروز تر ربړونې لاندې شــهید شو خو د خلکو آزادي سره د هغه او نورو شهیدو ملګرو عشق د ټولو مبارزو ملګرو، له هغې ټولګې دغې آزادي سره د ملګرې اشرف عشق یو ځای خپلې هستي ته دوام ورکوي، همدارنګه کینه او کرکه یې هم دهغوی کینې سره یوځای د دښمن په وړاندې وردانګي او په طبقاتي ټولنه کې د ستم تر نسکوریدو او ورکاوي همدارنګه پر مخ ځي.

هغه څه چې په تیرو مخونو کې راغلل، د مبارزې لیکې ســره د ملګرې اشــرف تر یو ځای کیدو د مخه د هغې د ژوند لمړني برخه وه. لړی یې په راتلونکو مخونو کې پخپله د هغې په ژبه راځي.

# د چپتیا او خفقان ماتیدل

د ۴۹ کال د سلواغې میاشت کې د خلکو د فدایې مخکښانو په واسطه د وسله والې مبارزې پیل په ایران کې د امپریالیزم او ارتجاع د مرګ شپېلۍ څخه غږ پورته شو. د خلکو ریښتینو او سپیڅلو بچیانو له تجربې څخه په تش لاس خو په ټینګ هوډ او ایمان لکه د غر په شان دښمن سره په قطعي جګړې راپورته شول چې کلونه کلونه یې د خپلو ټولو امکاناتو او ځواکونو څخه په ګټې اخیستو سره ایران کې چپتیا او خفقان حاکم کړی وو.

دغه د انقلاب ریښتینو مخکښانو خپل تاریخي رسالت پیژندلی او په زړورتیا سره راپورته شول ترڅو په عمل کې وښایې چې د دښمن ځواک ماتیدونکی دی او کیدای شي له هغه سره لاس په ګریوان شي او له شرمیدلي مخ څخه یې پرده پورته کړي. پدې ډول په خپل پیاوړي ځواک پوه شي خپلو لاسونو او پښو څخه ځنځیرونه وشلوي او د اوږدې مبارزې په لړ کې ستم کشي، بدمرغي، بیوزلي او له کړاونو څخه ډک ژوند ته د پای ټکی کیږدي. د سیاهکل حماسه، د ښار د امنیتي حوزې په یوې څانګې (کلانتري) باندې د برید بریا، له مادي پلوه د غورځنګ د اړتیاؤ لپاره د بانکونو مصادره، د نړیوال امپریالیزم د مزدورانو له خوا د خلکو د بچیانو ډله ایزه وژنه (چې د مبارزې په پیل کې د مخکښانو له ناچاري او بې تجربه ګي څخه ټوکیدلې ده) او بیا هم د مبارزینو اتلواله عملیات، دا ټولې هغه پیښې وې چې د ۴۹ کال د سلواغې میاشتې څخه د ۵۰ کال وري میاشتې پورې منځ ته راتللي

وروسته تر هغې چې ملګرو د خلکو په محکمه کې د خائن سپهبد فرسیوي[1]* په هکله حکم سرته ورساوه، رژیم چې د دې ډول ګوزار تمه نه درلوده، په لاس او پښو یې خپل ټول تجهیزات په کار واچول. دښمن د سیاهکل [2] د اتلانو تر اعدام وروسته په شوده ګي سره (ابلهانه) تصور کاوه چې نور نو هرڅه پای ته رسیدلي او هغوی وسمن شویدي چې غورځنګ په نطفه کې شنډ کړي او

* د شمېرو په اړه توضیحات د کتاب هر څپرکي په پای کې راغلي دي.

تر ټولو شــوده توب يې پــدې کې وه چې فکر يې کاوه د خلکو مبارز بچيــان همدغه پنځه لس زرور اتلان وو چې اعدام يې کړل يا يې تر ســختو ربړونو لاندې شــهيدان کړي او بې روحه جسدونه يې په ګوليو ســوري ســوري کړي دي. کله چې هغوی د نورو ۹ ملګرو نومونه د شهيد شوو ملګرو سره په اړيکه کې وپيژندل شول. هغوی هيڅکله ونشو کړای چې ايران د تاريخي شرايطو له نظره تجزيه او تحليل کړي او متوجه شــي، دا تاريخي شــرايط دي چې انقلاب يې ورځنۍ دنده ټاکلې او بې شميره ريښــتوني مبارزين روزي او په ورځپاڼو کې يې وليکل چې ګويا په ايران کې ۹ نور مبارزين پاتې دي، د قدرت ښــوولو په خاطر يې د هغوی عکســونه چاپ کړل او د ايران په لروبر کې يې خپاره کړل او د هر يو نيولو لپاره يې ســل زره (۱۰۰۰۰۰) تومانه جايزه وټاکله. ۹ تنه ملګري عبارت وو له: ملګری اميرپرويز پويان، ملګری جواد ســلاحي، ملګری حميد اشرف، ملګری منوچهر بهايي پور، ملګری اســکندرصادقي نژاد، ملګری عباس مفتاحي، ملګری احمد زيبرم، ملګری محمد صفاري آشتياني ملګری رحمت اله پيرو نذيري [۳]. دښمن په شوډګي سره تمه درلوده. خلکو چې دغه اتلان بچي په خپل غيږ کې روزلي وو د هغوی مرســتې ته وردانګي او دهغوی شرمناکې غوښتنې ته مثبت ځواب نه ورکوي. خو د دښمن د دغو بې ګټو هڅو يواځينۍ پايله دا شوه چې په ايران کې يې ډير ژر د خلکو پام د مبارزې پيل او د انقلابي ځواک شــتون ته واړوه. هغه څه چې انقلابي مخکښــانو بايد په اوږده موده کې خپل انقلابي قدرت په پراخه کچه خلکو ته دعمل په ډګر کې ښودلای وای.

سربيره پر دې انقلابي مخکښان يې خلکو ته وروپيژندل او پدې ډول يې پرته له دې چې وغواړي د خلکو اتلان ونمانځل او د خلکو هيلې يې ســرته ورســولې. هغه له شــور او زوږ ځخه ډک غبرګون چې خلکو پدې هکله ښکاره کړ، دښمن ډير ژر خپلې تيروتنې ته متوجه شو. خو چاره يې نه درلوده، د خلکو غبرګون ډير ښــه زيری ورکوونکی وه. ګڼ شــمير خلکو دغه عکســونه په هر ځای کې له ديوالونو شکول او خپلو کورونو ته يې وړل. زياتو به ويل که لس برابره زياتې پيسې هم راکړي هغوی به دښمن ته په ګوته نکړو. يا دا چې دغه پيسې حرامې دي يا هغوی د ويت کنګ ګانو په شان دي. د دې خبــرې آغيزه په روڼ اندو هــم د پام وړ وه. هغوی مخکې له دې چې انتظار يې کيده ډير ژر د مبارزې ډګر ته مخه کړه. په هر حال آزادي بخښــونکی غورځنګ پيل شــوی وه او موږ ټولو د هغه د پرمختګ لپاره هڅه کوله.

زه هم د وسله والې مبارزې له هماغه پيل څخه خپل ملګري او انقلابي ورور سره يوځای شوې وم تر څو خپله دنده د ســتم کښــو خلکو آزادي بخښونکې مبارزه کې سرته ورسوم. ما په هماغه شرايطو کې چې دښمن د ۹ ياد شوو ملګرو په لټه کې وه، دوه ملګرو، ملګري پويان او ملګري نابدل [۴] سره

په یو ټیمي کور کې ژوند کاوه، زموږ ټیم د اعلامیو د چاپ او تیتولو مسـئولیت په غاړه درلود چې د هر انقلابي عمل سرته رسولو وروسته یا د نورو مناسبتونو په خاطر چې باید د خلکو په منځ کې تیت شي زما مسئولیت وه. خو د نورو دندو د لزوم په صورت کې ما نورې دندې هم په غاړه اخیستې.

هر انقلابي عمل چې سـرته رسـیده نوې هیلې یې په زړونو کې سـپړلې. که څه هم د وسـله والې مبارزې د خط مشي په ټیکاو کې شک نه وو او شرایطو هم په ګوته کوله چې د امپریالیستي او داخلي ارتجاع د واکمني نسکورولو یوائنی لار همدا لار ده، خو تر اوسه لا هم مالومه نه وه چې دغه مبارزه بــه لــه دې لــرې امکاناتو او بې تجربه ګي سـره د انقلاب پیل ته څـه ډول دوام ورکړي او څه وخت به خپل حقانیت ثابت کړي. ملګري پویان پدې هکله داسـې ویل: «پدې مبارزه کې شـونې ده چې سازمان تر درنو ضربو لاندې راشي او یا حتی د سازمان غړي له منځه لاړ شي. خو کومه مبارزه چې مــوږ پیل کړې حق ده او خوشـاله یو چې د دې مبارزې پیـل کوونکي موږ یو، ایمان لرم که د خلکو فدایي چریکانو سازمان هم نه وي، نور انقلابي سازمانونه به هغې ته ادامه ورکړي».

د پنځمې لسیزې د وري په وروستیو کې یوه ورځ له غرمې وروسته په ۳۰: ۶ بجو ملګرو پویان او نابدل د سـازمان د لمړنی اعلامیې د خپرولو او په دیوالونو باندې د سرینښولو لپاره له کوره بهر شول او پریکړه وشـوه چې د شـپې لس بجې بیرته کور ته ستانه شي. ملګری نابدل ملګري جواد سلاحي سـره یو ځای په موټرسـیکل حرکت کاوه او په دیوالونو د اعلامیې د سرینښـولو دنده په غاړه درلوده. ملګری پویان هم ملګري ګلوي سره یو ځای ملګرتیا کوله.

د شپې ۳۰: ۹ بجې ملګری پویان کور ته ستون شو. خو د ملګري نابدل پته ونه لګیده. ساعت تر لسو تیر شو. موږ پریشانه وو او انتظار مو کاوه. ساعت ۳۰: ۱۱ بجې شوې نور انتظار بې ګټې وه. پوه شو چې ملګري نیول شوي یا شهیدان شویدي. زموږ اټکل سم وو.

د ملګــري نابــدل د نیولو ماجرا پدې ډول وه: کله چې ملګري په دیوال د اعلامیې په سرینښــولو بوخت وو، د اردو یو متقاعد بریدمن (اســتوار) هغوی ویني او په چیغو لاس پورې کوي. ملګري په چټکي سره په موټرسیکل سپریږي او تیښته کوي. خو څرنګه چې د دغې سیمې ښه پیژندګلوي یې له پخوا څخه کړې نه وه، پداسې کوڅه ننوځي چې د پامنار د امنیتي حوزې یوې څانګې (کلانتري) سـره مخامخ پای ته رسـیږي، کله چې ملګري له کوڅې څخه بهر وځي د (کلانتري) سـاتونکو سره مخامخ کیږي او د نومول شـوي بریدمن (اسـتوار) د پرله پسـې چیغو له مخې په ملګرو ډزې کوي، ملګري هم متقابلا هغوی ته په ډزو ځواب ورکوي، پدې نښـته کې ملګری نابدل ټپي او بې هوښـه کیږي نشـې کولی چې ځان وژنه وکړي. ملګری سلاحي تر یوې نابرابرې او زړورې جګړې وروسته

په وروستنۍ ګولۍ خپل ژوند ته پای ورکوي او په شهادت رسیږي تر څو د دښمن په لاس ژوندی اسیر نشي. ملګری وروستنۍ ګولۍ د شا له خوا په خپل څټ فیر کړه تر څویې مخ وشیندل شي او څېره یې ونه پیژندل شي.

هغه پدې ډول غوښتل دښمن ونشي کولی د ۹ جنګیالیو ملګرو څخه د یو تن د وژلو تبلیغات په لار واچوي کوم چې د هغوی انځورونه یې په لارو او کوڅو کې په دیوالونو سرېښ کړي وه.

ملګری نابدل د ښاروالي روغتون ته وړل کیږي. په هماغه ځای کې په ټپي بدن تر سختو وحشیانه ربړونو لاندې نیول کیږي. هغه افسانه یې مقاومت چې ملګري د اسارت په لمړۍ ورځ له ځانه وښود چې حتی دښمن یې هم ستاینې او اریانتیا ته اړ کړی وه. هغه ته یې ویلي وه که خبرې ونکړې مردکی دې له پښې څخه نه راباسو، هغه په زړورتیا سره ځواب ورکړی وه «مردکی ستاسې ده او خبرې زما دي. هغه څه چې ما او زما خلکو پورې اړه لري ځان سره ساتم».

په همدې ورځو کې د ساتونکي له یوې شیبې غفلت څخه په ګټې اخیستو سره ځان د روغتون له دریم پوړ څخه کښته اچولی وه. هغه غوښتل پدې ډول ځان وژنه وکړي تر څو د جنبش راز پټ وساتل شي. خو دا ځل هم ژوندی پاتې شو او یوائې یې د خپتې بخې شکیدلې وې. هغه په خپل لاس کوښښ کړی وه چې کلمې له خیتې بهر وباسي او پدې ډول ځان ووژني. خو مزدوران ورسیدلي ول او د دې کار مخنیوی یې کړی وه.

کله یې چې هغه ته وویل د سازمان ټول غړي یې نیولي دي او ډیر ژر به تاسې تیرباران کړو، په خپلو ټولو انقلابي احساساتو یې ویلي وه: «دا مهمه نده مورږ د دښمن په وړاندې ماتیږو خو هیڅکله کړوپیږو نه!». هغه څو ورځې د مزدورانو تر وحشیانه ربړونو لاندې مقاومت وکړ، د جنبش د راز په هکله یې هغوی ته یوه کلمه هم په ډاګه کړې نه وه حتی د ټیمي کور نښه یې وروسته تر شل ورځو ویلی وه چې هغه وخت مورږ کور تخلیه کړی وه، دښمن څو ورځې وروسته زمورږ ټیمي کور ته راغلی وه، خو تش لاس ناکامه بیرته تللي وه.

# بې تجربګۍ څخه را پورته شوې تیروتنې

وروسته تر هغې چې د ملګري نابدل له بیرته ستنیدو څخه ناهیلي شو. پرته له دې چې یو کوچنی ګام پورته کړو، شــپه مو په هماغه کور کې ســبا کړه. د ورځې په ســهار مو د خپلو وسایلو په ټولولو او د ځینو مطالبو په سوزولو بوخت شوو. زه تر غرمې وروسته په یوې بجې تبریز ته ولاړم. خو ملګری پویان یو بل ملګري ســره په هماغه ځای کې پاتې شــول او هغه شپه یې هم په کور کې تیره کړه او د بلې ورځې د سهار په ۹ بجو یې کور پرېښود.

ښــکاره ده که چیرې ملګري نابدل د نیولو په همغې شــپې یا د ورځې په ســبا د کور پته دښمن ته ورکړې وای، د واټ هوایي ځواک [۵] ســره په هماغه ځای کې نښــته منځ ته راتلله او څومره ښه چې پیښــه وروسته واقع شــوه. ځکه چې د انقلابي ملګرو په ځانګړې توګه لکه د پویان په شان ملګرو د ژوند هره ګړۍ د غورځنګ د پرمختګ لپاره ډېر ارزښتناک او اغیزناک دی. زه په هغه ورځ تبریز تــه ولاړم او د تبریــز ملګري مې د نابدل نیولو څخه خبر کړل خو نه ما او نه ملګري بهروز د مخفي کیــدو لپــاره ګام پورته کړ. د مخکني پریکړې له مخې چې ما ملګري پویان ســره درلوده دوه ورځې وروســته تهران ته ســتنه شــوم، کله چې مې ملګری ونه لیده بیرته تبریز ته وګرځیدم. زما دغه تګ راتــګ لــه دوه پلوه تیروتنه وه: یوه دا چې د ملګري نابدل تر نیولو وروســته ســره له دې چې په هغه مې باور درلود باید پټه (مخفي) شــوې وای او احتمالا دښــمن زما د نیولو لپاره زما کورنۍ تر کنترول لانــدې نیولــې وای. دویم دا چې ما خپلې کورنۍ ته ویلي وه چې زه په تهران کې درس لولم، د کال په منځ کې تبریز ته دوه ځلې د دوه ورځو لپاره مســافرت کول هم هغوی ته شــکمن او اریانوونکی وو خو ما دغه ټکي ته پاملرنه نه کوله. په هر صورت یوه اونۍ په تبریز کې پاتې شوم او بیا د پریکړې له مخې تهران ته ستنه شوم. دوه درې ورځې وروسته ملګری بهروز تهران ته راغی او بیا هم پرته له دې چې وپوهیږم ملګری نابدل په هغه وخت کې د ملګرو د نوم نه اخیستلو په خاطر د څه ډول ربړونو زغم کوي بې پروا ازاده ګرځیدم.

د ملګــري نابــدل تر نیولو وروســته زما هر یو ګام اخیســتل تیروتنه وه. خــو د کار په پیل کې بې تجربګي له ناچارې دغه ډول تیروتنې ځان سره راوړي. په هغه وخت کې د دښمن د عمل څرنګوالی څخه دهر ډول عملي تجربې نشتوالی او پولیسي سیستم څخه ذهني تصور درلودل، بې ځایه اټکلونه منځ ته راوړي وه.

د ملګري نابدل نیولو څخه له شل (۲۰) ورځو زیاتې تیرې شوې وې. زه د سازمان له خوا ګمارل شــوې وم هغه مسجد ته ولاړه شــم کوم چې زموږ د ټیمي کور په څنګ کې موقعیت درلود او زموږ د کــور خاوندې هلته لمونځ کاوه. ټاکل شــوې وه د خبرو په ترڅ کې لــه هغې څخه د اوضاع په هکله مالومات تر لاســه کړم. اټکل شــوې وه که چیرې ســاواکیان کور ته راغلي وي (د ملګرو له خوا) په هغه ځای برید وشــي. زه مازیګر مهال مســجد ته ولاړم. ما خپل تګ داســې تنظیم کړی وه چې د لمانځه په وخت هلته ورسیږم په هغه وخت کې د کور خاونده د خلکو په منځ کې په اساني سره پیدا کیدی شــوه. په وخت ورســیدم د کور خاونده مې پیدا کړه. په دغه وخت کې د هغې څنګ ته ولاړم او خبرې مې ورسره وکړې کله چې یې سترګې په ما ولګیدې رنګ یې والوت او د وېرې نښې یې په څیره کې پیدا شوې. وروسته تر څو خبرو د هغې غیر عادي حالت ته متوجه شوم او په هر څه پوهه شوم. ساواکیان په کور کې وو.

لمونځ پیل شــو او زه چټکه له مسجد څخه بهر شــوم. پوهیدم که هلته ودریږم زیاتره د ناپوهي له کبله یا د ســاواکي مامورانو د ویرې تر آغیزی لاندې له هغې څخه کوم حرکت تر ســره شي چې زما د پیژندلو لامل وګرځي. له دې کبله ما د دوارو لمونځو په منځ کې له هغې سره د خبرو وخت ټاکلی وه. ځکه هغه وخت د دې کار لپاره مناسب موقعیت وو.

وروسته پوهه شوم چې د کور خاوندې سره هره ورځ د ښاروالي څارونکی په مرتب ډول مسجد ته راځي. هغوی فکر کاوه چې زه به بیا ځلي هلته ولاړه شم.

# زما او د ملګري بهروز د نیولو لپاره
# د دښمن پراخه هلې ځلې

ما حتی د ورور کور ته هم چې سیاسي فعالیت یې هم نه درلود تګ راتګ کاوه. ځکه چې تر اوسه مو کور نیولی نه وو. پداسې حال کې چې نه پوهیدم دښمن زما د نیولو لپاره شومره هلې ځلې پیل کړیدي. پیښه په دې ډول وه چې ملګري نابدل له شو ورځو میړني مقاومت او ربړونو وروسته د ملګري بهروز نوم په ډاګه کوي. مامورین زموږ د نیولو لپاره په تبریز کې زموږ د پلار کور ته ځي. هغوی لکه له ځنځیر شخه د خلاص شوي ځناورو په شان نیمه شپه زموږ په کور ننوځي او په پلټنې پیل کوي. مور مو چې له ناڅاپي یرغل شخه سخته ویریدلې وه او د خپلو بچیانو، زه، ملګري بهروز او محمد په هکله ډیره اندیښمنه وه، مور مې له هغوی شخه غواړي چې پریږدي زما د ورور کور ته ولاړه شي. خو هغوی اجازه ورنکړه. سربیره پر دې وروسته تر هغې ورځې هر چا چې به د کور دروازه وټکوله هغه به یې کور ته دننه کړ او بیا به یې له کور شخه د بهر وتلو اجازه نه ورکوله.

یوه شپه او ورځ هلته پاتې کیږي بله شپه چې زما کوچنی ورور «محمد» کور ته راځي هغه نیسي او بیا زما د خور میړه، ملګري کاظم سعادتي په لټه ځي هغه هم نیسي او د مالوماتو لاسته راوړلو لپاره یې د تبریز ساواکیانو ته سپاري.

ملګري کاظم خپلې ښځې او بچې سره یوځای ژوند کاوه. سربیره پر دې چې هغه د سازمان یو پرمخ تللی سمپات وه د مخفي کیدو لپاره یې اقدام نه وو کړی. هغه چې له سر نه تر پښو له طبقاتي کرکې او نفرت شخه ډک وو، تر نیولو وروسته د دې لپاره چې هغوی ته ډیر کم اطلاعات هم په لاس ورنکړي د هغوی غولولو لپاره لاس په کار کیږي. ځان د یو ساده کس په توګه ښکاره کوي. دښمن پدې خیال چې کولی شي دهغه د ازادولو له لارې ملګری بهروز ونیسي هغه ازادوي. خو بیره وي یې که چیرې د ملګري بهروز په نیولو کې مرسته ونکړي، بیا یې نیسي او تر ډیرو سختو ربړونو لاندې یې راولي، پدې موده کې د هغه ټول حرکات، کړه وړه تر څارنې او کنترول لاندې نیسي.

ملګــري کاظم دې موضوع ته متوجه کيږي. هغه پوهيده چې په دې ورځو کې ملګری بهروز له هغه سره اړيکه نيسي او ويني چې تر دې ټينګ کنترول لاندې نشي کولی هغه له دې جريان څخه خبر کړي او ښايي د اړيکو نيولو په وخت کې هغه ونيسي. له دې کبله پرته له کوچني ترديد څخه د شپې په زهر خوړلو او د لاس شــاهرګ په غوڅولو ځان وژنه کوي. تر څو له دې لارې وکولی شــي ملګری بهروز هغه خطر څخه چې ورله متوجه دی خبر کړي.

دښمن په چټکي سره دهغه له اقدام څخه خبريږي. د ژغورلو لپاره يې په هر اقدام لاس پورې کوي روغتون ته يې وړي او د روغتيا لپاره يې سپارښت کوي. خو ملګری کاظم له رازونو څخه په ډک زړه، په چوپه خوله، کرکې او غوسې څخه په کوډلې موتې شهيد کيږي. دښمن له دې ناکامي او پاتې کيدو څخه دومره ناهيلی کيږي هغه ډاکتر چې کاظم يې له مرګه نه وو ژغورلی عدالت ته کش کړ هغوی (په ظاهره د ملګري کاظم د کورنۍ) له خوا شــکايت کړی وه! ســربيره پر دې دښمن له هغه پرتمين تجليل څخه چې د تبريز خلکو د خپل اتل بچي د خاورې سپارلو په مراسمو کې تر سره کړی وه ډير غوسه شوی وو. له بلې خوا پدې علت چې کولی يې نشول په خپلو تورو کارونو پرده واچوي، بريالي نشول د دې کار مخه ونيسي. خو د زړه کينه او غوسه يې په وروستيو راتلونکو نيولو (دستګيري) کې تشه کړې وه کوم چې ډير زيات يې ناکراره کړي وو. خو دغه ټولو حيواني غوسو هغوی کرار نکړل. ملګري کاظم يو ځل بيا د دښــمن بې وســي او عاجزي د يو رښــتوني انقلابي د پرتمينې سپيڅلتيا په وړاندې په ثبوت ورســوله. زما مور ته د هغه وروســتنی سپارښــت دا ډول وه: «مور جانې ښايي دښمن ستا بچيان تر ډيرو سختو ربړونو لاندې ونيسي، ته هيڅکله هغوی څخه د هيڅ شي غوښتنه ونکړئ، دښمن تر هغه ډير پست او ذليل دی چې تاسو ورڅخه ډير لږ څه هم وغواړئ.»».

د دښمن پراخې هلې ځلې پدې ځای کې پای ته نه رسيږي. هغوی ټول هغه واټونه چې تهران څخه بهــر وتلــي ول تر څارنې لاندې نيولي ول. ټول هغه موسســات چې فکر يې کاوه زه به هلته په درس ويلو بوخت يم (خپلې کورنۍ ته مې همداسې ويلي وو) زما د نيولو لپاره پلټلي وو. پدې هکله احتمالا له يوې ښــځې څخه چې زه به په وروســتيو کې د هغې په اړه ډيرې خبرې وکړم هم ګټه اخيسته هغې خپل ځان زما د ترور د تورې د ورور ښځه معرفي کړې وه.

يو له دغو مواردو څخه په يوې موسسې د شپې له خوا يرغل دی. د شپې دوه بجې يې د محصلينو ليلې ته «ښځکۍ» ليږدولې وه او خپله له ډيرو څارګرو سره بهر منتظر ولاړ ول. ښځکۍ چې ځان ډير ناکراره او ويريدلې ښــکاره کاوه، محصلان يې يو يو له خوبه پاڅول او د نوم پوښــتنه يې تر ينه کوله چــې ګواکــې زما مور د مرګ په حال کې ده او هغه چې په مختلفو خونو کې ځان زما ترور، تورې او

وریندار معرفي کاوه، راغلې وه چې ما خپلې مور ته ورسوي. محصلینې جنکۍ چې د هغې ضد و نقیض خبرو او غیر عادي حرکتونو ته پام شوې وې په پوښتنو کې یې نغاړلې وه او ځینو د هغې د بهر اچولو قصد درلوده، هغه چې خپل کړکیچن حالت ته متوجه شوې وه. پلټنه یې نیمه تمامه پرېښوده او بهر ته په ځغاسته شوه. دا ځل هم دښمن ناکام پاتې شوی وه. کومه پایله چې له دغو بې ګټو هلو ځلو باقي پاتې شوه هغه د ډېرو محصلینو پوهیدل ول چې په دغه ناوړه یرغل سره د هغوی احمقانه هلې ځلې او په ورته وخت کې د مزدورو مامورینو کرغېړنه او وحشتناکه څیره بربنډه ولیده. د محصلینو ځینې ډلو چې غافلګیره شوې ول او ښځه پدې وسمنه شوې وه چې ځان سالم وکاږي افسوس کاوه.

# د لمړي څپرکي توضيحات

۱- سپهبد فرسيوي خائن: د شاه خلقي ضد اردو کې د څارنوالي ريبس، د۱۳۵۰ کال پسرلي کې د خپلو بې شميرو جنايتونو په خاطر د خلکو د فدايي چريکانو سازمان د زړورو جنګياليو له خوا اعدام شو.

۲- سياهکل، د ايران په شمال کې يو کوچنی ښارګوټی دی چې د خلکو د فدايي چريکانو سازمان د ځنګل شبکې، د ۴۹ کال په ژمي کې د ايران وسله والو مبارزو مخکښانو په لمړي ځل د هغه ځای د ژندرما په پوستې خپل وسله وال يرغل (تعرض) پيل کړ. د ځنګل شبکې ۱۵ تنه يا په ګوليو اعدام (تيرباران) شول يا تر ربړونو لاندې شهيدان شول چې عبارت ول له:

۱) علي اکبر صفايي فرهاني (۱۳۱۸ ۱۳۴۹): د ځنګل د ګروپ قوماندان چې په ۴۷ کال فلسطين کې د الفتح جبهې سره يوځای شو او په هغه ځای کې د خپلو ځلانده فعاليتونو په خاطر د يوې چريکي آډې د قوماندان په توګه دنده تر لاسه کړه. تر يو کال وروسته په مخفيانه ډول ايران ته راستون شو، د ايران د شمال په ځنګلونو کې يې وسله والې مبارزې ته سازمان ورکړ. تر لمړني بريالی چريکي يرغل وروسته د يو ملګري د نجات په خاطر له غره ښکته راغی دا چې نه يې غوښتل په خلکو ډزې وکړي د ناپوهه ځايي خلکو د افرادو له خوا ونيول شو، وروسته تر ډيرو سختو ربړونو د ۴۹ کال د کب په مياشت کې په ګوليو اعدام (تيرباران) شو.

۲) احمد فرهودي: د سازمان د فدايي چريکانو د ښاري څانګې غړی وه چې د ۴۹ کال د سلواغې په مياشت کې د ځنګل مبارزينو سره يو ځای شو او ډير ژر د شبکې مرستيالی ته ورسيد. هغه پنځه تنه ملګرو سره په ځنګل کې د خوړو د ګودام په سر چې دښمن ته په ډاګه شوی وه د دښمن په محاصره کې کښيوتل تر ۴۸ ساعتو زړورې جګړې او د دښمن ځواک ته تر سختو ګوزارونو وروسته په ډيرو نابرابره شرايطو کې تر پښو ولويد، نورو ملګرو سره يو ځای ونيول شو او د وحشيانه ربړونو تر زغم وروسته د ۴۹ کال د کب په مياشت کې په ګوليو اعدام (تيرباران) شو.

۳) شعاع اله مشيدي: د ځنګل د شبکې ښاري مسئول چې د ۴۹ کال په ژمي کې د پوليسو له خوا وپيژندل شو او ونيول شو د ۴۹ کال د کب په مياشت کې تيرباران شو.

۴) هادي بنده خدا لنګرودي: د جنګل د ډلې له لمړنيو غړو څخه وه. هغه د سياهکل تر بريد وروسته د ښاري ملګرو د يو تن د نيولو له خطر څخه د خلاصون لپاره غره ځينې ښکته شو او د

هماغه ملګري (هوشــنګ نيري) په کور کې د دښــمن په منګولو کې پريوت تر ډېرو ربړونو وروســته تيرباران شو.

د لمړي کتاب په چاپ کې، د پورتنۍ توضيح د پرانتز په داخل کې د ايرج نيري نوم اشتباها ليکل شوی ده له دې کبله په هوشنګ نيري تصحيح کېږي.

۵) عبــاس دانــش بهــزادي: د ځنــګل د ګــروپ له لمړنيو غــړو څخه وه. هغه د ســياهکل تر بريد وروسته خپلو څلور تنه ملګرو سره په ځنګل کې د خوړو د ګودام په سر چې دښمن ته په ډاګه شوی وه د دښــمن په محاصره کې کښــيوتل تر ۴۸ ســاعتو زړورې جګړې وروسته د نا مساعدو شرايطو له کبله له پښو ولويد او ونيول شو او د کب په مياشت کې تيرباران شو.

۶) جليل انفرادي: د ځنګل په ګروپ کې د لمړنيو کسانو د ګډون کوونکو ډلې څخه وه. هغه خپل قومندان سره يو ځای له غر څخه کښته راغی او ونيول شو، د کب په مياشت کې تيرباران شو.

۷) رحيم ســماعي: هغه د ګودام په ســر د محاصره شــوو کسانو ډلې څخه وه. تر ۴۸ ساعتو جګړې وروسته د تسليم کيدو په علامت مورچل څخه بهر راغی خو کله چې د دښمن په محاصره کې پريوت خپل لاسـي بم ته يې چاودنه ورکړه او دښــمن ته د زياتو تلفاتو په اړولو ســره خپله هم شــهيد شو او ملګرو يې وکولی شول د دښمن له محاصرې څخه بهر ووځي. هغه د ځنګل ګروپ لمړنيو غړو څخه وه (۱۳۴۹).

۸) مهدي اسحاقي: هغه د ځنګل د ګروپ له لمړنيو غړو څخه وه. هغه هم د ملګري رحيم سماعي په شان د خپل لاسي بم په چاودنې سره شهيد شو. (۱۳۴۹)

۹) ايــرج نيــري (۱۳۲۸ ۱۳۴۹): پــه ۴۹ کال کې د ځنګل شــبکې ســره يو ځای شــو. هغه په يوې پوستې باندې د بريد په جريان کې ټپي شو. د هغه د ژغورلو لپاره وو چې د ګروپ قومندان خپل بل ملګري ســره له غره څخه کښــته راغلل او درې واړه ونيول شــول. هغه هم تر ډېرو ربړونو وروســته تيرباران شو.

د کتاب په لمړي چاپ کې، په پورتنۍ توضيح کې د هوشــنګ نيري نوم اشــتباها ليکل شــوی دی. د ايرج نيري او د هغه د زيږد نيټه هم اشتباه ليکل شوې، پداسې حال چې د ملګري هوشنګ نيري د پيدايښت کال ۱۳۲۷ وه.

۱۰) علي محدث قندچي: د ځنګل د ګروپ غړی وه. د ځنګل د محاصرې تر ماتيدو او د جګړې له ســيمې څخه تر وتلو وروســته، د نامســاعدو شــرايطو له کبله تر پښو ولويد او ونيول شو، د سختو ربړونو تر زغم وروسته تيرباران شو.

۱۱) محمد هادي فاضلي: په ښــار کې د ځنګل د شــبکې فعالانو يوغړی وه چې د ۴۹ کال په ژمي کې ونيول شو او چارماري شو.

۱۲) اسماعيل معيني عراقي: د ځنګل د ښاري شبکې دګروپ غړی د ۴۹ کال په ژمي کې ونيول شو او تيرباران شو.

۱۳) غفور حســن پور اصل: د ځنګل د شــبکې د مرکزيت له غړو څخه وه، د۴۹ کال د مرغومي په

میاشت کې ونیول شو او تر ربړونې لاندې شهید کړای شو.

په مخکني توضیحاتو کې، د ملګري غفور په شــهادت د رسیدلو څرنګوالی ربړونه ذکر شوې ده، صحیح روایت یې دا دی چې د هغه ربړول شوی جسد یې په ګولیو ویشتلی دی.

۱۴) ناصر سـیف دلیل صفایي: د ځنګل شـبکې تدارکاتي غړی، د ۴۹ کال په ژمي کې ونیول شـو او تیرباران شو.

۱۵) سـکندر رحیمي: د ځنګل شـبکې د اړیکو خوندي کولو غړی، د ۴۹ کال په ژمي کې ونیول شـو او تیرباران شو.

۳- ۱) امیر پرویز پویان (۱۳۵۰- ۱۳۲۵): د خلکو د فدایي چریکانو د سازمان فعال غړی وه.

«مبارزه مسـلحانه او رد تئوري بقا» د هغه له پیژندل شـوو اثارو څخه دی چې په هغه کې د خلکو د فدایـي چریکانو سـازمان خط مشـي تر شـننې لاندې نیول شـوې ده. د (رد تئوري بقـا) اثر یې د اشغال شوي خلیج (ظفار) د آزادي لپاره د خلکو د چریکانو جبهې د سیاسي تعلیماتو په ټولګیو کې لوستل کیږي.

۲) رحمت اله پیرو نذیري: د ۵۰ کال پسـرلي کې امیر پرویز پویان سـره یوځای په ټیمي کور کې د پولیسـو تر برید لاندې ونیول شـول او تر وروسـتنۍ مرمۍ پورې وجنګیدل او دواړو په آخري مرمیو خپل ژوند ته د پای ټکی کیښود.

۳) جواد سلاحي (۱۳۲۵-۱۳۵۰): د ۵۰ کال پسرلي کې د اعلامیې د تیتولو په وخت کې د پولیسو تر څارنې لاندې ونیول شـو او وروسـته تر وسـله والې نښـتې په خپلې مرمي یې خپل ژوند ته د پای ټکی کیښود.

۴) حمید اشرف (۱۳۲۵): اوس هم خپلې مبارزې ته ادامه ورکوي.

د ۹ تنه ملګرو د پیژندلو لپاره چې د شـاه رژیم د هغوی انځورونه چاپ کړي وه او له خلکو څخه یې په عاجزي د هغوی د نیولو غوښتنه کړې وه، د ملګري حمید اشرف په هکله یې لیکلي وه: «هغه اوس هـم خپلـې مبـارزې تـه دوام ورکوي» د هغه د یـاد په درناوي، لکه د نورو ۸ ملګرو په شـان، لاندې لنډ یاد داشت لیکم.

حمید اشرف د خلکو فدایې چریکانو سازمان دمرکزیت غړی او په غالبه توګه د سازمان د بنسټ ایښـودونکو ملګرو تر نیولو او شـهادت وروسـته، د سـازمان د خوندي سـاتلو او د انقلابي مبارزې د تـداوم لپـاره سـتر نقش ولوبوه. هغه وار وار په میړانه او قاطعیت سـره د وسـله والو مزدورانو د محاصرې کړۍ ماتې کړي او دښمن یې د خپل ځان په نیولو کې ناکام کړی او د خلکو په منځ کې د یو نمونه چریک په توګه پیژندل کیده. ملګری حمید اشرف د ۱۳۵۵ کال د چنګاښ په ۸ نیټه په داسې شرایطو کې چې بیشمیره مزدورانو د ملګرو پوځي اډه (پایګاه) (هغه ځای چې ملګرو هلته د سازمان د عالي شورا جلسه نیولې وه.) محاصره کړی وو. تر سخت ترپ او خرپ وروسته په شهادت ورسید.

۵) منچهـر بهایـي پـور (۱۳۵۰ ۱۳۲۴): د خپـل ټیمي کور د تخلیه کولو په وخت کې د پولیسـو په

محاصره کې کښېوت او وروسته تر وسله والې نښتې شهید شو.

۶) اسـکندر صادقي نژاد: د خلکو د فدایي چریکانو سـازمان له مرکزي غړو څخه وه. هغه د ټیمي کور د بدلولو په وخت کې د پولیسو په محاصره کې کښېوت د وسله والې نښتې په ترڅ کې شهید شو.

۷) عبـاس مفتاحـي: د خلکو د فدایي چریکانو سـازمان له مرکزي غـړو څخه وه. هغه د وعدې پر ځای د پولیسو په محاصره کې کښېوت د څو مزدورانو تر پرځولو وروسته د وسلې د بندیدو له کبله له مبارزي پاتې شو او ونیول شو. تر وحشیانه ربړونو وروسته د ۵۰ کال په کب کې چار تیرباران شو.

۸) محمد صفاري آشتیاني (۱۳۵۱ ۱۳۱۳): د خلکو د فدایي چریکانو سازمان له مرکزي غړو څخه وه. هغه یو کال په فلسـطین کې د نیواکګرو اسـرایېلو په وړاندې وجنګید. تجربې او خدمتونو یې د ایران مبارزینو لپاره ډیر ارزښتناک وه هغه د یوې وسله والې نښتې په ترڅ کې شهید شو.

۹) احمد زیبرم (۱۳۵۱ ۱۳۱۳): د خلکو د فدایي چریکانو سازمان له فعاله غړو څخه وه د زمري په ۲۸ د پولیسو تر څار لاندې راغی، یو کور کې په مورچل نیولو سره تر آخرینې مرمۍ وجنګید او په وروستۍ مرمۍ یې خپل ژوند ته پای ورکړ تر څو د دښمن لاس کې ژوندی ونه لویږي.

۵– د هوایـي ځـواک واټ: یـو واټ دی چې ملګری پویان او پیـرو نذیري هلته په یو ټیمي کور کې ځای درلود، په هماغه کور کې دواړو چریکانو په ساعتونو ساعتونو پولیسو سره جګړه وکړه «د هوایي ځواک واټ نښته» همدغې پیښې ته اشاره ده.

۶– ۱) محمـد دهقانـي: د خلکو د فدایي چریکانو سـازمان له سـمپاتیزانو څخه وه چې د خاطراتو په لړ کې د هغه ژوند ته اشـاره شـویده. هغه د ۵۱ کال د غوایي په میاشـت کې محاکمه او په څلور کالو زندان محکوم شو.

۲) بهروز دهقاني (۱۳۵۰ ۱۳۱۸): د خلکو د فدایي چریکانو سازمان د تبریز څانګې د مرکزیت له غړو څخه وه. هغه په ۴۹ کال د تبریز په پنځمې ناحیې وسله وال برید کې برخه درلو ده او د ۱۳۵۰ کال د غوایي په میاشت کې دښمن سره په یوې وسله والې نښته کې پداسې حال چې کاملا غافلګیر شـوی وه، ونیول شـو او تر ډیرو زیاتو وحشـیانه ربړونو لاندې راغی او وروسته تر سختو ربړونو پرته له دې چې دښـمن ته کوچنی خبر ورکړي په اتلولي سـره شـهید شو. ملګری بهروز دهقاني اوملګري صمد بهرنګي خوارلس کاله یو ځای د اذربایجان په لرې پرتو سیمو کې ښوونکي وو. هغه څخه ډیرې ژباړې او کیسـې په ځای پاتې دي چې تر شـهادت وروسته یې د «بهروز تبریزي» په نوم خپرېږي. د ایرلندي «شون اکیسي» انقلابي اثار په لمړي ځل د هغه په وسیله ایران کې ژباړل شویدي.

هغه متن چې د بهروز دهقاني په هکله لیکل شویدی باید د هغه د نیولو څرنګوالی ورزیات کړم. د دغـې موضـوع یادول چې له نن څخه یې ډیر کلونه تیریږي، زما لپاره ډیر دردونکی دی. په واقعیت کې د بهروز د نیولو کیسه یوه واقعي تراژیدي ده.

د بهـروز د نیولـو لامل زما دوسـت وه. داسـې کس چې زه یې د درلودلو په فکـر کې وم تر کلونو کلونو محرومیت وروسـته مې یوه همفکره او مبارزه دوسـته جنۍ پیدا کړه او ډیره راباندې ګرانه وه په هماغه اندازه هغې هم ما سره سخته مینه درلوده: نزهت روحي آهنګران. په هماغه ۵۰ کال کې

کله چې هغې د خپل کار په ځای (د ماشومانو د روزنې ټولنه) کې تر ربړونې لاندې د بهروز شهادت څخه خبره شوه په هماغه ځای کې بې هوښه شوه او په مځکه ولویده. ډیره موده ناروغه شوه. څو ځله یې د ځان وژنې هڅه وکړه. وروسته پدې سوچ چې خپله ګناه باید په خپلو وینو ومینځي، په هوش راغله او تر ډیرې هڅې وروسته یې وکولی شول چې د خلکو فدایې چریکانو سره اړیکه ونیسي او د بهروز سازمان سره یو ځای شي. تر هغه وخت وروسته نزهت په جدیت او بی دریغه توګه خپله ټوله هوښیاري د سازمان د اعتلا او پرمختګ په چوپړ کې په کار واچوله. نزهت د ۵۴ کال د چنګاښ په میاشت کې د شاه د رژیم مزدورانو سره د کرج په یوې کارګري سیمې کې د یوې حماسي نښتې په ترڅ کې ځان د کارګرانو او زیارکښانو د خلاصون په لار کې قرباني کړ.

نزهت د تهران اوسیدونکې وه. خو زه په تبریز کې هغې سره آشنا شوم. هغه د مبارزو ځوانانو ډلې څخه وه او په واقع کې له نادره مبارزو انجنو څخه وه چې په هغه کلونو (د څلورمې لسیزې دویمه نیمایې) کې یې د مبارزې د لارې پیداکولو لپاره هلې ځلې کولې او هره دروازه یې ټکوله. نزهت په ازار کې د صمد بهرنګي د مشکوک مرګ تر اوریدو وروسته، د پوهنتون درس پریښود (هغه د تهران په پوهنتون کې د ریاضي څانګې محصله وه) او تبریز ته راغله تر څو د صمد د دوستانو په څنګ کې د ښوونکي تر پوښښ لاندې د ازربایجان کلیوالو سیمو ته لاړه شي. هغې لمړی ځل د صمد ورور اسد بهرنګي سره اړیکه ونیوله. خو د صمد بهرنګي تر مشکوک مرګ وروسته پداسې پولیسي شرایطو کې پرته له ځنډه د هغې حضور په تبریز کې سوال پاروونکې او مشکوک مالومیده. زه د کاظم له لارې نزهت سره آشنا شوم. په واقع کې کاظم ما ته وویل چې جنۍ ظاهراً رښایې پیژني چې د سپاه دانش روزنیزه دوره وینې (هماغه ځای چې ما هم هلته نوم لیکنه کړی وه) او زه باید په ډیر احتیاط هغې ته نږدې شم او هغې څخه واقعي شناخت تر لاسه کړم. له دې لارې ما نزهت سره اړیکه ونیوله. خو هرڅومره چې په آشنایې کې زموږ وخت تیریده په هماغه اندازه زموږ اړیکي ژورې کیدلې. زما له نظره د نزهت تګ او چلند د هغې د انقلابي فهم او پوهاوي او له مبارزې سره د زیات شور او شوق ښکارندویې کوله. موږ دواړه یوې سیمې ته د ښوونکو په توګه ولاړو او زموږ دوستي دومره ژوره شوه چې پرته له ځنډ څخه د کلیوالو د ژوند د شرایطو د څیړنې لپاره لاس په کار شوو. هغه رسمي فورمو څخه چې د سپاه دانش له مرکز څخه موږ ته راکړل شوې وې ګټه اخیسته موږ په کلیو کې د ځمکې د اصلاحاتو د اغېزې په څیړنه بوخت شو. پدې ستړې مقطع کې، نزهت خور هم ما سره ملګرې وه او پدې کار کې یې ما سره مرسته کوله. پدې لړ کې زموږ مبارزاتي ملګرتیا هومره جوړښت ومونده چې په ډاګه یې ماته وویل مخکې تر دې محصله وه او یواځې د مبارزاتي کار لپاره په کلیو کې د ښوونکي په توګه راغلې ده. ما ژمنه وکړه چې دا به چاته ونه وایم. واقعاً دا خبره ما حتی کاظم او بهروز ته هم ونکړه. یواځې مې هغوی ته ډاډ ورکړ چې هغه یو سالم کس دی. نزهت زما د یو دوست په توګه زموږ کور او دکاظم کور او د روح انګیز کور ته تګ راتګ کاوه. د هغې مېړه محمود او خور او ورور یې (بهمن او اعظم) هم هر وخت له تهران څخه تبریز ته راتلل، زموږ په کور کې پاتې کیدل (وروسته په ۵۲ کال کې نزهت سره په یو وخت اعظم او بهمن هم د خلکو فدایې چریکانو سازمان سره یوځای شول. د شاه د رژیم جلادانو (دژخیمان) په ۵۵ کال د سلواغې په میاشت کې

بهمن تر ربړونې لاندې شـهيد کړ. اعظم د يوې وسـله والې نښـتې په جريان کې ونيول شوه او هغه د خلکو د فدايي چريکانو لمړنۍ ښـځه وه چې د شـاه د رژيم له خوا رسـماً د اعدام محکوميت تر لاسه کړ او د ۵۵ کال په لمړيو کې اعدام شـوه.). خو مخفي کاري که څه هم په دغه خواشـينونکو شـرايطو کـې د سياسـي کار لپـاره لازمه وه ويجاړونکـي او دردونکي پايلې منځ ته راوړې. نزهت نه غوښـتل ځان بهروز اوکاظم ته ورو‌پيژني. پدې وخت کې بهروز د صمد د نږدې دوسـت په صفت د سـاواک تر زره بين لاندې وه او دا داسې شرايط ول چې د تبريز ځانګه تازه له تهران سره وصل شوې وه (د صمد تر مرګ وروسته، پويان بيا ځلي تبريز ته راغی او په مخفيانه توګه يې بهروز سره اړيکه ونيوله، پدې ډول د تبريز اړيکه تهران سره وصل شوه). بهروز د خپل ځان په نسبت د رژيم حساسيت او د هغې مبارزې د جديت او اهميت په درک کولو سـره چې ورسـره مخامخ وه، د مسـئوليت د احساس له مخې اړ وه تر نورو زيات د امنيتي مسـايلو سـاتنه وکړي او په ظاهر کې د يو عادي فرد په توګه چې حتی د صمد تر مرګ وروسـته يې په اصطلاح لاس او پښـې راټولې کړي وښـايې. مسلماً همدغه خبره د دې لامل شـوې وه چې نزهت ونه کړای شـول بهروز څخه سـم درک ولري. هغې په تهران کې دوسـتان درلودل چې په خپلو کې يې محفل جوړ کړی وه او نزهت کوښـښ کاوه چې ما هم دغه محفـل سـره يـو ځای کـړي. په هر حال نزهت يو کال وروسـته له تبريز څخـه ولاړه. د هغې له تګ سره جخت او وروسته تر هغې هغه ډلې سره چې وروسته يې د احمد زاده ډلې نوم ځانته غوره کړ د بهروز له خوا زما مبارزاتي اړيکه نوره هم جدي شـوه. ما د نزهت په اړه بهروز سـره بشـپړې خبرې وکړې او ټينګار مې وکړ چې هغه واقعاً يوه مبارزه او انقلابي جنۍ ده، هغه او ښـه دوسـتان يې بايد موږ خپلې ډلې سـره يو ځای کړو. وروسـته زه د ملګرو له خوا تهران ته واسـتول شـوم. بهروز ماته وويل چې د نزهت موضوع په تهران کې خپل رابط ملګري سـره مطرح کړه او د هغه له لارې خپلې ډلې سـره د هغوی د يو ځای کيدو لپاره ګام پورته کړه. په تهران کې زما رابط ملګری جواد سـلاحي وه. هغه سـره مې د نزهت په اړه خبرې وکړې او په ډير شـوق هغې سـره د اړيکو غوښـتونکې شوم. خو په خواشيني سره زما له انتظار څخه بهر ملګري جواد دې خبرې ته اهميت ورنکړ. هغه په هيڅ ډول مسـأله جدي ونه نيوله. داسـې ښـکاريده چې زه يې د يوې ځوانې جنۍ په شان چې زړه يې خپل دوست پسې خفه شوی ګڼلم دغې خبرې زه ډيره خپه او زړه ماتې کړم. په دغه موده کې چې زه جواد سـره په اړيکه کې وم، يواځې مې وکړای شـول چې دوه ځله اعظم سـره تلفني خبرې وکړم. وروسـته زه علي رضا نابدل او پويان سره په يو کور کې مېشته شوم. پدې ځای کې ما په ناهيليتوب سره په لمړني فرصت کې په لنډه توګه د نزهت په اړه پويان سـره خبرې وکړې. زما تصور دا وه چې پويان به هم زما خبرې جدي ونه نيسي. خو زما د انتظار خلاف هغه د ملګري جواد برعکس په جديت او پراخه ټنډه موضوع جدي وګڼله او پريکړه وشوه چې زه په لمړني فرصت کې د نزهت په لټه کې شم. خو دغه لمړنی فرصت زما لپاره پداسـې وخت کې مخې ته راغی چې ملګری نابدل نيول شـوی وه او بهـروز تهـران ته راغلی وه او موږ هره ورځ يـو ځای د کرايې کور پيدا کولو لپاره د معاملاتو دفتر ته تللـو. پدغـه موده کې بهروز ته له خبرتيا وروسـته د نزهت ليدلو تـه ولاړم. اعظم او بهمن هم هلته وو. يوه شـپه د هغوی په کور کې پاتې شـوم. ډيرې خبرې مو وکړې او زه متوجه شـوم چې هغوی په

مبارزاتي کارونو اخته دي او حتی په شپه کې يې د اعلامې په خپرولو لاس پورې کړی دی. اعظم له کارګرانو سـره د اړیکو سـاتلو په خاطر یوې کارخانه کې کار نیولی وه او په شـوخي به يې ځانته د یو کارګر قواره (پُز) نیوله چې کارګر دی. له دې سره سره بيا هم د خط او د مبارزې د استراتيژي د نه پوهاوي په خاطر لالهنده وه. ظاهراً سیاسـي کاره وو. خو د مبارزې د لارې نه پيژندل او د پوهاوي نه شـتون دغو شـرایطو څخه سـرچینه اخیسـتې وه، نه له اپورتونیسـم، وېرې او د صداقت نشتوالي څخه: که څه هم يې په ځانګړې توګه د وسله والو مبارزینو په نسبت بشپړ مثبت ګرایش درلود. ما هغوی ته وویل چې کوژده شوې یم او تهران ته راغلې یم تر اوسه کوم مشخص آدرس نلرم او پریکړه وشوه چې بیاځلي هغوی سره اړیکه ونیسم. ټوله موضوع مې بهروز ته وویله او ډاډه شوم چې دا ځل په یقیني توګه هغوی سره اړیکه نیول کیدای شي. سل افسوسه چې دا اړیکه په داسې وخت کې مخې ته راغله چې د ګران بهروز په نیولو پای ته ورسیده.

کلـه چـې نزهت تـه بهروز تیلفون کوي، د سـاواک مزدوران د نزهت په کور کـې وه (په تبریز کې زموږ په کور د پولیسو تر یرغل وروسته پدی عنوان چې احتمال لري نزهت څخه زما او د بهروز نیولو لپاره کوم لیک تر لاسه کړي نزهت يې ونیوله او وروسته له څو ورځو خوشې شوې وه، په دغه ورځ مـزدوران د هغـې کـور ته راغلي او په کمین کې ناسـت وو). مزدوران هغه مجبوروي چې بهروز سـره د کتلو وعده وکړي او نزهت په هر دلیل دغه کار کوي او جنایتکاره مزدورانو سـره یو ځای د وعدې ځای ته ورځي. پداسـې حال کې چې بهروز په بشـپړه توګه غافلګیر شـوی وو، مزدوران د هغه په سـر تويیږي (بیا هم پدې وخت کې زړه ور بهروز بریالی کیږي چې په مزدورانو ډزې وکړي او لږ تر لږه د هغوی یو تن په ښپه ټپي کړي. په هغه ډول چې ما د کتاب په متن کې لیکلي وه ما هماغه مزدور د ښاروالي په کمیټه کې ولید) اوبهروز نیول کیږي.

نزهت وروسته د بهروز تر نیولو متوجه کیږي چې څه ستر انقلابي ملګری يې د شاه د جلادانو په دام کې نښـلولی دی. هغې وروسـته په سـازمان کې اعتراف کړی وه چې د خپلو ټولګیوالو د خلاصون لپـاره اړ شـوې وه او سـوچ یـې کاوه چـې بهروز یو عـادي روڼ آندی دی نو ځکه يې هغـه ته د کتلو وعـده ورکـړه او ویلـي يې وه په هغه ورځ چې سـاواکیان یـې په کور کې وو او بهـروز هغې ته تیلفون کوي، پریکړه شوې وه چې یو له دوستانو څخه يې یو بکس (ممنوعه) کتابونه هغې ته راوړي او هغه اړ وه چې سـاواکیان مخکې د هغه له راتګ څخه کور نه وباسـي. ما دغه خبره د ملګري جعفري له خولې څخه اوریدلې ده. په څنګ کې هغه ماته وویل چې د نزهت میړه، محمود، د بهروز د نیولو په بهیر کې کثیف او چټل نقش لوبولی دی. د منلو ده کله چې بهروز د وعدې په ځای کې نزهتويني احساسـوې چې خیانت ورسـره شـوی او هرومرو يې تصور کړی چې زما شـناخت نزهت څخه ډېر سرسري او نیمګړی وه. زما لپاره هم د دې مسالې زغم ډېر سخت او ګران وه. کله چې په ۵۳ کال کې مې واوریدل هغه بهمن او اعظم سـره یو ځای سـازمان سـره نږدې شوي، ځانګړی احساس مې درلود. هغه اوس یو سازماني ملګرې وه او ارزښتناکه وه.

۷- کاظم سعادتي (۱۳۵ ۱۳۱۶): چې د خاطراتو په اوږدو کې دهغه ژوند ته اشاره شوي.

د کاظم سعادتي د زیږد کال ۱۳۱۹ کال دی چې په مخکني چاپ کې ۱۳۱۶ لیکل شویدی. کاظم، بهروز او صمد دری واړه صمیمي دوسـتان او یاران وو چې د ځواني لمړیتوب څخه د تربیه معلم په ښـوونځي (دانشسـرای) کې سـره اشـنا شـوي او بیا یې په یو زړه او یوې خولې د اذربایجان په کلیو کې د کلیوالو ماشـومانو په زده کړې او روزنه پیل وکړ. د وسـله والې مبارزې له پیل څخه تر مخه کاظم له خپلو دوه ملګرو سـره د مبارزې ټولې لوړې او ژورې له سـره تېرې کړې وې او په مختلفو بڼو یې د کارګرانو او زیارکښـانو په ګټه مبارزه کوله. کاظم یو خاکسـار انسـان وه (هغه ډول چې په اصطلاح ستر انسان ته، خو په ورته وخت بې ریا او کمینه انسان ته ویل کیږي). د هغه خصوصیات همدا ډول چې کولی یې شول ډیر ژر خلکو (د ښار او کلیو زیارکښانو) سره همغاړی شي. هغه تل د زیارکښـانو په زړونو کې د یو خودي او باور وړ عنصر په توګه ځای درلود. صمد له کاظم سـره ډیره علاقه او مینه درلوده. او همدا ډول د روح انګیز (روح انګیز دهقاني، زما خور او د کاظم سـعادتي میرمـن چـې د اسـلامي جمهـوري کوټوالو جلادانو (دژخیمانـو) د هغې پاکې وینې پـه ۶۰ کال کې په ځمکـه تویـې کړې )هم کاظم ته ډیر درناوی درلود. له همدې کبله وه چې خپل لمړنی کتاب، (اولدوز و کارغان) یې هغوی ته ډالۍ کړ. په ۱۳۴۷ کال کې صمد په مشکوکه توګه د آزار په سیند کې ډوب شو، کاظم د صمد ورور اسد سره د جسد پیداکولو په خاطر په ورځو، ورځو د سیند په غاړه ګرځیدل تر څو یې د صمد جسد پیدا کړ او له ځان سره یې تبریز ته راوړ.

# زما د نیولو څرنګوالی

مـــوږ وروســـته تر هغې چـــې ضربه مو وخوړه، بیا ځلي مو خپله وضع ســـمه کـــړه او خپل انقلابي عملیات مو له سره پیل کړل د ۵۰ کال د غويي د میاشتې په درویشتمې د سهار په وخت د یو مزدور په نښه کولو لپاره زه او ملګری بهروز کور څخه بهر ووتلو، زموږ د ماموریت سیمه د اناتول فرانس او د لیندۍ ۲۱ واټونه وو. زه د لیندۍ ۲۱ واټ کې د خپل ماموریت ســـر ته رســـولو لپاره ولاړه وم او موټر مـــې تر څـــار لاندې نیولي وه چې نا ببره دوه موټر زما په څنګ کې ودریدل او څو کســـان له هغوی څخه بهر شول. یو له هغوی څخه په ښکنځلو او فحش ویلو زما خوا ته راغی او لاس یې زما په خولې کیښـــود او غوښتل یې ما له مځکې پورته او په موټر کې واچوي. نور یې هم مرستې ته راغلل. هماغه وخت د هغوی کرغېړنې څېرې او ناوړه ښـــکنځلې چې یوائې پخپله د ساواک او ښاروالي مزدورانو بې حیایې او بې شـــرمي ســـره جوړیږي په ډاګه کوي. پوهه شـــوم چې مزدوران، دښمنان دي. خو له ځان څخه مې وپوښتل چې زه یې څرنګه وپیژندلم؟ او تر کومې کچې زما له کړنو او فعالیتونو څخه مالومات لري؟ کیدای شـــي تېروتنه شـــوې وي. له دې کبله ما ونه غوښتل چې شعار ورکړم. او د دې په څنګ کې مې نه غوښـــتل چې د پســـه په شان بې چیغو او نارو هغوی ته تسلیم شم. پدې سوچ کې وم چې په اوســـني شـــرایطو کې، زموږ اصلي کار تبلیغ او د دښـــمن د جنایتونو په ګوته کول او خلکو تـــه د وفـــاداري ثابتول دي. له همـــدې کبله ما په چیغو او نارو لاس پورې کـــړ تر څو خلک له خپلو نیولو څخه خبر کړم او په ډاګه کړم چې د خلکو بچیان په څه ډول رڼا ورځ کې ښـــکار کوي. خائنو مزدورانو خام ســـوچ کړی وه چې کولی شي ما به په څو دقیقو کې موټر کې واچوي. پداسې حال کې چې چیغې مې وهلې په ســـوک او لغتو مې ځان څخه دفاع پیل کړه او د هغوی لاس او پښـــو ته چې زما وس رســـیده په غاښـــونو چیچل. په چټکي ســـره د ښـــاروالي نورو مامورینو د هغه د مرستې لپاره راودانـــګل. تر څو ما ژر ونیســـي او د خلکو ګڼې ګوڼې څخه چـــې ورو ورو زیاتیدل مخنیوی وکړي. تر څو د پېښـــې شـــاهدان نشـــي. نور مې د خپلو نیولو علت پیژندلی وه او پوهه شـــوم چې په څه ډول

افشاء شوې یم.

په مخکې مخونو کې مې وویل چې د ټیمي کور تر تخلیه کولو وروسته په تهران کې د ورور کورته لاړم. د هغوی د استوګنې په کور کې یو کرایه ناستی هم اوسیده چې ځان یې د یو دفتر کارمند معرفي کړی وه، پداسې حال کې چې د اطلاعاتو یو مامور وه. هغه څو ځله د ورور په کور کې ولیدم په هماغه ورځو کې یو ځل بیا هغه وخت چې زه د یو مزدور په نښــه کولو لپاره تللې وم د پوهنتون په انګړ کې سره مخامخ شوي وو. وروسته تر هغه چې ساواک زما انځور د تبریز له کور څخه په لاس راوړي زما د لټون او څارلو لپاره خپلو مامورینو ته وروپیژني. دغه پســت فطرته ســړی چې زه یې د خپل ورور په کــور کــې لیدلې وم هغوی ته وایې چې ما پیژنــي او دوه ځله یې زه د پوهنتون په انګړ کې لیدلې یم.*

---

* لازمــه ده چــې د ځان نیــول کیدو په هکله لږ توضیحــات ورکړم او ځینې مــوارد تصحیح کړم. هغه ډول چې د کتاب په متن کې راغلي د شــاه امنیتي ځواک له ســاواک څخه نیولې تر ښــاروالي او نور، له ډیر وخت څخه را پدې خوا زما د نیولو په لټه کې وه او د دې خبرې لپاره یې ډیر ځواک ســمبال کړی وه. هغــوی زمــا څرک او پته پرته له دې چې زما نوم وپیژني له ســیاهکل څخــه اټکل کړی وه (ملګري احمد فرهودي چې د ســیاهکل له جنګیالیو څخه وه دهغه له لارې پوهیدل چې هغه ځنګل ته مخکې له ورتګ څخه یوې تبریزي جنۍ ســره په یو ټیمي کور کې ژوند کاوه). د ملګري نابدل تر نیولو وروســته ســرکوب ګرانو زما مشــخص څرک ترلاســه کړ او له هغه ځایه یې زما او د بهروز نیول ډیر جدي منلي وه په مختلفو اقداماتو یې لاس پورې کړ.

زمــا د نیولو پیښــه هغه ډول چــې لیکلي مې دي د لیندۍ ۲۱ واټ کې، چــې اوس د لیندۍ ۱۶ واټ نومول کیږي منځ ته راغي. له نیولو څخه وروســته کله چې زما د ورور ښــځه یې زما مخې ته راوســتله او له ما څخه یې وغوښــتل هر څه چې پوهیږم امنیتي ځواک ته یې ووایم، په څنګ کې یې ما ته وویل چې ستاسې د تهران په کور کې کرایه ناستي سړي زه اطلاعاتي کسانو ته ښودلې یم. البته زه خپله دوه وارې له هغه کرایه ناستي سره د تهران د پوهنتون مخې کې مخامخ شوې وم او د نیولو په وخت کې هم ما ولید. له دې کبله مې په هغه وخت کې هیڅ شک ونکړ چې هغه اطلاعاتي مامور ونه بولم. خو الزاماً داسې نه وه. واقعیت دا دی چې په هغه شرایطو کې امنیتي مامورانو د وېرې او رټلو له لارې چې د ټولنې زیات کسان ورســره مخامخ وه ګټه اخیســته او له دغه کســانو څخه یې یو شمیر د ځان لپاره همکارۍ ته اړ ویستل. دا ډول کســانو هم په ډیر ســپن سترګیتوب سرکوبګرو ځواکونو ته د همکاري لپاره حاضریدل پرته له دې چې الزاماً د اطلاعاتو رســمي مامور وي. زه تر ډیرو کلونو وروســته متوجه شوم چې هماغه کرایه ناستی او زما خپله کورنۍ، د پورته یاد شوو کسانو نقش درلود. په واقع کې هغوی غوښتل یا نه غوښتل د اطلاعاتیانو له خوا زما او د بهروز په نیولو کې دلته او هلته وړل کیدل. د ســپاه دانش د مدرســې په شــپنې یرغل، چې په

پولیســـان هغه ســیمه تر ځار لاندې نیســـي. د دې نیولو ټولې تیروتنې ما ته متوجه وې. ځکه په هغه ورځو کې د پوهنتون پرلتونه تازه پای ته رســیدلي وه اوهغه ســیمه هرو مرو د ساواک مامورانو څخه ډکــه وه او زه د موقعیــت او وضعیــت له څیرلو پرته هره ورځ هلته ورتلم، پرته له شــک څخه ظاهراً بې هدفه په دغه ســیمه کې زما دریدل او هغه هم هره ورځ د ســاواکیانو پام ما ته راکشــوه. کله چې مزدورانو زما د نیولو لپاره هڅه کوله او نه بریالي کیدل، د هماغه کرایه ناســتي کرغیړنه څیره مې تر ســترګو شــوه. او غوښتل یې ځان له ما څخه پټ وساتي تر څو ما ته د خپلو نیولو لامل نا څرګند پاتې شي او هغوی وکولی شي خپل دروغ ما ته په خوله کې راکړي او د بیلګې په توګه وښایې چې دوی ډیر ځواک لري او له هر څه څخه خبر لري او پدې ډول نورې چټې خبرې... خو د مجبوریت له مخې د نورو مزدورانو د مرســتې لپاره راغی. څه کرغیړنه څیره یې درلوده. نږدې ۱۵ دقیقې دغې نا برابره نښــتې دوام درلود. ټولې جامې مې څیرې او وشــلیدلې بالاخره پداسې حال کې چې څو تنو مزدورانو زما لاس او پښــې ټینګې نیولې وې پدې خوا او هغې خوا یې کشــولم په ډیر ناوړه حالت یې موټر کې واچولم. ټکان مې خوړلی نشو، له دې سره سره مې لاس او پښې وهلې. له هغه زور څخه چې مې پیدا کړی وه پخپله مې هم تعجب کاوه. زما بې حرکته پاتې کیدل دهغوی لپاره ناښونې وه. کله یې چې زما لاس او پښــې نیولې وې، له غاښــونو څخه مې ګټه پورته کوله. یو مزدور زما ګوته د غاښو په منځ کې نیولې وه او په ډیرې غوســه یې په غاښــولم. او بل راته تپانچه (کلت) په سر نیولې او چیغې یې وهلې چې حرکت ونکړې که نه ډز (فیر) کوي. څه د ملنډو ویرول. ځانته مې په حرکت ورکولو سره د هغه له لاسه تپانچه وغورځوله. هغه په بیړه کړوپ شو او کوښښ یې کاوه چې تپانچه زما له لاسرسي څخه لرې کړي. ما په دغه وخت کې پښه د هغه لاس څخه خلاصه کړه او د موټر شاتنی شیشه مې په لغته ووهله او ماته مې کړه. اوس نو هغوی زما د بې حرکت ساتلو لپاره ډیرې هڅې په لار واچولې. یوازې ســر مې پورته وه او کتل مې چې موټر د معمول په شــان ډک وه او ناســتو خلکو په ستومانه څیرو د

---

کتاب کې د شپني او ورځني موسسې تر عنوان لاندې یې نوم اخیستل شوی د امنیت سازمان د مامورینو په څنګ کې د ښاروالي هغه «ښځونکې» نه، بلکه همدا ډول نورو افرادو ګډون درلود. هغه ډول چې بهروز ما ته زده کړي وه ما خپلې کوړنۍ ته ویلي وه چې په هغې مدرسه کې لوست کوم. خو په واقع کې ملګری مرضیه اســکویې په هغه ځای کې تحصیل کاوه. په لیلیه باندې د مخفي پولیســو د یرغل په شــپې هغه په لیلیه کې وه او پخپله د دې یرغل شاهده وه او هم هغه وه چې مالومه یې کړه ښځه یا ښځې زما د پیژندلو لپاره هغه ځای ته راغلې وې، په هر ټولګي کې یې ځان زما ترور، تږړۍ او د ورور ښځه معرفي کوله.

بهر تماشـــا کوله. بی له شــکه موټر په ښار کې کښته روان وه، ځان سره مې ویل دا د خلکو وروستني وګـــړي دي چـــې وینم یې هغوې ما ته متوجه نه وه. خو ما د هغوې لپاره خپل ســـر ته ټکان ورکاوه او پدې توګه مې هغوي ته ویل چې تل مدام به یې دوســـتان لرم او هیڅکله به هغوی ته شـــا نکړم. پدې ســـوچ چې څومره ژر ونیول شـــوم او د انقلاب لپاره مې لږ کار هم سر ته رسولی ندی. د شرم احساس مې کاوه او په خواشیني سره مې ځانته وویل: (باید تر ربړوني لاندې خپله دنده ښه سرته ورسوې!).

# د ښار د امنيتي حوزې په زندان کې ربړونې

پدې ډول د اطلاعاتو ادارې ته ورسېدو. موټر څخه کښته شو. پداسې حال کې چې د اعتراض په ډول مې چيغې وهلې په يو اوږد دهليز کې يې په څغاسته اچولې وم او په شا يې په لغتو لغتو وهلم په څمکه نسکوره شوم، بيا يې پورته کړم او په څغاسته يې کړم. د ګروېږنې (تحقيق) خونې ته ورسيدو. زه ټوله پدې سوچ کې وم هر ډول چې کيږي بايد پوهه شم دوی تر کومې کچې زما په هکله مالومات لـري. په دروغو او ښــکنځلو يې پيل وکړ وه وه... (ښــکنځل)... «عمو اوغلــي» په ځای کې دی (د ملګري جواد سلاحي مستعار نوم)؟[1] ومو ليدل چې فرهودي[2] څه ډول ګور په ګور شو؟ څو بچيان د جواد څخه سقط کړيدي؟*

ټګمـاره دايــې د کـوم ځـای کـې ده؟ پويـان... (ښـکنځل)... چـې آخونـد شـوی هـم دي. پـدې ډول نـورې خبـرې. زمـا د ښـوونځي ددوران عکـس هـم دميـز پـه سر پـروت وه. مزدورانـو څخـه يـو تـن هغـه راپورتـه کـړ پـه لېوالتيايـې زمـا مخـې تـه ونيـو وګـوره دا څـوک ده؟ مـا چټـک دعکـس تـر شـا ليکنـې تـه وکتـل چـې «دروغجـن کميـس (پالتـو) پـه تـن لـري» سترګـې مـې پـه هغـه کميـس ولګېـدې چـې ځوړنـد وه. وپوهيـدم او عکـس وښـودله چـې زمـوږ کـور تـه تللـي دي او دغـه خبـرو زمـا پـه هکلـه د دوې د مالوماتـو کچـه پـه ګوتـه کولـه.

نور نو زما پټيدلو لزوميت نه درلود. ما دغه موقعيت د خپلې طبقاتي غوسې د بيانولو لپاره تر لاسه کړ اوپه شعار ورکولو مې پيل وکړ:

مرګ په تاسو! بې غيرته جنايتکارانو... د خلکو دښمنانو، د ژورې (زالو) په شان د زيارکښانو وينې

---

* دښــمن ددې لپــاره چــې د خلکو فکرونــه بلې خواتــه واړوي، مونږ د مخدره توکو پــه روږدېتوب او بې‌لارېتوب تورنوي.

څکئ! وروسته مې شعرونه ویل چې ما ته یې ځواک را په برخه کاوه:

**«از هر نواش، این نکته گشته فاش، کاین کهنه دستگاه تغییر می کند»**

**«بلشویک‌وار به‌باید جنگید، چه کند بر دل چون آتش ما آتش تیر»**

په کوتک وهلو یې پیل وکړ. په سوکانو او لغتو زما په ځان را ټول شول او په اصطلاح زه یې یوبل ته پاس ورکولم. جامې مې ټوک ټوک شوې وې او نور مې په تن کې څه پاتې شوي نه وه. لکه د خروړو سپیانو په شان زما په ځان اخته وه. لږ ځنډ وروسته «خطایي» د اطلاعاتي عملیاتو د اداري رییس چې ګویا د شــاه د خونړۍ دســتګاه نږدې مزدورانو څخه وه را ورسید. ټول یې یوې څنډې ته کړل دا څه دي... یوې جنې سره داسې کړنه کوئ... او په قهرجن حالت یې وویل:

دا څــه وضعیــت دی؟... ولې نه پوهیږئ چې په آدب او درنــاوي چلند وکړئ؟ له هغې څخه څه غواړئ، د کور پته یې؟ دا خو څه خبره نده، له وهلو او ټکولو پرته هم کیدای شي پوښتنه وکړئ».

پــه تیــرو وختو کې چې ملګرې بهروز او نور ملګري یې څوڅو ځله ســاواک تــه بیولي وو، زه د ملګــري بهروز په واســطه د مزدورانو له چلوټو او د مهربانه ماهیــت څخه تر یوې اندازې خبره وم. همدا وه چې د خطایي د راتګ وړاند وینه مې کوله او دغه مهربانه څېره! په آرام او مؤدب غږ! په هیڅ وجه یې دوکه راکولی نشوه او زما نظریه یې د هغه په نسبت اړولی نشوه هغه لکه د نورو مزدورانو په شــان یو رذیل ســړی وه کوښښ یې کاوه په ټګي او ریا سره خپله جنایتکاره څیره پټه وساتي. په چټي خبرو یې پیل کړې: «راځه د خپل کور پته ووایه، زه ستا ښیګڼې غواړم، ملګري د چې هر څومره ژر ونیول شي ښه ده، ځکه چې په لږ جرم اخته کیږي. آخر د آفسوس خبره نده چې دغه ښه او تحصیل لرونکي ځوانان مړه شي؟»

کله چې د دغه پست او جنایتکاره څېرې ته ګورې د دوکې او پستي په درک کولو سره یې د انسان وینې په جوش راځي. خبرې مې ورغوڅې کړې او ورله مې وویل:

«ای د انسان دښمنه، جوړجاړی نکوم او تر پایه جنګیږم...»

په غوسه شو او څیره یې ژر بدله شوه. مزدورانو ته یې وویل راځئ تربنه راتاو شئ... (ښکنځلې)...

مزدورانو په ښــکنځلو ښــکنځلو په تخت وتړلم، کوټه له هغوی څخه ډکــه وه. راغلي وو چې زما ننداره وکړي او د اړتیا په وخت کې هغوی ســره مرســته وکړي. د یوې انقلابي جنۍ ربړول هغوی ته جالبه وه. ځینې د هغوی معمولي او ارامه قیافه درلوده. او دا زما لپاره عجیبه وه. هیڅکله مې تصور کړی نه وه چې کیدای شــي یو مزدور دا ډول قیافه ولري. اصلي ربړونکی تورن (سروان) نیک طبع وه، نورو هم ورســره مرســته کوله او متروکه (قمچین) لاس په لاس ګرځیدله. زه یې په تخت تړلې وم

او په پښو یې په متروکې وهلم.

زیات درد مې احساسوه خو شعر ویلو او شعار ورکولو راته ځواک راکاوه. هغوی هم د شعر اوریدلو څخه په غوسه کیدل او هر وار یې په ډېر زور په قمچینې وهلم. د شاه نوم اخیستل او هغه ته ښکنځل کولــو له هر څه زیات هغوی غوســه ناک کول، ځکنې ظاهراً یــې پدې اړه یې زیات تعصب درلود. یوه موده یې په قمچینو ووهلم. ټول په ســختي ســره قهرجن وو او چلند یې لــه تاوتریخوالي ډک وه. لږ وروسته یو شمیر راټول شول او په نصیحت یې راته پیل وکړ: «په ځان رحم وکړه راځه هر څه ووایه. دغه دوه کارونه یې پرله پســې ســرته ورســول، یو کس د دې په څنګ کې چې د درد مزه څکي او له هغه څخه زوریږي او د دمې او هوســاینې دروازې په مخ پرانیســتېویني. دا یو مناسب وخت وه چې په هغوی ملنډې ووهم.

ومې ویل: بابا کله چې زه ملګرو سره په پټو سترګو کور ته ځم، څرنګه کولی شم آدرس ووایم؟ په آدرس نه پوهیږم چې ویې وایم. هغوی دغه وینا داســې وګڼله چې زه یې د خبرو کولو ته هڅولې یم. وهل یې بس کړل. پوښتنه یې وکړه: ښه ده کور په کومه سیمه کې وه؟ ومې ویل: نه پوهیږم. پوښتنه یې وکړه د دروازې رنګ یې څه ډول وه؟ آپارتمان وه، شمالي وه یا جنوبي؟...

ومې ویل نه پوهیږم زما ســترګې همیشه تړلې وې. خطابې په ملنډو وویل: اوس د سترګې پرانیزم او خپله یې په وهلو پیل وکړ. بیا هم د خیر غوښــتونکو نوبت ورســید، بیا یې خپل چټیات پیل کړل: «په ځان رحم وکړه او...». درد مې ډېر زیات شــوی وه. یو لنډ فرصت ته مې اړتیا درلوده تر څو فکر وکــړم او خپل ځان کې ځــواک راټول او خپله اراده ځواکمنه کړم. ومــې ویل: د واټ (خیابان) نوم خاني اباد وه. خوشحاله شول پدې ډول تر څو وکولی شم یو غالبجن آدرس جوړ کړم او هغوی ته یې ووایــم، څو ځله وهل قطع شــول. د دې ډول وینا بل غوره تــوب دا وه چې هغوی تصور کاوه زما زړه غواړي څه شــی ووایم خو درد زغملی نشــم. په اخر کې یې له تخت څخه خلاصه کړم او ویې ویل په لار روانه شم. بدن مې عجیبه حالت پیدا کړی وه، لکه دا چې په زرګونو ستنې مې په تن کې چوخیږي داســې حالت مې درلود چې نه تلای شــوم او نه کنبیناستی شوم، کولی مې نشول چې په یو ځای کې ارامه ودریږم. هغوی زه ونیولم او د کوټې په منځ کې یې وګرځولم. وروسته یوه ښځه راغله او ښپې یې راته پانسمان کړې. فکر یې کاوه چې آدرس ریښتونی دی، کوښښ یې کاوه په نرمې سره چلند وکړي تــر څو هر مالومات چې لرم هغوی ته ووایــم. چلند مې ضد او نقیض وه. ظاهراً د دې په څنګ کې چې تســلیم شــوې وم او آدرس مې ویلی وه خو کرکې او نفرت مې داسې لاس او ښپې رانغاړلې وې

چې اصلاً مې نشــو کولی د مزدورانو مخ ته وګورم او ښــکنځلې ونکړم*. پدې ځای یو کس ته متوجه شــوم چې په څوکی یې کښــینولی، رنګ یې تښتیدلی او په لړ وحشت سره شاؤخوا ګوري. که څه هم مــا پــه هغه وخت کې ولیدل چې د هغه ځای مامورینو په شــان نه وه او د یو عادي کس بڼه لري خو توجه مې ونکړه. وروسته پوهه شوم چې دغه کس زما د نیولو په وخت کې په اتفاقي توګه له هغه ځایه تېریده د وحشــي مزدورانو په لیدو ســره دومره غوسه کیږي چې په یو مزدور حمله کوي او په غاښو یې داړي، ټپي کوي یې او بیا تېښته کوي. خو مزدوران هغه پسې ځغلي او په هوایې ډزو یې نیسي.

په هر حال متخصص کســان (اکیب) د آدرس په لټه اســتوي. زه په هغه وخت کې خوشحاله وم چــې هغــوی ته مــې دوکه ورکړې او چټې یې هغه خــوا او دغه خوا ځغلوم. او خپلــه مې د ځان لپاره د فکر کولو فرصت تر لاســه کړی. خو بیا مې دغې مســئلې ته ســوچ کاوه، ډیره ناراحته او شرمنده کیدلم. ځکه چې پولیس په هر صورت هغه ســیمه تر څار لاندې نیوله او دا چې واقعاً ملګرو په هغه ســیمه کې کور درلود یا یې تګ راتګ کاوه او شــونې وه دښــمن ته پیښه په لاس ورشي او مسبب یې زه اوســم پرته له دې چې وپوهیږم او ویې غواړم. په هغه شــیبه کې پرته له دې چې دغه موضوع په پام کې ونیسم دا ډول کار مې کړی وه.

پښې مې یخې او بې حسه وې په مځکه لویدلی وم ټکان خوړل راته ډیر ګران وو. سهار وه، چوپړې د خوراک دوه قابونو کاشــوغو او پنجو ســره کوټې ته راننوتل، یو له هغه قابونو څخه د افســر وه چې کوټه کې په څوکی ناســت وه او بل قاب باید په بلې کوټې کې افســر ته ورکړي. ما څخه یې وپوښتل: سباناری خوری؟ لږ ځنډ مې وکړ؟ د هغه پوښتنې څخه مې فکر ذهن ته راغی او ومې ویل: هو.

د خوړو قاب یې راته مخې کې کیښــود. په لمړي ســر کې افســر راته لږ څه وکتل او ما په هماغه حالــت کې چې په مځکه پرته وم په خوړلــو پیل وکړ. نور یې ما ته توجه نه درلوده او چالاکه چالاکه په خوړلو بوخت شــو. همدغه شو لحظې راته کافي وې چې ځان ســم کړم او پنجه په خپلې مرۍ کې ښــخه کړم، کوښښ مې وکړ چې په مرۍ ډیر فشــار واچوم. فکر مې کاوه پدې ترتیب کولی شم ځان خفــه کــړم خــو دا کار عملي نه وه. هر څومره چې په ترپکو شــوم ګټه یې ونکــړه. پدغه وخت کې افســر متوجه شو، په ښکنځلو ښکنځلو یې را ودانګل او پنجه یې زما لاس څخه واخیسته، په لغتو او ســوکانو یې زما په وهلو پیل وکړ. پدې وخت کې نور مزدوران هم راورســیدل. هغوی ته خبر رسیدلی

---

* زما منظور ښکنځل (فحش) څخه چې د کتاب په هره برخه کې ترینه ګټه اخیستل شوې، د مزدورانو د غیر انساني او ناوړه خصلتونو واقعي بیان دی.

وه چې آدرس دروغي دی. ربړونه بیا پیل شوه، هغوی ډېر غوسه وو. دا ځل یې برقي ډنډې څخه ګټه واخیسته. مخکې تر دې چې برقي ډنډې څخه د درد زیاتولو لپاره کار واخلي، زیاتره یې د اعصابو او روحیې د کمزوري کولو لپاره په کار وړي. بشپړه یې بربنډه کړې وم او برقي ډنډه یې له ناوړه ښکنځلو او پیغور (متلک) ویلو سره یو ځای زما د تن په حساسو ځایونو ایښودله. «نیک طبع» دغه د بې ناموسي په چارو کې متخصص کثیف ځناور په کوټه کې نه وه، کوټې ته ننوت. له څېرې څخه یې دومره بیچارګي او بدبختي أوریدله، چې ځان سره مې سوچ کاوه څرنګه شونې ده یو انسان د تر دې کچې مفلوک او سپک اوسي. د انسان په اړه دغه ډول انګیرنه کاملاً زما له مجردلید څخه سرچینه اخیسته. بالاخره په یوې طبقاتي ټولنې کې څرنګه کیدای شي انسان پرته له طبقاتي ځایګوټې مفهوم ولري. پداسې حال کې چې ناکامي او بې وسي یې له څېرې څخه أوریدله، ویې ویل: «تاسې غوښتل چې بانک لوټ کړئ، ټول مو ونیول...».

هغه ورځ پریکړه شوې وه چې د آیزنهاور بانک مصادره شي. زه د نیک طبع له دې بیچارګي او بې وسي څخه پوهه شوم چې ملګرو بانک مصادره کړی او څوک نیول شوي ندي.

زه یې د شا په تخته په تخت وتړلم او په بې شرمي یې د همکارانو په مخ کې پرتوګ کښته کړ او پر ما څملاست. په اصطلاح تجاوز ناقص وه، زما د سپکاوي او د اعصابو د ځپلو په خاطر یې دا چلند تر سره کړ، زه له دغه کرکجن چلند څخه ډېره غوسه وم. خو هڅه مې کوله ځان داسې بې تفاوته او بې پروا وښایم چې زما پر ځای هغوي د سپکاوي اوشرم احساس وکړي. غوښتل مې چې هغوی پوه کړم دغه ډول سپک او پست چلند زما لپاره اهمیت نلري او په رښتیا هم څه اهمیت درلودای شي. مګر دغه کار زما لپاره په قمچینو وهل څه توپیر درلود؟ دواړه ربړونه وه، دواړه یې د یوې موخې لپاره سرته رسول. چټله او ناولې موخه، دا چې زما اسرار پدې وسیله بهر وباسي او ما دواړه د یوې لوړې او ارزښتناکې موخې په اتکاء زغمل، د خپل پرتمین ارمان پرمخ بیولو لپاره، د اسرارو خوندي کولو لپاره چې نه ښکاره کول یې د مبارزې او انقلاب لپاره ګټور وو. دغه ربړونه او سپکاوی زما لپاره تیریدونکي او د لنډ مهال لپاره ول. خو زیارکښ خلک چې نه یوه ګړۍ، نه یوه ورځ، بلکه د ژوند هره لحظه یې له محرومیت ډکه ده او زغم یې کوي زما سترګو ته دریږي. په هر حال، د بیړا مزدور د تصور برخلاف کله یې چې زه ارامه او سوکه ولیدم او ویې نشو کړای زما له کړاو او لټ په لټ اوښتلو څخه خوند واخلي. ډېرې سپکې سپورې او پوچې یې یو په بل پسې په خولې راوړې.

وروسته تر هغه یې بیا په تخت وتړلم او په وهلو یې له سره پیل وکړ. دا ځل یې چې په پانسمان شوو پښو وهلم د زیات درد احساس مې کاوه. خو د خپلې ارادې د ټیکاو او تلقین له مخې چې پر

هغه مې ټينګ باور درلود، ومې کړای شــول په ځان کې داســې يو حالت رامنځ ته کړم چې ګڼې بل ځوک ربړول کيږي، زه يې ننداره کوم او د پايلې په تمه يم. له دې ټولو ســره ســره بيا هم وهل مادي واقعيت وو، پدې احســاس نشــو کيدای چې هغه زغم کړې. يو عېني واقعيت لازم وه چې وکولی شم خپله انديشــه هغه ته متوجه کړم. هر وار د قمچيني ضربه نوره هم ســختيدله، ايپک، ريحان، رباب، قاسم... ته مې نارې وهلې. دا د کليوالو زيارکښانو له ټولګې څخه ول چې زه يې ښوونکې وم. د هغوی څارونکې ســترګې مې د ځــان په وړاندې ليدلې. ګڼې لمس کولې مې پــه ناکراره منتظره وې تر څو زما له مينې او وفا څخه د ځان په وړاندې خبر شــي. ما دغه ريښــتوني انتظار د هغوی په مينه ناکو ســترګو کې لوســته، ايا چا چې له نږدې څخه د هغوی دردونه ليدلي او د هغوی د خلاصون لپاره تر پېړيو پېړيو وروسته راپورته شويده او له ريښتونې مبارزې سره يوځای شويده، اوس به پخواني طبقاتي دښمن سره جوړ جاړی وکړي؟

د ايپک د ټيپي لاس په انديښــنه کې وم چې په لور يې غوچ کړی وه. بيا يې له دې ســره ســره خپل کار ته دوام ورکاوه. د رباب او ريحان د هميشني ملا درد په فکر کې وم، مجبور ول چې خپله کوچنۍ کرونده په لاس اوبه کړي. د «ګل لر» زحمت، د زهرا ژړاګانې، د قاسم سپيڅلتيا، د قربان صميميت، او د مرضان بې ريا ماشومانه خوشالتيا چې د اشرف ګويان توری به له شليدلو جامو او پريشانه وضعې ســره زما خوا ته ځغاســتل او ما چې به هر ځل د هغې بې خبره خوشــالي ته کتل د بې پايه کړاونو او سپکاويو په سوچ کې به کښيوتم کوم چې ورله سترګې په لار ول تر څو يې ټول وجود ونيسي او ژوند يې ورتباه کړي. ډيری غمونو مې زړه مروړه، پداســې حال کې چې ســتونی مې کرکې او بُغض څخه ځپل شوی وه، د هغوی په مخ مې خندا کوله او دلاسا کول مې، په زړه کې مې سوګند کاوه چې ستاسې د خلاصون لپاره به هڅه کوم.... ستاســې د خلاصون او ستاســې په شان ټول هغه چې د زورواکو او ستمګرانو په بند کې تر ستم لاندې دي هڅه کوم. دا دی اوس ټولې دغه صحنې له نږدې څخه وينم. د قمچينــې په هر وار هغوی ته نارې وهم، غوښــتل مې هغوی ته په واقع کې خپل ځان ته ډاډ ورکړم چې هغوی ســره خپل پيوند ســاتم. بدبخته مزدورانو فکر کاوه چې زه د خپلو سازماني ملګرو نومونه وايم. څومره چټې خوشالي يې کوله... او پوښتنې يې کولې.... ښه نور څه؟ کوروالا يې ځوک دي...؟ کورنۍ يې څرنګه دي...؟

له ملنډو ډک نور مانُورونه يې هم تر ســره کړل. پداســې حال کې چې خطايې تومانچه (کُلت) په لاس کې نيولې وه او بېرولم يې چې غوارې پوزه مې سورۍ کړي، څلور متري څخه يې په نښه کولم. لمړی مې باور وکړ چې غوارې همدا کار وکړي او همدا رنګه يې ښــووله چې ماشــه کش کړي، ســر

مې وړاندې کړ چې ګولۍ مې په سـر ولګيږي. خو هغـه او نږدې ملګرو يې په ملنډو خنداګانې پيل کړې. دويم ځل بيا مانُور تکرار شـو... ما لمړنی حرکت بيا تکرار کړ. خطايې ظاهراً په غوسـه شو او چيغه يې وکړه: «سمه ودريږه غوارم يواځې پوزه د سورئ کړم.» پوهه شوم چې دا پرته له ملنډو بل څه ندي. هغوی يواځې زما د بېرولو قصد درلود او تر هغه زيات په ما ملنډې وهل. درې يا څلور ځله دغه لوبه تکرار شـوه. تومانچه يې بدلوله، واټن يې کم او زيات کاوه او پدې ډول خوندور کارونه!! هغوی فکـر کاوه پدې ډول احمقانه حرکاتو زمـا ايمان او تزلزل نه منونکې اراده ولړزوي. څومره بابېزه او احمقانه خوش باوري!

بيايې هم د شـا په تخته د لرګي په څوکۍ وتړلم او لاسـونه يې راته د څوکۍ دواړه غاړو ته ځوړند او تر پښو لاندې تير کړل او ولچک يې کړل. ټول له کوټې بهر لاړل. د ملا تېر مې لرګينې څوکۍ سره سـوليده احسـاس مې کاوه چې شا مې سورئ کيږي، ډير سـخت درد پيدا شوی وه. زما په ګمان درد يې د قمچينو تر وهلو زيات وه.

پـه ځانګـړې توګه کله چې يو مزدور هم زما په خوا کې نه وه تر څو هغه ته په چيغو او ښـکنځلو وکولی شـم دغه درد ته بې پروا اوسـم. د ملګري مائو په شـعر ويلو مې پيل وکړ «پنجه برګها اويزان است». شعر پای ته ورسيد خو درد اوس هم دوام درلود. لاسونه مې ستړي شوي وه. احساس مې کاوه چې غوڅ شويدي. د ملا سوزش مې چې ټپي شوې وه ځورولم. بې ارادې مې دننه په ځان کې ناکراري کوله چې دا زما لپاره تازه خبره وه. ځان ته مې په ملامتي سره ويل: دا په ډاګه کوي چې په تير ژوند کې مې پوره هڅه نده کړې چې ځان سخت ژوند او دردونو سره عادت کړم.

لږ ځنډ وروسـته د مزدورانو تګ راتګ پيل شـو. هغوی يو يو په نوبت سره راتلل او هر يو د خپل خاص منطق له مخې غوښـتل ثابته کړي چې غوره ده له دوی سره په اصطلاح جوړجاړی وکړم. يوه مې د مور غم او غوسې څخه خبرې کولې. بل به ويل: ستا يې په خلکو څه؟ که هرڅومره پښې لوڅې او بې وسې وي. ته د ځان په فکر کې اوسه. ځينو يې د پيسو او بهر ته د مسافرت وعدې راکولې! هر يو غوښتل ما څخه خبرې واخلي او جايزه وګټي. کله چې د جاسوسانو د يو چرګوړي استدلال پای ته ورسيد او غوښتل يې لاړ شي په سپين سترګيتوب يې راته ښکنځل وکړه چې: «ما غوښتل چې خبرې وکړې ترڅو لږ پيسې زما لاس ته ورسيږي!».

نه پوهيږم دا وخت څرنګه تير شو. ښايې بې هوشه وم، ښايې خوب وړې وم. کله چې په ځان راغلم، ګوانښونه پيل شول. ويل يې: «تر اوسه د څه ليدلې؟ مور خو د ساواک مامورين نه وو. کله چې اوين کې د سـاواک مامورينو ته په لاس ورشې، شـونې نده چې خبرې ونکړې. هغه ځای ډير وحشتناکه

دی، نن شپه د هلته ورو».

ما چې مخکې تر دې د ســاواک او ربړونو په هکله اېلتې اوریدلې وې. او پدې ځای کې مې هیڅ وحشــتناک څه لیدلي نه وه، ما د دې په ځنګ کې هغوی ته ویل: فرق نکوي، تاســې ټول یو ډول یاست! ځان سره مې ویل: دغه (ښاروالیان) حتماً د هغوی شاګردان دي. خو زما اراده هماغه شان د ملګرو د اسرارو په ساتلو، مقاومت کولو، او دښمن ته د نه تسلیمیدلو په وړاندې تزلزل نه منونکې وه.

# د اوین په ربړون‌ځای کې

شپه را ورسیده. نیک طبع څو مزدورانو سره یو ځای راغی چې ما اوین ته یوسي. د زندان یو ارت کوټ یې په لاس کې وه چې ما ته یې واغوندي، تکسـي چې غوښـتل یې ما ته نږدې شـي په لغتو مې واهه. کله چې څو کسـانو ونیولم او غوښـتل یې ما بې حرکته وسـاتي، په یو ډول مې لاس او پښو ته ټکان ورکړ. بالاخره پداسـې حال کې چې څو مزدورانو مې لاسـونه او نورو مزدورانو مې بدن ټینګ نیولې وه، کوټ یې راته په تن کړ او سـترګې یې راته په ټوټه وتړلې. بیا یې له مځکې څخه په لاسـونو پورته کړلم، په موټر کې یې واچولم. نیک طبع او څو نور مزدوران په چوکیو کښیناسـتل او پښـې یې زما په ځان کښیښـودې، همیشـه یې لغتې وارولې..... نیک طبع دغه چټل جنایتکار زما سر په خپل زنګون ایښودی وه او کله چې ما غوښتل ټکان وخورم په کښته خوایې فشار ورکاوه. پدې ډول موټرد ښاروالي اطلاعاتو او د اوین ربړون‌ځای تر منځ واټن تر سره کاوه.

د لارې په اوږدو کې د یو برازیلي مبارز ملګري په سوچ کې وم چې خپله ژبه یې په غاښونو غوڅه کړېوه تر څو خبرې ونکړي. ما هم غوښتل همدغه کار وکړم، ژبه مې لږ وچیچله خو هرڅومره مې چې هڅه وکړه بریالئ نشوم. البته څومره چې لازمه وه په تصمیم کې هغه ډول قاطع نه وم. ځان سره مې اسـتدلال کاوه که څوک وغواړي خبرې وکړي لازمه نده چې یوازې په ژبه ووایې کولی شـي چې خپلې خبرې ولیکي.

په اوین کې یې په پټو سترګو په تخت څملولم. تر ټوټې لاندې مې وکتل چې شاوخوا مې د ساواک مزدورانو نیولې وه. د هغوی په منځ کې یو ګوریلا ډوله بدرنګه جسـم حسـینې تر سترګو کیده، ومې پوښتل: زه مو چیرې راوړې یم، دا څوک دي؟

ثابتـې وو چـې خواب یې راکاوه، پداسـې حال کې چې هڅه یې کوله خپل غـږ ته لوېې او جلال ورکړي وویل: دا زما حلقه به ګوش غلامان دي. ما د یوه غوږ پریکړی دی پداسې حال کې چې لاس یې د حسیني په سینه واهه په لوړ آواز یې وویل: د دغه ژبه مې هم غوڅه کړېده. دغه سیمه... زما ده

(یاد مې نده سیمې ته یې څه وویل. غوښتل یې هغه چاپیریال عجیب و غریب او افسانه یې وښایې، د بیلګې په توګه: د وحشـــي او وینې څښونکو ځناورو سیمه!) بیا مې خپل قد اندازه کړ. حالت مې ښه وه، هیـــڅ ناراحتي، ویره او ناکراري مې نه احساســوله او دغه ټول کارونه زما د چوپتیا په حالت کې ترسره کیدل. وروسته له دغه ملنډو وهلو یې د څو کسانو نومونه واخیستل چې ووایم کوم یو پیژنم. ما هڅه کوله کوم نومونه چې په ژبه راوړې وانه اورم. ویریدلم چې کوم آشنا نوم مې تر غوږو نشي او بدن مې غبرګون و نه ښايي. ځان مې ټینګ نیولی وه. د آدرس پوښتنه یې وکړه. هماغه درواغجن آدرس مې ورله ورکړ. سترګې یې راخلاصې کړې بیایې یوې غتې کوټې ته بوتلم چې دوه میزونه او یو تخت په کې ایښودي وو. لمړی حسیني په مسخه شوو کړو وړو چې غوښتل یې د هغه له مخې یو وحشتناک حالت منځ ته راوړي پداسې حال کې چې زما سر یې کلک نیولی وه له ډیرې غوسې شاؤ خوا تاویده او لکه د وحشـــي ابړې په شـــان یې چیغې وهلې، چیغې یې زړه بوږنونکې وې. غوښـــتل یې پدې ډول ویره او ډار منځ ته راوړي. نیک طبع، ځوان حســـینزاده او څو تنه نور مزدوران چې نومونه یې ما نه پیژندل په ښکنځلو ښکنځلو کوټې ته را ننوتل، دا... فاحشه... چیرې ده، حسینزاده ټول یوې خوا ته کړل او په تخت کښیناست. ټینګه یې نیولې وم او ټکانونه یې راکول او په ډیر چټل او شهواني حالت یې ویل: «زما ســترګو ته وګوره، ګرانې زما ســترګو ته...»، سر مې کښــته نیولی وه او ګیرد چاپیر مې کتل، نه مې غوښــتل د هغه خبروته غوږ ونیســم، پدې کار غوسه کیده چیغې یې وهلې او ټکانونه یې راکول. بیا یې تکرار کاوه: «زما سترګو ته...» مالومه نه وه چې دغه جنایتکار مزدور څه نیت درلود؟ او له ما څخه یې د څه غبرګون تمه درلوده، ښــایې فکر یې کاوه چې ســترګې یې د هیپنوتیزم ځواک لري او ما هیپنوتیزم کړي. ورو ورو له دې کار څخه ســتړی شــو او یو مزدور ته یې وویل: «لاړ شـــه متروکه (قمچینه) راوړه... (ښــکنځلې).. د دې حســـاب ته باید په متروکې سره ورسیږو». ما ته یې مخ را واړوه او ویې ویل: «ما پیژنې؟ زه حســـینزاده مشهور جلاد یم» (هیښ کوونکې ده چې په جلادي ویاړ کوي) کرغیړنه څیره یې وړاندې وروســـته کوله او پرله پســـې یې تکراروله: «دغه ځای اوین دی او زه د ربړونې متخصص» ما د دغې کرغیړنې کلمې واقعي ژوروالی د هغه په وجود کې احساســوه. دا چې د ویرې هیڅ حالت مې نه درلود او ټول کارونه یې ماته ملنډې تر سترګو کیدې خوشحاله وم. بالاخره متروکه یې راووړه په مځکه یې کښینولم دواړه لاسونه یې د صلیب په بڼه تخت سره وتړل. څو مزدورانو زما پښې ټینګې ونیولې او په متروکه یې وهلې. چاپیر شوو کسانو هر یو ښکنځلې کولې او په لغتو یې وهلم چې: «ووایه». یو ځوان او دوه ترکي سپین ږیرو چې یوه اندازه ونه او یو شان خلخنده بڼه یې درلوده هڅه کوله په پسته ژبه خبرې وکړي: «جنۍ ځان بېځایه په کړاو کې مه اچوه. راځه ووایه»! حســـینزاده چې زما چُوپتیا لیدله نور هم غوســـه کیده. یو وحشـــي حیوان څخه یې توپیر نه درلود. نه

پوهیده څه وکړي. د متروکې ګوزارونه يې نور هم کلک وارول او ښکنځلې يې کولې. بالاخره ستړی شــول او نور يې ونه وهلم. لاس او پښــې يې راخلاصې کړې چې په لار روانه شم. پښې مې په مځکه لګولی نشــوی. د شــا له خوا يې ټیله کولم او په لار يې بېولم. پدې وخت کې دوه سپین ږیرو استدلال کاوه: «راځه ووایه نور ملګري د حتماً کور څخه وتلي دي. ته نه پوهیږې مامورین دلته څومره غښتلي دي، سبا یا بل سبا هغوی هم نیسي، شونې ده هغوی مړه شي، آخر سړی باید د نورو په فکر کې هم اوسي، ظلم ندی چې دغه ځوانان مړه شي؟ اوس خو خپله دوی هیڅ، مور او پلار يې څه ګناه کړیده چې باید خپل عزیزان له لاسه ورکړي؟ خپله خو پوهیږې چې د دې کارونو پای مرګ دی. که چیرې ته مرسته وکړې مونږ هغوی نیسو او په واقعیت يې پوهاوو. لاس درکوو چې هغوی نه ربړوو. پوهیږو چې تاسو يې دوکه کړي یاست»!

له ځان څخه مې پوښــتل: واقعاً نه شــرمیږي دغه ډول شرم نه ډک دروغ وایې؟ دغه ټولو احمقانه کړو وړو ته مې خندا کوله. ومې ویل: «زه وایم دا خو تاســې یاســت چې باور نه کوئ! نه ولې باور نه کوو؟ ته خپلې خبرې وکوه».

متروکــې زیات دردونه درلودل، زړه مې غوښــتل وخت دا ډول تیر کــړم چې په متروکې لږ ووهل شــم. په خبرو کې مې داســې ادلون بدلون راووړ چې فکر وکړي لږ لږ غواړم ټول شیان ووایم. داسې مې ښــووله چې تصمیم نیســم. ویل مې ګټه نلري زه څه ووایم؟ نه هیڅ ګټه نلري.... دوه ســپین‌ږیرو بــه ویــل: «نه ووایه خامخا ګټه به ولري». او ما به همدغه خبرې بیا بیا ویلې. حســین‌زاده چیغه کړه چــې: «کــه ونه وایې بیا د په همدې متروکې له پلاره خلاصــوم». د هغه خبرو ته مې هیڅ پام نه کاوه. دوه سپین‌ږیرو ټینګار کاوه چې ډیر ژر ووایم. ما به ویل اخر څه وکړم تاسې باور نکوي. د خاني آباد واټ... نــه، نــه، نو څه ووایم؟ دومره مې په ځان منلې وه چې بایــد همدغه آدرس ووایم. په خپله مې هم باور کاوه چې آدرس هما غه دی. تر څو له چلول جوړشوي ټول آدرسونه ووایم لږ وخت تیر شو، دا چې پرله پســې مې په تکرار ســره ویل: «نه، نه، څه ګټه لري د څه لپاره يې ووایم»، زغم يې پای ته ورسید.

بیا ځلي يې تخت پورې وتړلم، غټې او پنډې لختې يې راوړې وې او ټول په بیشرمي سره خندیدل ملنډې او خیله خندې يې کوله. حسین‌زاده دغه خائن مزدور ډیر زیات غوسه وه، په غوسه‌نا کو سترګو يې راکتل، غوښتل يې پدې ډول کتلو د یو جلاد بڼه ځان ته غوره کړي. پدې کې شک نه وه چې هغه جنایتکاره او جلاد وه. خو حتی پدغه حالت کې هم کله چې په ځیر سره د هغه څیرې ته ګورې پرته له بې وسي او خواري بل څه نه لیدل کیږي. لخته يې په لاس کې نیولې وه او ویل يې: «اوس د دغه

حالت ځای ته راولي او که نه؟ منتظر اوسه ربړونې درله په انتظار کې دي»!

سپکې سپورې يې ويلې او وېرولم يې دغه لړکی.... (څخه کار اخلم). ځان مې له کرکې او نفرت څخه داسې په جوش راغلی وه چې په سختي سره مې خپله چپتيا ساتله. پوهيدلم چې زما هر ډول غبرګون، چيغې او ښکنځلې د هغوی د خوشحالي لامل ګرځي. ځکه هغوی د دې ډول زورولو څخه په ځانګړې توګه د جنسي مسايلو په اړه تمه لري چې چيغې او نارې سورې په لاره واچوي. دا د وېرې او ناراحتي يا د تعصب نښه بولي. زړه مې غوښتل چې لاسونه مې خلاص وای، پورته شوې وای او ټول مې خپه کړي وای. د بندي په شان کښيناستل، بد حالت وه. دغه چټل مزدوران چې حتی يو چريک سره د مخامخ کيدو له تصور څخه لړزيږي، اوس يې پدې ځای کې د لاس او ښپې تړلي چريک په وړاندې جرأت پيدا کړی قدرت نمايې کوي او له هر لوري پر ما يرغل کوي او زور راکوي..... يواځې مې کولی شول په کرکې او نفرت سره په کتلو د هغوی له شرم نه ډک کرغيړن کړه وړه زغم کړم.

لړګی يې په خوا کې کيښود. دا ځل چې نيک طبع حتی د يوې شيبې لپاره هم قادر نه وه څو سپکې سپورې ونه وايي، متروکه يې په لاس ونيوله. د هغه جنايتزيږنده څيرې ته مې کتل هغه دښمن مزدور وه. د زياکښو او شريفو خلکو دښمن هغه خلک چې په ما ګران دي، هغه خلک چې هره ورځ يې له نږدې څخه کړاونه وينم، له کرکې څخه ترخه ژړا، دښمن څخه مې کرکه له سترګو جاري کيده. غچ او کرکې ستونی مروړه. آيا دا ټول تش احساسات ول؟ په ياد مې دي کله چې مې غوښتل يو ټوک ولولم تر پيل د مخه مې هغه ټوک چې د لارې ستونزو پورې يې تړاو درلود، فکر کاوه او ځان سره مې ويل: که چيرې دغه ستونزې په ځان منې، په لوستلو يې پيل وکړه. او که نه دا رښتينولي نده چې د روشنفکرانه هڅو د خوښولو لپاره هغه ولولې.

اوس بې پايه نه رښتينولي پدې کې وه که دغه ټول مې هير کړي وای. تشو خبرو، عمل نه کولو او نه رښتينولي څخه مې ډيره کرکه وه. چې زغم کول يې راته ګران وه. د ربړونې ماهيت ته مې فکر کاوه، حال مې د ليونو په شان وه. د دې ربړونو د اصلي لاملونو په هکله مې سوچ کاوه. د امريکا سر سپارلی خائن مزدور د خپل سري رژيم د پايښت لپاره د هيڅ ډول بيشرمانه کارونو پروا نه ساتله، اوس په بند کې د محرومو پرګنو د لازيات ساتلو لپاره له ما څخه څه غوښتل؟ ما په خپلو خبرو کې څه کړي وای؟ آيا ما خپل قسم خوړلي دښمن ته د غورځنګ ټکولو امکانات په لاس نه ورکول؟ نو ما به ولې... په خپلو خبرو کې يوه شبېه د دښمن په خوښه عمل کاوه، پداسې حال کې چې د يو چريک د هستي ټولې شيبې بايد د انقلاب په چوپړ کې وي. دښمن په ډير سپين سترګي توب غوښتل

خبرې وکړم تر څو دښمن ژوندی پاتې شي او ډېرې ربړونې ورکړي. آیا کولی مې شول د خپلو ملګرو ربړولو ته رضایت ورکړم؟

نیــک طبع د هــرې قمچینې په وارولو ســره چیغې وهلې: «آدرس، آدرس». په هر وار ســره درد زیاتیده او زغم کول یې سختیدل. داسې وخت راغی چې زړه مې ډېرغوښتل وهل نور بس کړي. پدې وخت کې مې نه غوښتل په ښکنځلو سره هغه نور هم قهرجن کړم. له دې درد څخه د خلاصون هیڅ چاره نه وه. دا مې واقعاً احساسول. هیڅ کار مې کولی نشو.

ښــایې لکه د زیږد په وخت کې د مور په شــان د ماشــوم تر پیدایښــت پورې ســخت دردونه زغم کړي. پرته له دې چې د ماشوم د پیدایښت لپاره انتظار وباسي بله چاره نلري. پدې ځای کې د ماشوم پیدایښت مرګ ته رسیدل وه. لازمه وه د هغه انتظار مې کښلی وای. لږ لږ د مزدورانو څېرې د ناهیلی تــوب حالت پیدا کوه او دغه قیافو ته په کتو ســره مــې په ځان باور زیاتیده. له څېرو څخه یې ناهیلي توب او ستړیا په ډاګه کیدله. نور نو دغه بیچاره ګانو څه کولی شول، ډېر مهم او ډېر غټ کار یې چې له لاســه پوره وه هغه ربړونه وه، لیدل یې چې هیڅ ربړونه نشــي کولی زما شونډې د خبرو کولو لپاره خلاصې کړي. وهل یې پرېښودل او د انبور په شان یې په یو شي زما د تن غوښې په غاښولې او ګوتې یې راته تر پرس لاندې نیولې. لمړی یې ویل، غواړې نوکان مې وباســي خو دا کار یې ونکړ. نه ښایې تر شــا نښــې پر ځای پرېږدي. په ســختي حرص پسې اخیســتي وه او دغه وضع یې له غاښونو څخه مالومیده چې په ډېر زور یې زما نوکان په انبور چیچل. دغه شیانو درد درلود نه د متروکې په اندازه. د دې ربړونو په څنګ کې یې ځینې وخت په متروکې هم وهلم. د کار نظم یې له لاســه ورکړی وه. نه پوهیدل کوم کار لمړی یا دویم تر سره کړي. کرغېړنې او کرکجنې قیافې یې د ناهیلی په دوړو پوښل شــوې وې. اوس چې هغه صحنې سترګو ته مجسم کوم، حسیني وینم کله چې ټول آرام او چُپ ولاړ وه په غوســه‌ناکه او عصبي بڼه یې زما د تن غوښــې په انبور چیچلې. د یو ضعیف ټکي په لټه کې وو. صندوقچه یې راوړه چې له مارانو ډکه وه. ځینو د بېرې حالت ځانته نیولی وه. ځانونه یې یوې خوا ته کول او ویل یې: «وای زه خو اصلاً صندوق ته کتلی نشــم». ځینو غوښــتل د خپلو خبرو له مخې مار یو وحشتناک او بیروونکی شی وښایې. د صندوق سر یې لږ خلاص کړ او خپله د کوټې یوې څنډې ته وتښــتیدل. بیریدل چې ماران بیرون نشــي. یو له هغوی څخه دوه متري واټن څخه د صندوق سر لږ څه نور په لرګي خلاص کړ، مار صندوق څخه بهر وخښــیده او میز لاندې پټ شــو، ټول له بېرې د کوټــې یــوې خوا او بلې خوا ته منډې وهې. ننــداره وه او نندارچیان ډېر نابازه او خطاکاره وو. کتل مې هغه کرغېړنو چټلو ځناورو ته چې شــکل یې د انســان وه خو د انســاني خوی څخه یې ډېره کمه

برخه هم نه درلوده، د هغوی شتون مځکه ککړوله. احساس مې کاوه چې ځومره پست او خوار دي.

بالاخره یو له هغوی څخه چې صندوق یې واز کړی وه او ځان یې پاړوګر معرفي کاوه، مار یې ونیو او زما مخې ته یې راوړ. سر یې زما غاړې ته نږدې کړ. مار زما تر غاړې تاؤ شو، هغوی د یوې ضعیفې نقطې په لټه کې وو او ما نه غوښتل چې غبرګون وښایم. که مې تحلیل کړې نه وای، د هغوی حماقت او ناپوهي څخه حیرانتیا ســره مخامخ کیدلم. حســاب ساده او آسان وه او هغوی د یو ساده حساب له درک څخه بې وسي شوي ول.آخر یعنی څه؟ مار څه کولی شول چې ما سره یې کړي وای؟ ځان سره مې حساب وکړ: دغه ماران یا زهر لرونکي دي چې ما به ووژني نو دې څه اهمیت درلو، زه چې پخپله د ځان وژنې لپاره وسیله لټوم او یا بې زهره ماران دي چې موضوع پخپله منتفي ده. یو بې آزاره ځناور مې تر غاړې تاویږي. هغوی پرته له شک څخه حساب کړی وه چې ښځې له ځناورو ډاریږي. ځکه چې ښځې ډارنې او کمزورې موجود ګڼي. له دې څخه پرته بل څه تصور کولای شي چې ښځې څخه یې ولري. هیڅ! دغه ډول اندیشــه د هغوی د ســپک او شــرمیدلي ژوند ثمره وه. ځکه چې هغوی د خپل ژوند په اوږدو کې «ښځه» ضعیفه او کمزورې ګڼلې. خو هیڅکله وسمن نه وه چې د دې خبرې لامل تحلیل کړي. ښــځې څرنګه ضعیفې دي؟ ښــځې په طبقاتي ټولنو او طبقاتي تولیدي اړیکو کې د پیړیو په اوږدو کې دوه ځلي ســتم لیدلی دی: یو ځل څنګ په څنګ لکه د نارینه په شــان استثمار شویده، سپکه شویده، ځواک یې ضایع او بابیزه شویدی، د تفریح، د چرچو او خوند اخیستلو وسیله شــمیرل شــویده. دویم ځل یې تولیدي اړیکو پورې د تړل شوي فرهنګ له مخې د نارینه په واسطه ټول یاد شوي ستمونه په پراخه کچه زغم کړي دي.

خو کله چې ښځه خپله طبقاتي پوهه تر لاسه کوي، هغه نارینه سره چې خپله طبقاتي پوهه یې تر لاســه کړیده، هغه ډول پوهه او پیژندنه چې د فاســد طبقاتي نظام د نســکورولو لپاره یې هڅوي، نور نو هغه ښــځه ارتجاعي معیارونو ســره نږدې نده. بلکه یو پوه «انسان» دی او د داسې نظام په جوړولو لاس پورې کوي چې په هغه کې «انســان» خپل ریښــتینی، پرتمین او ښایسته ځای پیدا کوي. د ټولو ســتونزو په پیژندلو ســره د خپل اوچت او سپیڅلي ارمان په لار کې ګامونه پورته کوي او له هیڅ ډول ستونزو څخه نه بیریږي. کله چې انقلابي ښځه او انقلابي نارینه د مبارزې په مورچل کې ځای نیسي هغه داسې انسانان دي چې خپل ټیکاو ته رسیدلي دي. هغوی د داسې ټولنې لپاره مبارزه کوي چې په هغې کې دغه مسئله چې ښځې ته باید څومره آزادي ورکړه شي د ښځې آزادي ښه ده او که نه اصولاً مطرح نده. بلکه ټول انسانان، نارینه او ښځې د ژوند له غوره والي څخه یو ډول ګټه اخلي او دهغه د پرمختګ لپاره څنګ په څنګ یوځای هڅې او کار کوي.

په هر حال، مزدوران هغه ټولو حقارتونو سـره چې هسـتي يې ورله سر تر پښو نيولې ده، څه ډول يې کولی شـول چې دغه پرتمين واقعيت تر لاسـه کړي. دا يو تش انتظار وه او زه پدې موضوع ښـه پوهيدم. په هر صورت هيلې يې پر اوبو لاهو شـوې او انتظار يې بې ګټې له اوبو راپورته شـو. مار يې خوشـې کړ ترڅو زما په ټول بدن وګرځي. ډيره سـړه سينه ناسته وم او ويل مې بدبختانو دا څه دي؟ ما په مار ويروئ؟ نه مې غوښتل چيغې ووهم او غال مغال وکړم شونی وه فکر وکړي ويريدلې يم خو ليدل مې چې ښـه ربړونه وه. بدن ته مې لکه د چوکونډي کولو په شان ټکان ورکاوه چې ګمان وکړي ربړيږم او پريږدي چې مار نور هم زما په بدن پاتې شـي. که څه هم خنديدل او ملنډې يې وهلې خو خنداګانې يې نکلي وې. نه يې شـو کولی چې خوند ترې واخلي. خنداګانې يې په مسـخه شوو څيرو کې وچې شوې وې. پوه شول چې دا کار مې د کم ارزښته پيسې (پشيز) په توګه هم ونه منله. لاسونه يې راخلاص کړل. غوښـتل يې وروسـتنی مذبوحانه هڅه په کار واچوي. ښـکنځلو سـره سره يې په زورولو او ويرولو پيل وکړ. خبره د خوټيدلو اوبو د وحشـتناک درد او عذاب څخه را پورته شوې وه. او دا چې: «موږ تر اوسه کوم کار ندی کړی. د يو بوتل خوټيدلو اوبو درد د متروکې تروهلو څو برابره زيات ده. د يو بوتل خوټيدلو اوبو په وړاندې هيڅ څوک نشي کولی مقاومت وکړي»! په ما يې چيغې يې وهلې: «دغه..... (ښـکنځل)..... يوازې په خوټيدلو اوبو کولی شو په خبرو راولو. مخکې له بوتل څخه خبرې کوی او که بوتل راوړو؟»

د ملنډو ننداره پيل شوه. لوبغاړي؛ حسن زاده، نيک طبع (د خپل آند له مخې تر ټولو ډير بدرنګه او لنډغر ربړونه ورکوونکي) هغه ځوان او دوه نور مهربان سپين‌ږيري! وو. نورو مزدورانو هم ځار او ګزمه کوله سـپين‌ږيرو له ډير خپکانه او غوسې غوښتل ځانونه ووژني! چې: «وای وای ښاغلی دکتر، ښـاغلی انجينر تاسـې او خدای دا کار مه کوئ. آخر دغه ماشـوم څرنګه کولی شي دا ټول دردونه او ستړياوې زغم کړي؟ دغه جنی تر ربړولو او عذاب لاندې مړه کيږي. زموږ زړونه پرې کباب کيږي» او داسې نورې اپلتې.

ځـوان کله آرامه او کله غوسـه ناکه قيافه نيوله. څو تنه مـزدوران لاړل چې بوتل راوړي. ځوان په نصيحت کولو پيل وکړ: «پوهيږې چې زه خپله ستا عقايدو ته احترام لرم. نه وايم چې کمونيست يم! خو د حضرت علي مريد يم. د شـپې له خوا جلسـې او غونډې کوو. د حضرت علي خبرې وايو. زه هم باورمند يم چې نه ښـايي په ټولنه کې سـتمګر او سـتمکش طبقات وجود ولري. زه هم پدې باور لرم چې فقر بايد له منځه ولاړ شـي. آخر ولې په ټولنه کې بايد دغه ناورين او لوږه وجود ولري؟ خو هر کار چاره لري او ټول شيان په يو وار نه بدليږي. دغه لار چې تاسې په مخ نيولې سمه نده. لمړی

بایــد خلکــو ته زده کړو چې خپل حــق څخه دفاع وکړي او باید هغوی تــه د کلتور له مخې پوهاوی ورکړو او...».

یــو تــن له مزدورانو څخه ما ته د یادولو په خاطر دروازه خلاصه کړه او چیغه یې کړه: «بوتلونه څه شــول؟ اوبه تر اوســه خوټېدلي ندي؟!». دوه سپین‌ږیرو چې ځانونه ډېر وارخطا او غوسه‌ناک ښوول وویل: «ته او خدای راشه ووایه په ځان رحم وکړه. مه پرېږده چې بي پته شې. دغه بې ناموسان (اشاره یې خپلو همکارانو ته کوله) ډېر بې شــرفه دي. والله موږ خجالت باســو، زموږ غیرت یې نه مني چې زموږ په مخ کې دغه کارونه ســرته ورســیږي....». ځوان چې ډېر عصباني شوی وه ویې منله چې هر ډول هڅې یې بې ګټې دي پرته له دې چې ښــکنځل وکړي په ناهیلي ســره یې ډېر ســاده وویل: «څه وایې! د دې جنې ټول وجود سازمان پورې تړلی دی!». بدبخته نه پوهیده چې دغه خبرې ما ته څومره ځواک راکوي. په ځان مې ډېر غرور احســاس کړ. بالاخره بوتلونه یې راوړل. ســپین‌ږیري بهر ووتل چې لړمون یې کباب نشــي! او غیرت یې په جوش نشــي! البته هغه وخت چې نورو کســانو ســره د ساواکیانو په نقش کې څرګندیږي، غیرت او لړمون په کور کې پرېږدي!.

زه یې د شا په تخته (دَمَر) تخت سره وتړلم. بوتلونه یې نږدې راوړل او پورته کول یې.ښکنځلې یې کولې او د بوتلونو د درد څخه یې خبرې کولې. بوتل یې زما په بدن وموښت ما غبرګون نه څرګنداوه. هغوی دغه کار هم پرېښود. سهار یې په عصبانیت تخت څخه خلاصه کړلم. بیایې د حسن ختام! په عنوان تر لغتو، ســپیړو او ســوکانو لاندې ونیولم. نور نو دغه وهل او ټکول پخپله د هغوی د ناهیلۍ او ستومانۍ ننښې وې.

کله چې حســین‌زاده له کوټې څخه بهر کیده، وویل: «ما نن شــپه له خپل ځان څخه کرکه وکړه».

پرته له شــک څخه شاهنشــاه خپلو مزدورانو ته حکم کړی وه چې اوس جنۍ ته ربړونه مه ورکوئ. فکر مې نه کوه چې ربړونې پای ته رســیدلي. ټول بدن مې ســخت درد کاوه. اصلاً هیڅ هوساینه مې نه درلوده، احســاس مې کاوه چې مړه کیږم. خو تر اوســه ژوندۍ وم. خپــل زغم ته په تعجب کې وم ځان ســره مې ســوچ کاوه: عجیبه کلکه ســا لرم. ولې نه مړه کیږم؟ اوس هم په تمه وم چې راشي او ربړونه راکړي. ځان سره مې ویل: دا ځل مړه کیږم. یوه ګړۍ وروسته، ډېر تر ډېره یوه ګړۍ به نوره هم ژوندۍ یم....

نور مې له اوین څخه څه په یاد کې پاتې ندي. بې هوښه شوې وم.

# وسله‌وال خوځښت
# مزدوران په ویره کې اچولي دي

کله یې چې د ښاروالي په مخ کې له موټر څخه کښته کړم او د یو ساتونکي په اوږو یې واچولم، په هوښ راغلم. د ساتونکي د اوږو په سر مې لاس او ښپې وهل پیل کړل څو کسان نور دې ته اړ شول چې لاسونه او ښپې مې ټینګې ونیسي. یواځې سر مې آزاد وه چې ومې کولی شول د هغه ساتونکي غوږونه په غاښونو وداړم کوم چې په اوږو یې اخیستې وم. نارې او سورې پیل شوې. سر یې راته هم ټینګ ونیوه. بیا هم بې‌هوښه شوم.

کله چې په هوښ راغلم، لاسونه یې راته په تخت تړلي وه. تنې خلاصی ارت کمیس یې راته په تن کړی وه چې ټول بدن یې راته پټولی نشو. په کوټه کې دوه ساتونکي د تخت دواړو خواؤ ته ناست وو. یو افسر او دوه ښځې هم تر سترګو کیدلې. پنځه ساتونکي د یو ربړول شوي بې وسلې، نیم ځانه بندي د ساتلو لپاره چې د حرکت کولو وس یې نه درلود او لاسونه یې هم تړل شوي وه!!.

ملګرو! پخپله د دوی د کمزوري او بې وسي په هکله سوچ وکړئ. چې ما څخه یې دومره پیاوړی ځواک جوړ کړی وه. مګر ما څه کار کړی وه چې د دومره ویرې لامل یې وګرځم؟ هغوی یواځې دومره پوهیدل، زه د یو داسې سازمان غړې یم چې د دښمن او د هغه د ټولو مزدورانو په وړاندې د نه پخلا کیدونکې مبارزې په خاطر راپورته شوې یم. داسې سازمان چې په بشپړ بریالیتوب سره یې د هغوی بادار فرسیو اعدام کړی وه. داسې سازمان چې ویره نه پیژني. غړې یې فدایې دي. څومره ښه ده وینو هغه څه چې دوی یې په ګونډو کړي، روحیه یې ورله کمزوري کړی د وحشت او ویرې لامل یې ګرځیدلی هغه وسله واله مبارزه ده.

له ما څخه یې یو خیالي موجود جوړ کړی وه. وروسته مې واوریدل چې په هماغه لمړنیو ورځو کې د اداري ټول مزدوران د دروازې شا ته په کتار دریدل، پداسې حال کې چې بې‌هوښه وم، یو یو راتلل او زما ننداره یې کوله. پخپله یې آوازه خپره کړی وه چې ګویا زه جودو کاره یم! وروسته چې

ســاتونکې ښــځکې خپلې ملګرې ته د هغه ورځو خاطرات بیانول، خبره شوم چې په خندا سره د یو افســر کیســه بیانوي، کله چې به زما د تخت خوا ته ګرځیده، ګوتې به یې د ټوپک په ماشــه ایښودې وې، له ما څخه به یې فاصله نیوله او د تخت چاپیره به تاویده!

کلــه چــې په هوښ راغلم ســاتوکي مې ولیدل چې د تخت دواړو غاړو ته ناســت وو. د ســترګو په وړاندې مې توره کړې ښــکاره شــوه. د ســاتونکو څیرو خلخنده او ویریدونکې بڼې درلودې، سترګې مې په یوې ښځې ولګیدې. دا څوک وه؟ بې له شکه دا هغه ښځکې وه چې د ربړونې په توګه د نواب صفوي[۳] په وړاندې بربنډه نڅیدلې وه. (دا یو واقعیت وه چې نواب صفوي د دغه ډول صحنو څخه ډیر ناکراره کیده او ســخت عصبي غبرګون یې ښوده، دښمن د هغه له دې ضعف او کمزوري څخه ګټه اخیسته).

په ډیرې کرکې مې ورټله او ښکنځلې مې وکړې. مستنطق او افسران کوټې ته راغلي وو، ویې ویل: «میرمنې ناراحته مه کښــینه... لږ ســپک خولې ده خو ښه جنۍ ده... ماشــومه یې دوکه کړیده تاسو ورله د خپل اولاد په سترکو وګورئ». ښځکې خبرې پیل کړې. له بې‌منطقه او خوشې خبرو څخه یې ســتړې شــوم. غوښتل مې لاس ور واچوم. د خبرو په منځ کې به مې وویل: بیا ووایه پوهه نشوم، څه د وویل؟ بیا ځلې یې تکراروله. کله کله به مې سر ته د تصدیق کولو په مانا ټکان ورکاوه او نور کسان به خوشــحاله وه چې بالاخره یواځې ښــځه کولی شي ښځه اېل کړي. خبرې به یې چې پای ته ورسیدې، داسې پوښتنه به مې وکړه چې مجبوره به شوه له سره یې ووایې، په همدې توګه بالاخره ستومانه شوه او پوهه شوه چې تش لاس مې ورکړې وه. افسرانو ته یې مخ واړوه چې: «بابا دا په هیڅ خبره نه پوهیږي» او ما په غوسه وویل: اپلتې وایې، ته څوک یې چې زما ژمنه او تکلیف ټاکې؟

هره شپبه افسر کوټې ته راته او بیرته وته. او خپلو ساعتونو ته به یې کتل. ساتونکي مې څنګ کې ناست وو او ساعتونه به یې داسې نیول چې زه یې وګورم. هغوی فکر کاوه چې زه د آدرس ویلو لپاره د ټاکل شوو ساعتونو لپاره سترګې په لار یم. ساعتونه یې مخکې کړي وو چې د وخت ځنډیدل وښایې. څومره باطل سوچ! بالاخره لمړۍ او دویمه ورځ مطرح نه وه. ما هیڅکله نه غوښتل د هغوی په خوښه تګ وکړم. پوهیدم چې ملګري زما د نیولو د لمړنیو شــیبو له آوازو او ډنډورو څخه خبر شــوي وو. ځکه چې ملګرى بهروز له ما څخه په نږدې فاصله کې ولاړ وه، حتماً موضوع ته متوجه شــوى وه او همدارنګه په هماغه لمړنیو ســاعتونو کې مې ملګرو ســره وعده درلوده. او زه د وعدې په ځای کې حاضره شوې نه وم. پرته له شکه هغوی له کور څخه وتلي وو. همدارنګه دغه کور لنډ مهاله هم وه.ما یو شي ته ډیر فکر کاوه، که آدرس ووایم پولیس کور ته ځي او د سیمې ټول خلک خبروي چې دلته

خرابکارانو اســتوګنه درلوده او موږ دومره هوښيار او غښتلي يو چې ومو شو کولی دغه سيمه کشف کړو. د خلکو په مخ د دروغجن قدرت راکښــل، دا د هغه شــيانو خلاف ده چې سازمان يې پدې پړاو کې له مهمو دندو څخه شــميري؛ يانې د دښــمن ټکول او خلکو ته د هغه کمزوري ښــودل. او اوس خلکو ته ضربه ورکول او د ملګرو په بې دريغه شــپه ورځني زحمتونو او فعاليتونو ســترګې پټول زما لپاره نه بخښــونکی خيانت شميرل کيده او زما لپاره د تصور وړ نه وه چې د خپل لمړني صداقت په آزموينه کې خپل پرتمين ارمان ته شــا واړوم. زما ورينــدار يې مجبوره کړی وه چې ما څخه وغواړي خبرې وکړم. هغه له جريان څخه بې خبره وه. د شپې يې په کور ننوتي ول او حتی بچيانو ته يې اجازه ورکړې نه وه چې ښوونځي ته ولاړ شي او آزموينه ورکړي. په التماس يې ما ته وويل: «اشرف دوی له تا څخه څه غواړي؟ ورله يې ووايه». ومې ويل غوږ ونيسه وګوره چې موضوع څه ده ورله مې ولوستل:

**«انسان بايد سرلوړی وزيږيږي او بايد سرلوړی مړ شي، او د دښمن په وړاندې سر ټيټ نکړي هر څه د خلکو د آزادي په لار کې جاروي.»**

خطايي خپله صلاح پدې کې وليده چې هغه بهر يوسي.

زمــا يو دوســت يې هم مجبوره کــړی وه چې راته دروغ ووايې: «پويان غوښــتل چې بهروز ووژني اوس هم د دې کار په لټه کې دی. ما ته يې په يو ليک کې ليکلي چې هغه سره يې دعقيدې اختلاف پيدا کړی او پويان غواړي چې هغه له خپلې مخې لرې کړي! والله چې خط اوس هم ما سره شته.»

کله چې هغه يې ما سره مخامخ کړ، لاس او پښې يې لړزيدلې. ښکاره وه چې وهلی يې وو. په ليدو يې ما ټکان وخوړ. هغه ترټل شوی او پريشانه حالت يې چې ځانته نيولی وه، ډير بد مې ترينه راغلل. خپل احساســات مې په ژبه راوړل: آه..... ولې داسې وشول، دا څه حال دی؟!! يواځې يې په کوکو او چيغو کې خبرې کولې. هغه احمقانه دروغ يې چې جوړ کړي وه، اريانه نشــوم. هغوی چې د ملګرو کمونستي خصوصياتو څخه پيژندګلوي نه درلوده. چلوټه يې هم روښانه تيروتنه وه.

زما مشــر او کشــر ورونه يې هم زما څنګ ته راوستل. هغوی کومې خاصې خبرې ونکړې. زما د کشــر ورور لاسونه پړسيدلي وو. ســر او مخ يې ټپي وو. مشر ورور هم وهل خوړلي وو. ښايې غوښتل يې چې ووايې: وګوره ټول مو نيولي دي. ښــايې خپله هم پوه نه وي چې هغه يې د څه لپاره زما خواته راوستلي وو. په هر حال په افسرانو او عالي جنابانو باندې مې په ملنډو وهلو، سپکولو او ترخو خبرو هڅه کوله چې د دغه دوستانو روحيه پياوړې کړم. هغوی ته مې وويل دغه څه چې ګورئ ډير سپک او حقير موجودات دي. يواځې زما او ستاســې د وينو په څښکلو ژوند تيروي. موږ بايد پرينږدو چې دوی خپل جنايتباره ژوند ته دوام ورکړي. ايله ډمې ښــځکې چې غوښــتل ځان قدرتمنده او پياوړې

ونښايي او په هر ځای کې لمړی وي زما له ګستاخي څخه تر ټولو زياته غوسه کيدله. وينښتان مې چې اوږده وه تر لاســونو به يې تاؤ کړل او زما ســر ته به يې په زوره ټکانونه ورکول. دومره به يې په څپيړو وهلم چې له پوزې به مې وينې بهيدلې. دا يې تر يو وخت پورې ورځنی کار وه.

هغه شــپه يې د شــربت او امپول خبرې وکړې چې انسان په خبرو راولي. هغوی ته مې وويل: زه ستاسو پدې ملنډو او چلوټو نه غوليږم. لمړی که څوک ونه غواړي، کولی شي د خپلې ارادې د ځواک له مخې خبرې ونکړي. دويم که تاسو داسې شيان درلودای، له لمړی ورځې به مو په کار اچولي ول چې په چټکی ســره مو اطلاعات تر لاســه کړي وای. ويې ويل: «هغه شربت خو ډير ګران او قيمتي دی موږ يې د هر چا لپاره ترينه ګټه نه اخلو» سره له دې چې د دوی په دروغجنو خبرو مې شک نه درلود خو له يو شــي بيريدلم. هغه چې په ماشــومتوب کې مې په خوب کې خبرې کولې، له ځانه مې پوښــتل: آيا ممکنه ده چې د بيهوشــي او خوب په نړی کې په خبرو راشم...؟ زما لپاره د دې موضوع تصور دردوونکی وه. نه، نه، په خوب کې هم بايد په ځان تسلط ولرم. د کور پته او د څو کسانو نومونه چې پوهيدم له ذهن څخه شړل او هڅه مې کوله چې هغه هير کړم. په نورو شيانو مې سوچ کاوه خو همدارنګه پريشانه وم. د شپې يې راته پی راوړې خو ما په سختې سره وکولی شول هغه وڅکم ځکه په هماغه لمړی ورځ چې ما غوښتل د پنجې په واسطه ځان ساډونی(خفه) کړم مری مې ټپي شوې وه.

افسران مې د تخت چاپيره راټول شوي وو، وار په وار يې ويل: «په غړپ، غړپ يې وڅکه هرومرو يې وڅکه....» د شــودو څښــکلو په هکله له دې ټينګار او سپارښتنې څخه اريانه شوې وم. په رينښتيا ســره په شــودو کې يې دوا، درمل اچولي چې زما اعصاب کمزوري کړي؟ ځان سره مې وويل په هر حال شودې خوراکي توکي وي، هغوی غواړي ما ژوندی وساتي له هرې لارې چې کيږي ما په خبرو راولي او زه بايد پدې ځای کې په سمه توګه د هغوی د غوښتنې خلاف کړنه وکړم.

که څه هم زما لپاره دښمن سره خبرې کول ناسم او نفرت پاروونکی کار وه، تر دې اندازې پورې، دا شيان زما له ذهن څخه لرې وه چې کولی مې نشول يوه ګړی يې هم په خپل تصور کې ځای ورکړم، خو د دې لپاره چې دښمن په يو وار په ډاډه توګه په خپلو خبرو کولو کې ناکام کړي شم، د ځان وژنې هوډ مې درلود. البته د دې موضوع تبليغاتي اړخ ته مې زيات اهميت ورکاوه.

ســبا ســهار يې هم شودې راوړې. خو ما يې له څښکلو څخه ډډه وکړه. هغوي په لمړي سر کې په آرام لحــن ټينګار کاوه چې هرومرو يې وڅکم، وروســته يې چې وليــدل زه په جدي توګه هوډمنه يم چې څه نڅکم ګوابښ يې پيل کړل. ښــځکی بيا هم زما وينښــتان له لاسونو تاؤ کړل په څپيړو څپيړو هغــې خوا او دې خوا تــه ټکانونه راکړل. کړنو يې زما په تصميم آغيزه نــه درلوده. په پای کې يې په

ټول حرص سره وویل: «موږ بالاخره تا نه پریږدو چې مړه شې، پدې ډاډه اوسه. د تنقیه په وسیله هم چې کیدای شي ستا معدې ته یې وردننه کوو.» (البته هغوی دا مفهوم په رکیکه کلماتو وایه» بیا پاڅیدل او روان شول.

څه موده وروسته ډاکتر راغی چې ما ته سیروم تیر کړي. هغه مې چې ولید ښکنځل مې ورته وکړې. هغه په سړه سینه وویل: «آغلې په ما څه کار لرې، زه خو پوښتونکئ (بازجو) نه یم، دنده مې ډاکټري ده د خپلې دندې په خاطرهماغه ډول چې هرې ادارې ته ورځم، دغې ادارې ته هم راغلم».
بیا مې په نفرت سره ښکنځلې وکړې. کثیف سړیه، د جنایتکارانو ملګریه، که پوښتونکې هم نه یاست بالاخره دغې دستګاه او پلیدو موخو ته یې کار کوې، شرم د وي په تا!

سیروم یې راوړ، نرسانو سره راغلل چې سیروم تیر کړي، کله چې نږدې شول په لغتو مې ووهل. غوښتل مې چې د کار خنډ شم. ښځکیانې او ساتونکي راغلل هڅه یې وکړه چې زما پښې وتړي، او ما وار په وار پداسې حال کې چې لاسونه مې تخت سره تړلي ول، ځانته مې ټکانونه ورکول. سر مې یوې خوا او بلې خوا ته اړوه، پښې مې چې له هغوي څخه خلاصولې د هغوې په لور مې وارولې. د چیغو په نارو سرو مې نور مزدوران کوټې ته راغلل. هغوی ورسره مرسته وکړه، دوه کسان مې په پښو کښیناستل او درې کسانو مې سر او لاسونه ټینګ نیولي وو، پدې ډول یې سیروم راته تیر کړل او څو امپول یې هم تیر کړل.

له هغې ورځې څخه مې د ۱۳ ورځو په موده کې هیڅ غذا ونه خوړه او د نه خوړو پرلت ته مې دوام ورکړ. هغوی مجبور ول چې هره ورځ په هماغه توګه سیروم او پیچکاری تزریق کړي، د سیروم تر تیرولو د مخه مزدوران راتلل او ۵ کسانو په سختي سره ټینګه ساتلم. اوریدلي مې وه چې که چیرې سیروم یا پیچکاری سره هوا بدن ته تیره شي انسان مړ کیږي نو زما د لټ په لټ اوښتلو له کبله ډاکتر نشو کولی چې سیروم ښه وصل کړي او یا تیروتنه وکړي چې ستن پر ځای ونه لګیږي. البته وروسته پوهه شوم چې پدې ډول نشم کولی ځان وژنه وکړم. خو لټ په لټ اوښتل یو ډول مقاومت او د هغوی غوښتنې ته د نه تسلیمیدو په مانا وه، ښه هم وه ډیر ځورول کیدل او ما د هغوی د کمزورۍ په ننداره کې چې نه پوهیدل څه وکړي په خپل ځان کې مې د قدرت احساس کاوه. دومره ضعیفه شوې وم چې د ورځې زیات وخت بیحاله پریوتم او د وخت په تیریدو خبره نه وم او د ورځو په شمیر نه پوهیدم. کله چې مې هغوی څخه پوښتل څو ورځې کیږي زه بندي شوې یم، حال دا چې یوازې ۷ ورځې زما له بندي توب څخه تیرې شوې وې. ویل یې ۲۰ ورځې کیږي او زه نه پوهیدم چې دروغ وایي او ما پرې باور کاوه. کوټه همیشه ډکیدله او تشیدله. ډګرمن (تیمساران) او ریښسان راتلل

غوښتل يې په يوې پلمه ما سره خبرې وکړي يا له ما څخه خبرې وباسي، البته په ډېر ادب سره. نور به د غلامانو په شــان د هغه په څنګ کې دريدل په کوم ځای کې چې به ډګرمن شــتون درلود، نبايد خپــل ســر ته يې ټکان ورکــړي وای. دغه کارونو راته د ملنډو حالت درلــود. لازمه نه وه چې تصميم ونيســم او ملنډې پرې ووهم. تر دې حده مې له هغوی څخه کرکه درلوده او تر دې حده مې ســپک او بې حيا ليدل چې خپل حالت مې پخپله هماغه شــان ښــکاريده. يا مې مخامخ مســخره کول او يا مې ښــکنځلې کولی. داســې کار مې کاوه چې د بی احترامي ننبه وه او هغوی نشو کولی خپلو خبرو ته ادامه ورکړي. د خبرو کولو لپاره تر يو ســاعت هلوځلو وروســته ټولو دا نتيجه تر لاســه کوله چې: «دغه جنئ ليونی ده»! داعصابو ډاکتر يې درلود چې رســماً يې زما په ليونتوب نظر ورکړی وه او زما لپاره يې نسخه ليکلې وه.

# بیا هم پوښتنې او ربړونه

دویمه یا دریمه ورځ وه چې خطایي او نیک طبع د پوښـــتنو او ځیرنې لپاره راغلل. د تصور له بریده زیات نفرت پاروونکي وو. پداسې حال کې چې د پوښتنو پاڼې یې په لاس کې وې او په ملنډو خندیدل په ډاډه حالت یې وویل: «په آدرس کار نلرو، نورې پوښتنې دي، ته وایه او موږ یې لیکو:

ــ لمړی، نوم

چوپه شوم

ــ نوم د ووایه!

ــ...

د تمسخر حالت یې تعجب سره یو ځای په ډاګه شو: «بابا لیونی ده، عقل یې تر اوسه رشد کړی نده».

ــ «نه بابا غوښتل یې چې لیلا خالد جوړه شي».

ــ «ځان خو لیلا خالد بولي.... نوم د ووایه! د پیژندګلوئ پاڼه د زموږ په لاس کې ده، موږ یوازې غواړو چې پخپله یې ووایې»

دغو نوکرانو او د ظالمو ستمګرانو د اوامرو اجرا کوونکو او خلکو ته د دغو خاینانو په لیدو سره مې غوســـه په جوش راتله. تر دې بریده مې د کرکې احســـاس کاوه چې غاښونه مې په زور سره چیچل، ولاړ شول او برقي ډنډه یې راوړه، په ازارولو یې پیل وکړ.

ــ نوم د څه دی... ها؟ نه یې وایې...؟

په کرغېړنو ځیرو کې یې حقارت او ستوماني په ډاګه تر سترګو کیدله. پدې حالت کې شونې نه وه چې په وړاندې یې عادي حالت ولرې او په ســپکه ورله ونه ګورې. په هر حال یو ساعت یې وربړولم او په پای کې یې چې غوښتل ولاړ شي، وویل: «دا یوازې شوخي وه، نیمه شپه بیا راځو واقعي ربړونه پیل کیږي».

په خبرو يې باوري شـوم. نه بيريدم خو پريشـانه وم. زړه مې غوښـتل کله چې ما پسې راځي بايد وينبه اوسم. فکر مې کاوه د خوب په حالت کې نشم کولی حواس مې متمرکز اوسي. په هر حال شپه تيره شوه پرته له دې چې څوک راشي. په دقيقه توګه راته ياد ندي چې هغه ورځې په څه ډول تېرېدلې. زياتې ورځې په خوب يا بيهوشي کې تېريدلې، د بيداري په وخت کې د سيروم برنامه په هماغه ډول لکه چې وويل شـول سـرته رسيدله. داسـې کارونه مې کول که څه هم ماشومانه تر سترګو کيدل خو په هر حال د دې لامل کيدل چې زه د تسـليميدو او چوپتيا له حالت څخه ګوښـه شم، له دې تصور څخه چې هغوی ته تسـليم شـم يا هغوی سره په معمولي توګه خبرې وکړم ډيره ناراحته کيدلم. پخپله مې نشو کولی چې ارامه اوسم، له هر کوچني شي څخه مې ګټه اخيسته چې هغوی ته په ګوته کړم زه يې دښمنه يم او هغوی سره پخلاينه او جوړجاړی نه کوم.

له دې کارونو څخه يو دا وه کله چې ښـځکې پـه څپېړو وهلم، له پوزې مې وينې بهيدې او وينې په مخ وچې پاتې کيدې، په ترڅو لاسـونو لټ په لټ اوښـتم چې پوزه پاکه کړم، پړونی مې د پوزې خوا ته کشاوه، ښځکې له غوسې ليونۍ کيده، ښکنځلې به يې کولې چې څومره بې ادبه يم او په ټولنه کې مې هيڅ ژوند کړی ندی!

ښـځکې د دې کارونو په مقابل کې بيا بيا په څپېړو وهلم او وينښـتان به يې له لاسونو تاؤ ول پدې خوا او هغې خوا به يې ټکانونه راکول. او بله ترټنه يې دا وه چې په بې شـرمي يې چوکيدارانو ته ويل چـې ما وتخنوي. دا نو ډير سـپکاوی وو. هره ګړۍ به يو آفسـر کوټې ته راتـه او چټي خبرې به يې کولې. ځان سره مې ويل: پرېږده هر څه چې غواړي دغه کارونه د وکړي. پدغه کړنو هغوی په ډاګه کوي چې څومره پسـت او سـپک دي او ما ته يې په ياد کول چې هيڅکله داسې چلندغوره نکړم يا خطا وکړم چې د هغوی او د هغوی د ملاتړي رژيم د بقا لامل شي.

تر ټولو زيات بد سړی نيک طبع وو. دغه رذيل او سپوټک مزدور ډيرې ستوغې سپورې ښکنځلې کولـې، هڅـه يې کوله په اصطلاح د زړه کينه او وحشـيګري يې چې د ربړونې په وخت کې ښـودله خپل عادي حالت هم وسـاتي. زما په وجود کې يې داسـې يو حالت منځ ته راوړ چې په ليدو يې زما بدن منقبض کيده. د ډير زيات کوښښ له کبله وه چې د ټول وجود قوت مې جمع کاوه او کولی مې شـول د غرور او مقاومت په احسـاس د هغوی په وړاندې ودريږم. زړه مې غوښتل چې هغه هيڅکله زما کوټې ته رانشي، نه پوهيږم ولې دا ډول غبرګون زما په وجود کې منځ ته راتئ. پوهيدم چې هغوی هميشـه د يوې کمزورې او ضعيفې نقطې په لټه کې دي. هڅه کوي د هغې په نښـه کولو سره انسان تـه آزار ورکـړي. نيک طبع هم په ما کې د ځان په وړاندې د بدلون حالت ته متوجه وه، يو ځل کوټې

ته د ننوتلو په وخت کې په ویاړ سره وویل: «جلات راغی». زه وپوهیدم چې هغه له دې موضوع څخه د بریالیتوب احســاس کوي. ومې ویل: توپیر نلري ستاسې مهربانترین کس هم جلات دی. ټول په یوه اندازه کرغیړن او کثیف یاست. د دې خبرو ادا کولو په وخت کې د خپلو خبرو مفهوم ته په فکر کې شوم او واقعاً د هغوی عمق او تل مې احساس کړ. وروسته تر هغې مې وکولی شول آرامه او هوسا شم د هغوی ټول وجود راته بې تفاوته او بې توپیره وه.

ځینې افســران به چې کوټې ته راتلل، تحقیر ســره یو ځای به یې د زړه سواندي حالت ځانته نیوه، هغوی به د ښځکې د چلند په وړاندې چې زه یې بې تربیه بللم، ویل: بابا دا ماشومه څه ګناه لري مګر پلار یې څوک وه؟ یو بې وســې او بدبخته کارګر! کله چې به هغوی زیارکښــه پرګنې پدې ډول سپکې او په حقارت یادولې، هغوی ته مې ویل: دقیقاً په همدې خاطر ده چې موږ ستاسې دښمنان یو. تاسې او ستاسې ملا تړی رژیم په دوکې او چل‌ول سره ځانونه د خلکو پلویان وریپژني. البته دغه توضیح د چوکیدارانــو لپــاره وه چې دغه خبرې یې اوریدلې او د دغو صحنو لیدونکي وو. او که نه نو څه لزوم یې درلود. دغه شیان خپله تبهکارانو ته بربنډ او ښکاره دي، خپله پوهیږي نو د خبرو اړتیا د څه لپاره وه؟. همدومره حقارت او ســپکاوی یې بس دی چې هر یویې هڅه کوله زما خبرې په ځان برابرې نکړي او تظاهر یې کاوه چې دې دســتګاه پورې تړلي خلک ندي، حتی شــونې ده چې مخالف هم وي. خو باید څه کار وکړي؟ باید پیسې تر لاسه کړي او ډوډۍ وخوري!

ټټی (مستراح) ته تګ لویه مسئله وه. دوه لمړنی ورځې یې لګن راووړ او زما حالت چې ښه نوه. څــادر مــې چټل کیده، بیا یې په غبږ کې نیولم او ټټی ته یې بوولم. ۵ ښــځې او دوه چوکیداران به بهر ولاړ ول. ټټی ته مې چې وکتل د اوبو نل، د ســیفون پایپ او دســت شــویې زما پام ځانته جلب کړ. چټک مې په ذهن کې وګرځیدل که سر کلک یو پایپ سره ووهم نه مړه کیږم؟ غوښتل مې د دیوال څنډې ته نږدې شــم امتحان یې کړم. خو هغوی تر مخه د دې خبرې اټکل کړی وه، په ســختې مانع کیدل چې دغه پایپونو ته نږدې شــم. لټ په لټ اوښــتم چې ځان د هغوی له منګلو خلاصه کړم، خو دومــره ځــواک مې نه درلود چې ځــان له هغوی څخه په یو وار خلاص کړم. لاســونه یې راته ټینګ نیولي وو، ما نشو کولی چې په یوازې ځان په پښو ودریږم، په هغوی مې تکیه کوله. یوازې سر مې آزاد وه چې په هغه مې د ښــځکیو سرونه وهل. بیچاره نازک‌رنجو ښځکیو سره له دې چې کولی یې شول زما د حرکتونو مخنیوی وکړي خو دومره بیریدلې وې چې چیغې یې وهلې: «راشئ، راشئ دا غواړي موږ ووهي...!» په چټکې ســره افســران او چوکیداران راغلل او په لاس کې یې راته اټکړی واچولې، چوکیدارانــو ته یې وویل چې ما غبږ کې ونیســي. چیغې مې وهلې چې چوکیداران مو لرې کړئ خو

هغوی اهمیت نه ورکوه. لږ ناريې سـوريې مې وکــړې او ځان مې یوخوا بل خوا کړ چې چوکیداران له ځانه لیرې کړم خو بریالی نشـوم. زړه مې ډیر درد کاوه او کنترول مې له لاســه وتلی وو. په اوږه یې واخیستم او کوټې ته یې یوړم او بیا یې ډیر وخت ټټی ته نه بوولم.

# د مزدورانو د سپیتانه یو انځور

د ملګري بهروز نیولو څخه یوه ورځ مخکې، افسرانو څخه یو تن د جګړن (سرګرد) مخفي په نوم د معمول ســره ســم زما کوټې ته راغی او په ملنډو یې پیل وکړ. البته نور یې هیڅکله د آدرس پوښتنه نه کوله، خو هر یو ته به چې زما د ځورولو لپاره په ســر کې فکر پیدا کیده، کار اخیســت. دغه افسر یو چوکیدار ته وویل چې ولاړ شــي یوه څمڅی (قاشــق) راوړي او غول چې په لګن کې پراته وه زما په خوله کړي. دغه کار زما په نظر کې دومره بی ارزښــته او بي مانا راغی چې فکر مې وکړ دا یواځې تهدیــد او بیــرول دي، او حتماً دا کار نکوي. چوکیدار څمڅۍ ســره راغی، لګن یې زما د تخت خوا کې کښیود ومې لیدل چې واقعاً غواړي دا کار وکړي غوسه مې سر تر پښو وپاریده، که مې هیڅ کار کړي نه وای او هغوی ته مې د دې کار اجازه ورکړې وای دا به په بشپړه ټوګه د تسلیمیدلو حالت وو. تر دې بریده غوســه شــوې وم چې تړل شوي لاسونه مې له یاده وتلي وه (لاسونه مې تخت پورې تړل شوي وو). ټوپ مې کړ او ومې غوښتل چې لګن د افسر په مخ واچوم، خو د لاسونو د تړلتیا له کبله د لګــن محتویات زما په ځان چپه شــول کرغېړن تبهکار چــې د دې کار انتظار یې نه درلود او اوس نور هم عصباني شوی وه، زما د لازیات ځورولو لپاره یې امر وکړ چې چوکیدار غول زما په ټول بدن وســولوي او په خوله کې راته واچوي. بدن مې تخت پورې تړل شــوی وه هیڅ کار مې کولی نشو. امر یې په ځای شو. پدې وار هم زما یواځنۍ وسله د هغوی د رذالت په وړاندې هماغه له کرکې او غوسې ډکې سترګې وې چې د جنایتکارانو په مخ نښتې وې. احساس مې کاوه چې د کرکې له داغ څخه مې سترګې سرې شویدي.

یو خندونی وضعیت منځ ته راغلی وه د مزدورانو لپاره چې ټول ژوند یې له دې ډول ســپکاوي او غیر انســاني خصلتونو څخه ډک وه. دغه موضوع ورله د خندا موجب ګرځیدله. ټول افســران یو یو کوټې ته راتلل ملنډې یې وهلې بیا یې پوزې نیولې او په په پیغور ویلو ویلوبهر تلل: «په ځان یې غول کړي دي. نه مو ویل چې لیونی ده؟».

چوکیداران مجبور ول چې زما د تخت خوا کې ودریږي او حق یې نه درلود چې یو ګام زما له تخت څخه لیرې شي، د دې وضعیت له بد او چټل بوی څخه نا ارامه کیدل او خپلې پوزې یې نیولې هغوی ماته ښکنځلې کولې او ویل به یې: «ډیر خو سوکاله وو چې اوس بوې هم کش کړو!».

نشم کولی خپل حالت په ژوره توګه تشریح کړم. د دې په څنګ کې چې د غرور احساس مې کاوه، دغه ټولو ښکنځلو او پیغورونو ته مې هیڅ ارزښت نه ورکاوه، دا مې د هغوی د ناهیلي غوسې وروستنۍ هلې ځلې ګڼلې. خو دغو پرله پسې ښکنځلو او سپکاوي زما په وجود کې بد حالت پیدا کړی وه، سپکاوی او تحقیر مې احساسوه او زغمل مې! زغم پدې مانا چې ځان د پخپله د یو کار په کولو یا نه کولو مجبوره کړی وي، نه دا چې هغه سره مخامخ کیدل ستا لپاره بې توپیره وي. تحقیرونه او سپکاوي مې په ټول وجود لمس کول او کرکې مې ټول وجود په اور لولپه کاوه. د ټولو ستمکښانو ژوند چې زه ورسره په خپل ژوند کې مخامخ وم په یاد راوړل:

زه او زما خلک ټول یو واحد تن یو چې یو د بل په څنګ استثمار شوي یو، موږ ته یې د ژوند امکات او آزادي را کړې نده. د ژوند له ټولو خوندونو څخه یې محروم کړي یو، موږ یې تحقیر کړي یو، تر ښکنځلو یې جار کړي یو. اربابان او رژیم چې دغه مزدورانو پورې تړلی دی زموږ د ژوند د ټولو کړاونو لاملان دي چې اوس هم موږ ځوروي. زه او زما خلک هغوی څخه جلا یو، په تش لاس خو په ټینګ ایمان د هغوی په وړاندې ولاړ یو او هوډ من یو چې د هغوی د نسکورولو تر پایه وجنګیږو. ځکه چې نړۍ باید له ظلم او فساد څخه پاکه وي. ځکه چې وروستی بری زموږ په برخه دی.

# دملګري بهروز دهقاني ربړونه او شهادت

یوه شپه وروسته چې د ملګري بهروز د نیولو شپه وه، نابېره د ادارې په سالون کې ګڼې ګوڼه جوړه شــوه، مزدورانو په ډار سره چیغې او نارې سورې په لاره اچولې وې. په سالون کې یې یوې خوا اوبلې خواته منډې وهلې. همدا وه چې د ملګري بهروز د ژوند حماســه خپلې لوړې څوکې ته رسیدله. هغه نیول شــوی، په خپلو غوســه ناکو فریادونو یې اداره په لړزه راوســتې وه. لړزی، وبیرې او وحشت د مزدورانو ټول وجود پســې اخیستی وه. ویره یې تر دې کچه رسیدلې وه چې د ملګري بهروز صورت شخــه یې په افســانه اې توګه خبرې کولې او هغه یې تر هغې کچې کــوم چې په هغه کې موجود ول. غښــتلی ځواکمن او ځیر په ګوته کاوه. کوم چوکیداران چې د هغه د نیولو د کېسې شاهدان ول، چې هغه یې په څه ډول یوې ناانډوله جګړه کې چې وس او توان یې د لاسه ورکړی وه، پښه یې ماته شوې وه، لاس ترلــی پــه کوټه کې واچوه، او مزدوران د کوټې د دروازې مخ کــې په لیکه ولاړ وه او ننداره یې کوله. په لمړیو شېبو کې چا سره هغه ته د نږدې کیدو او رېړونې ورکولو جرئت نه وه! هغه شپه د ساواک جنایتکارانو ته بلنه! ورکړل شوه چې د ښاروالي امنیتي حوزې ته راشي. ګویا پخپله د حوزې مزدورانو د جنایت په ارتکاب کافي اســناد په لاس کې نه درلودل. باور یې درلود داســې یو کس سره مخامخ شویدي چې باید هغه څخه د خبرو اخیستلو لپاره د ربړونې له ټولو لارو چارو ګټه واخیستله شي. ملګری بهروز د کړاونو بچی وو. ژوند یې د خلکو ژوند سره غوټه شوی وه، د بزګرانو، کارګرانو او د نورو ټولو زیارکښانو ژوند سره چې ډېر عمر یې هغوی سره تیر کړی وه له مینې او محبت څخه ډک وه. او بېسارې کرکه او کینه یې له دښمنانو څخه په زړه کې خوټېدله. دښمن پدې ښه پوهېده او بې دلیله هم نوه چې له هغه څخه دومره ویریدل.

دښــمنان په هغه شــپه لیونیو ســپیانو ته ورته والی درلود. په متروکې د وهلو آواز چې څومره پورته کیده د ملګري بهروز د کرکې اوغوســې څخه ډک آواز ســره یو ځای کیده دهغوی وحشــیګري یې لاپســې زیاتولــه. د ملګري بهروز پــه هکله نه پوهیږم چې هغه یې څه ډول ربــړاوه، د هغه چیغې به

حتـــی کلــه چې وهل قطع کیدل هم پورته کیدلې. چیغې د اعتراض چیغې وې. که څه هم کلمات یې ما ته مفهوم نه وه خو کوم شناخت چې ما هغه څخه درلود پوهیدم چې وایې «ایشک ګنده لر خلقین جانیننان نه ایســتیر ســوز» (ناپوهه ســړیانو د خلکو له ځان څخه څه غواړئ). داسې جمله چې هر وخت یې د ساواک د مامورینو په وړاندې د کرکې احساس کاوه، پداسې حال چې هڅه یې کوله خپل احســاس په ډاګه نکړي تر څو وکولی شــي په خپل ځان کې د ننه د هغې ژورتیا درک کړي. د سر په خوځولو یې بیان کاوه. مزدورانو زما د کوټې دروازه پرانیســتې پریښــولې وه چې د رېړونې غږ په ښه توګه واورم او خپله به ډله ډله تر رېړولو ســتومانه کیدل خپل ځای به یې نورو ته پریښــود، کوټې ته راتلل. د جنایت اور د حســینزاده بدن دومره ســوځاوه چې خپلې شــونډې یې چیچلې وې، یوازې د وزلوبې (رکابي) کمیس یې په تن وه، ښــې یبلی به د ځنځیري لیوني په شــان کله زما کوټې ته او کله دملګــری بهروز د رېړونــې کوټې منډې وهلې. هغه او نورو مزدورانو به ماته په کوټه کې ښــکنځلې کولــې او په مخ یــې راته لاړې تو کولې. په کوټه کې د غولو له بد بوی څخه زیات نه تم کیدل. زما په وضعې خندیدل او ملنډې وهلې. حسینزاده په وقاحت سره تکرار کوله:

«ښه چل یې کړی دی، پر ځان یې غول کړي چې موږ یې تر څنګ ونه دریږو!»

څومره زړه پورې اعتراف! دغه مزدور باید څومره خپل کرکجن اوکرغېړن ځان څخه ډاډمن اوسي چې دا ډول خبرې وکړي!! حتی د دغه مزدورانو د لیونتوب او وحشیګري په اوج کې هم د بې وسي او بیچارګي ښنــې تر ســترګو کیدلې، دغه د لیونتوب حالت په ځانګړې توګه هغه وخت منځ ته راته کله چې به د رېړونې آواز لوړیده او د دوی په اعصابو کې به د تشنج لامل وګرځیده، هغوی پخپله د رېړونې د آواز اوریدلو زغم نه درلود، اړ کیدل چې په یو ډول له هغه څخه ځان تېر کړي. زما دوه ایله ډمې ساتونکې ښځې به دغه وخت زما مخې ته نڅیدلې او په سپیتانه به یې زما په مخ لاړې تو کولې. او پــه ترنم او د ســاز په آواز به یې ویل: «ورور د مــوږ نیولی دي، ورور د موږ نیولی دي» او په هماغه ابتذال کې د ډوب شوو معیارونو سره سم ویل: «بد بختې وسوزه، ورور (نه ملګری) د وګوره چې څه وربانديې کوو»! څومره بې شعوره ټوکمارې وې. د هغوی ملنډو او ټوکو ته مې هیڅ پاملرنه نه کوله. په هغه شــېبو کې مې احساس کاوه دا دی تاریخ جوړیږي. ماجرا په کوم ځای پای ته رسیږي؟ عمده او مهمه مســئله همدا وه او زه د هر فریاد او متروکې په هر وار یوازې په همدې فکر وم. ډېره غمجنه وم، خو ډاډ منه وم، د انقلابي ملګري په صداقت او په انقلابي ورور مې ټینګ ایمان درلود. په یاد مې شول په لمړي ځل یې چې غوښتل سازمان راته معرفي کړي د ملګري داوودي له پرتمین ایمان څخه یې خبرې کړې وې او په ویاړ سره یې ویلي وه چې ملګری داوودي یوه بیلګه او الګو وو، د سازمان

ټول غرې د هغه په مثل دي. ډاډمنه وم چې هغه هم ښـايي پخپله دهغو کسـانو له ډلې څخه وي چې د شـهادت وياړ يې تر ربړونې لاندې لاس ته راوړي. هغه شـپه ناځاپه مزدوران زما په سـر تويه شول غوښـتل يې ما لوچ لپړه کړي، بهروز ته يې ويلي وه که خبرې ونکړي خور د بربنډه مخې ته راولو. پوهيـږم پـه هغه وخت کې ملګري د هغوی دغه احماقت ته څومـره خنديدلی وه. بلاخره د هغه چا لپاره چې ټول وجود يې د انقلاب د برياليتوب له هيلو څخه ډک دی، د دې ډول مسـالو لپاره په کې د انديښنې ځای نه پاتې کيږي. ځان مې اماده کاوه چې هغه ته ووايم: «ملګريه د ژوند پرتمينې شيبې را رسيدلې دي. وخت يې دی چې بايد خپله برخه د انقلاب د برياليتوب په لاره کې سر ته ورسوو. د مزدورانو ماتې، بې وسي او ستړيا په اثبات ورساؤو. خو د ملګري کړنه د بيشرمه مزدورانو په وړاندې دومـره غـوچ اوقاطع وه چې هغوی په خپلې تيروتنې ژر پوهيږي او د دې کار په بې ګټې توب ورته له ورايه ښکاريږي. د مزدورانو ډلې ته چې زما د بربنډولو نيت يې درلود امر وشو چې دا کار ونکړي. له حرص او غوسې څخه چاوديدل. هغه دوه ايله ډمو ښځو زما په سر وارونه کول او ويل يې: «خاورې د په سر شه چې داسې بې غېرته ورور لرې، هيڅ پروا يې نشته چې تا بربنډه ووينې!».

نور مې پرته له هغه خبرونو چې تر ربړونې لاندې يې د ملګري بهروز د ميړانې ښکارندويې کوله بل څه اوريدلي ندي. يواځې يو دوست چې ملګری بهروز يې د ربړونې په وخت کې ليدلی وه، نکل کاوه کله چې به ربړونکو په ټول حرص سره د ليونو په شان هغه ربړاوه د خپل غرور له ماتې څخه به له ډيرې غوسـې د مار په شـان تاويدل. د بشپړې نا هيلئ له کبله به يې هغه ته ښکنځلې کولې چې... ته په کومو ربړونو په خبرو راځې؟ نور نو له کومې ربړونې څخه کار واخلو چې ته خبرې وکړې!

په ريښـتيا سـره په خلکو باندې د يو سـپيڅلي انقلابي مينه پال په وړاندې د دښمن د عجز او بې وسـي د اثبات لپاره تر دې بل روښـانه څه وجود درلوداى شي؟ دښمن پخپلې بې‌وسی اعتراف کوي. ملګري بهروز چې د زيارکښـو پرګنو د مينې اور يې په زړه کې لمبې کولې، پدې ډول يې دښـمن د خپل ټينګ او پولادي ايمان په وړاندې په ګونډو کړی وه.

هغه پوه او آګاه انسان وه چې د خلکو دردونه يې پيژندل او د هغوې درملنه يې هم پيژندله. هر څه يې د انقلاب په لار کې جارول او د ژوند له هرې شـېبې څخه يې د انقلاب د بريا لپاره ګټه اخيسـته او هغه چې تل د انقلاب لپاره ژوند کاوه يوه شيبه هم له هغوی څخه جلا نه وه، هغه چې په ټول عمر کې له هماغه کوچنيوالي څخه دښمن سره په زړه کې کرکه روزلې وه، نو څرنګه يې کولای شول چې د خپلې سترې انقلابي غوسې له مخې بله لار غوره کړي؟!... ملګری په هر حال يوولس(۱۱) ورځې تر نيولو وروسـته د ډيرو وحشـيانه ربړونو، وهلو او ټکولو له کبله د بدو‌ډو جدارونه څيرې شوي وه،

په متیازو کې یې وینه ګډه شــوې وه او د زړه د ســختو ټپونو له کبله شــهید شو. تر شهادت یو ساعت مخکې جنایتکارانو هغه په بېړې سره روغتون ته رسولی وه، ښایې ژوندی یې وساتي. خو ډېر وروسته لاس پــه کار شــوي وو. اتل ملګری په روغتون کې د ستمکښــو خلکو د خلاصــون د لارې نورو نه هیریدونکو شهیدانو سره یوځای شو. هغه ډول چې همیشه یې هیله کوله.

وروســته مې د هغه د ربړونې په اړه ډېر شــیان واوریدل. څو کســانو ویل د هغه پښه یې تر زنکون لاندې په اره غوڅه کړې وه. ځینو کسانو ویل یوازې ګوتې یې ورله غوڅې کړې وې. خو په هر حال د دغه ځناورو جنایتکارانو یو له ربړونو څخه د هغه د ماتې پښې ځای پر ځای کول د متروکې وهلو ســره مل وه. ما یوازې په هغه ورځ له وینو ډک لګنونه لیدل. مزدورانو په درواغو ســره ادعا کوله چې د هغــه زړه لــه اوله کمزوری وه. حال دا چې ټول ملګري پدې پوهیږي هغه یو غرختونکی وه او څو کیلو متره لار به یې پرته له ستړیا مزل کاوه.

زه د هغه له شهادت څخه بې خبره وم. تر څو چې زما دوه ایله ډمو ځارګرو ښځکېو چې په ملنډو سره یې د ملګري پویان پیښې کولې او ما هغوی وترټلې، ما ته وویل: «بدبختې ورور د پرون ومړ، تر اوسه زموږ زړه نه غوښتل چې ته خبره شې» په لمړي سر کې زما زړه ناکراره شو او په بې باورۍ مې هغوی ته وکتل. او بیا مې په ډېر ویاړ وویل: ملګری بهروز بلاخره شــهید شــو! په هغه ډول چې هغه پخپله همیشه هیله کوله. خاطرات د ورله ویاړلي وي!.

# د پولیسي رژیم د مهرې سپهید صمدیان‌پور بې‌ګټې هلې ځلې

درې ورځې وروسته یې زما مخ اولاسونه ومینځل، او پټو یې تبدیل کړ. تر دې کچې کمزورې شوې وم چې کله به یې د کنبینولو لپاره پورته کولم له هوښه به وتلم. همیشه یې پیچکارګانې کولې او هم یې د سیروم په ځای د هګۍ ژیړ د پوزې له لیارې معدې ته رسولې.

نیک طبع ویلي وه د دې پرلت له لیارې هیڅ کار کولی نشې، په هر ډول چې کیږي موږ تا ژوندۍ ساتو. زه هم پدې پوهه شوې وم. خو پدغه موده کې زما د ضعیف کیدو او د مرګ خوا ته د تګ یوازینۍ ممکنه لار د نه خوړو پرلت پیژانده. نور نو مزدوران هم ننواتې ته اړ شوي وه، په واقع کې هغه ډول چې هغوی خبرې کولې او دلیل یې وایه تر ننواتو پرته بل نوم پرې اینبودای نشو.

«آخر ولې خپل ځان دومره ضعیفوې، موږ تا سره نور کار نلرو، آدرس هم له تا څخه نه غواړو، آخر ولې بیځایه مړه شې؟. یو څه موده دلته پاتې کیږې بیا خوشې کیږې او په خپله مخه ځې». که څه هم د هغوی د ټینګار له مخې شکمنه کیدم او ځان سره مې ویل خواړه خوړل خو ښه کار ندی خو نه پوهیدم چې ولې، وروسته تر یوې مودې دې نتیجې ته ورسیدم چې د مرګ لپاره دلیل نشته، پرلت مې مات کړ ټولو مزدورانو هڅه کوله چې په محبت او درناوي سره وچلیږي. هغوی نه غوښتل چې نورې پخوانۍ صحنې تکرار شي او غوښتل یې ما سره په اصطلاح په مسالمت ډول چلند وکړي. او دوه محافظه ښځکیو ته یې سپارښتنه کړې وه په هر ډول چې کیږي او تر هغه ځایه چې کولی شي ما هوسا وساتي. هغوی همیشه ما سره د راتلونکي ژوند په هکله خبرې کولې چې عمومي زندان ته به لاړه شم او هلته به خپلو ملګرو سره یو ځای اوسیږم. ویل به یې دغه ربړونکي ټول ښه خلک دي. یوازې د ربړونو په وخت کې وحشي کیږي. هغه هم مجبور دي څه کار وکړي. په هر حال اوس چې ربړونه پای ته رسیدلي نور نو دغه غوسناک چلند کوم دلیل نلري. یوبل سره کار نلرو. یوبل سره په سوله او صفا کې ژوند کوو. اصلاً پدې کوټه کې د یوې کورنۍ په شان ژوند کوو. منظور یې خپل ځان

یوه بله ښـځکې او زما دوه ســاتونکي ول. ما خبرې نکولې. ځان مې له هغوې څخه جلا احساســوه. جلا؟ نه بلکه مخ په مخ هغوی سره!

یوه له دغه ښـځکیو څخه مشــره ساتونکې داسې ښـځه وه، کله چې ما په لمړي ځل د هغې چلند ولید ډېره پریشــانه شــوم. ریېس او په اصطلاح لویانو سره یې په درناوي خبرې نکولې، په سلول کې یې د یو ملګري په خبره، ملاترې درلود. ښــایې اخلاقي خصوصیاتو به یې همدا ډول حکم کاوه. نه یې غوښــتل څوک پر هغې امر وکړي. د قدرت عاشــقه وه او غوښتل یې چې تر ټولو په لوړه کچه کې اوســي، هغه څه چې په لمړیو ورځو کې زما د تعجب وړ شــول هغه دا وه چې په ورته وخت کې یې د ټیټې کچې څخه خبرې نکولې د دې ښــکارندویې کوله چې ښــایې د لوړ مقام او رتبې خاونده وي، د دې په څنګ کې یې د ټیټې کچې د کارونو خیال هم ســاته. حتی لګن یې هم راوړ. داسې تر سترګو کیدل چې د کارونو ســرته رســولو لپاره د زړه له کومې کار کوي. ځان ســره مې ویل که ټول د دې په شــان وي دا به ډېر بد وي. خو په هماغه ډول چې وروســته یې له چلند څخه په ډاګه شــوه، د کارونو سرته رسول یې موخه نه وه بلکه د لا زیات قدرت لاسته راوړل وه او د هغه لپاره یې له هر تاکتیک څخه ګټه تر لاســه کوله او د همدې خصلت له مخې وه چې د کار ســرته رســولو لپاره یې ټولې هڅې خپله په غاړه اخیستلې تر څو له هرې لارې چې کیږي ما اطاعت کولو ته اړ باسي. کله به زما له کړو وړو څخه دومره عصباني شوه چې د خپل ډګرمن (تیمسار) په مخ کې به یې په کوتک وهلم د هغوی لــه نظره څوک چې د ډګرمــن په مخ کې دغه کار وکړي د ډګرمن بــې احترامي ګڼل کیږي! هغې به خپله ګناه داسې ښوله چې دا هر څه د ډګرمن لپاره د یو خاص ارادت له مخې سرته رسوي چې نشي کولی د ډګرمن په وړاندې بې احترامي زغم کړي.

زمــا د پرلــت په ورځو کې یــوه ورځ، جنایتکاره زوړ کیدړ ســپهبد صمدیان پــور، راغلی وه او په اصطلاح په ډېر صبر او مهرباني یې خبرې کولې: «غواړې چې بهروز ووینې؟ آخر ته ولې دغه ډول کړنه کوې، څوک تا ســره کار نلري. راځه چې ولاړ شــو لړ څه بهروز سره کښینه». ما هماغه شان د پوزې پاکولو پیښــې پیل کړې او په تحکم مې چیغې وهلې چې دســتمال راکړئ کاغذي دستمال د میز په ســر پروت وه بیچاره بدبخت وار په وار دســتمالونه راوړل او ما څېرول، بیا به مې ویل نور هم راکړه وروسته مې لیدل چې دغه مزدور هماغه شان بې خیاله ناست دی او حوصله یې نه تمامیږي. نور افسران هم راټول شوي وو. چیغه مې کړه: نور نو چُپ شه جنایتکاره بیغیرته (پُفیوزه) سم دلاسه ښځکې راپورته شوه او په عصبانیت سره یې په مخ سپېړه راکړه. صمدیان پخپله هم یوه شېبه حوصله ونکړه پورته شو او ولاړ. ځکه چې باید خپله لوبنه یې د نورو افسرانو په وړاندې ساتلې وای. افسرانو

هم یوازې څو سپکې سپورې وویلې او ولاړل. وی به چې نور یې کاروانه بې ګټې لیدل او ښځکې چې یوازې کولی شول ټول کاروانه د خپلې تنګې کوچنۍ کړکۍ څخه ووینې وویل: «آخر دغه کاروانه یانې څه؟ دلته خو ستا له ملګرو یا آشنایانو څخه څوک نشته چې ته غواړې ووایې وګوره څومره قدرت لرم، ډګرمنانو ته ښکنځلې کوې، چا ته غواړې چې ځان وښایې؟ لږ تر لږه د یو معمولي او عاقل انسان په توګه کښېنه. سړی باید هر چا سره په ادب او نزاکت خبرې وکړي تر څو نور هم وهڅوي چې درناوی یې وشي». پرته له دې چې خبرو ته یې وخندم بل ځواب مې نه درلود چې وریې کړم یواځې مې په ملنډو وخندل.

# د پوښتنو او څېړنو دوام

تر يوې شــپې وروســته خطايي او نيک طبع د دې لپاره چې پوښتنو ته يې ما ځوابونه ورکړي نه وه، يوه ګړۍ د هغوی په اصطلاح په بريښــنايي ډنډي را ســره شــوخي کړی وه. هڅه يې کوله په يو ډول ما خبرو کولو ته مجبوره کړي چې پوښــتنو ته يې ځواب ووايم. هغوي پدې پوه شــوي وه چې د دې شــوخي ګانو آغېزه په ما باندې يوازې زما د غوســې پارول وه. او که يې غوښــتل چې په ارامي ســره خبرې وکړي، بيايې هم نتيجه تر لاســه کولی نشــوه. ځکه چې د هغوی ماهيت ما ته په بشــپړه توګه مالوم وه او په هغه وخت کې يې له دښــمني ســره ســره په ادب او نرمي خبرې کولې، د هغوی ټولو په اړه زما د باور نشــتوالی داډمن او مطلق وه. د هغوی دغه حربې هيڅکله نشــو کولی زما په تصميم کومــه اغيزه وکړی شــي به هر حال هغوی د دې ډول چلنــد د اغيزې په خيال، هغه ډول چې زما د نيولو او ربړولو په وخت کې يا کومو مزدورانو چې په لمړيو ورځو کې سرته رسول هغه شان چلند نه درلود. زما د تحقيق لپاره يې مزدوران وټاکل. هغوی داسې ښکاره کوله چې ګواکې د نورو له چلند او کړنو څخه خبر نلري. د بيلګې په توګه جګړن (سرګرد) فريد د حوزې معدوم[۵] شوي مزدورکله چې زما لاســونه تخت ســره وتړل په غوسې سره وويل: «دا څه وضعيت دی؟» او ښځکی ته يې مخ واړوه چې: «ژر راشــه دغه لاسونه خلاص کړه. اخر دغه وحشــيګري يانې څه؟» ښځکی وويل: «ګناه يې خپله ده. په سياســت خو نه پوهيږي ډيره ســاده ده. په لمړي ځل يې داسې کارونه وکړل چې لاسونه يې ورله وتړل». فريد په ناراحتي ســره بهر ولاړ چې د هتکړيو کنجي راواخلي. وروســته تر لږ ځنډه په غوســهناکې قيافې سره پداسې حال چې تر شــونډو لاندې يې دغه جملې ويلې: «اخر تاسو چې د وحشيانو په ډول يو انسان سره داسې چلند کوئ مالومه ده هغه هم بايد غبرګون وښايي». په اصطلاح بې پايلې ســتون شــو. کښيناســت او ويې ويل: «مېرمنې واقعاً زما لپاره د زغم وړ نده چې تاسو پدې ډول ووينم. اصلاً زه دغســې شــيانو سره مخالف يم. اخر موږ انسانان يو، منطق سره سروکار لرو. دا بيســواده خلک دي. ما زياتره مارکسيســتې اثار لوستي دي! پوهيږم تاسو منطقي خلک ياست. زموږ

او ستاسو تر منځ د عقیدې اختلاف وجود لري چې مهمه نده. په ټولې نړۍ کې ټول یوبل سره د عقیدې اختلاف لري.». د ځینو مزدورانو په وړاندې چې ما سره یې داشان نرمې خبرې کولې، خبرې نه کولې خو د هغوی دښمني توب مې په بشپړه توګه حس کاوه. ښه پوهیدم څوک چې همدا اوس ما سره په ادب او نرمي خبرې کوي په بل وخت کې یې بل ملګری ډیرې سپکې ستوغې خبرې کوي. جګړن فرید چې زما د تړلو لاسونو زغم نه درلود. د ملګرې رقیه دانشګري له ربړونکو څخه یو تن وه. دغه مؤدبه مزدوران چې زما د نیولو په لمړیو ورځو کې په اداره کې نه وه، یو کارپوه جاسوس سره د ملګري بهروز د نیولو لپاره تبریز ته تللي ول. هغوی د خپل سفر په اړه خبرې کولې. د بیلګې په توګه امیني چې د حوزې له تجربه کارو مزدورانو څخه یو تن وه، زما د ورور محمد او ملګري کاظم سعادتي (زما د خور میړه ) له نیولو څخه په مزه مزه خبرې کولې دا چې: «والله ما خو د کاظم په کار کې کار نه درلود چې خپل ځان یې پخپله وواژه.».

پدې وخت کې چې مزدورانو خپلې ټولې هڅې (لکه ربړونه او داسې نور) زما لپاره د خبرو کولو او د مالوماتو تر لاسه کولو په خاطر ماتې سره مخامخ او ناهیلي شوی ول، نور یې یوازې پدې بسنه کوله چې لږ تر لږه ما اړ باسي د ګرویږنې (تحقیق) د دوسیې جوړولو مرحله په تشریفاتي توګه بشپړه کړم. ځکه کله چې یو زنداني د تکلیف او محکومیت ټاکلو لپاره نظامي څارنوالي ته استوي باید د تحقیق یوه دوسیه هم ورسره واستوي. که څوک د تحقیق په نوم یوه پاڼه ونلري، محکمه ورله نه تشکیلوي. په هماغه ډول بلاتکلیفه پاتې کیږي. نور نو دښمن غوارې پدغه پړاو کې د زنداني لپاره دوسیه جوړه کړي تر څو یې نظامي څارنوالي ته واستوي، اصلي موخه یې د اطلاعاتو لاسته راوړل ندي، بلکه د یو تشریفاتي کار سرته رسول دي چې د دوی په اصطلاح قانوني دی. که څه هم پدغه پړاو کې سړی هوښیار ونه اوسي، شونې ده چې دښمن ته ګټور اطلاعات ورکړي. خو که هوښیارانه چلند وشي، کیدای شي دغه پړاو پرته له دې چې دښمن ته اطلاعات په لاس ورکړي له سره تیر کړي او د تحقیق پاڼه له ګونګو او ناسمو اطلاعاتو چې دښمن ته هیڅ شی په ډاګه نکړي ډکه کړي.

خو ما پدې اړه تجربه نه درلوده د دې لپاره چې محکمه جوړه شي او زما تکلیف روښانه شي باید د تحقیق دغه پړاو تیر کړم، بیا مې هم له هغوي سره له خبرو کولو ډډه کوله. حتی د نوم اخیستل چې هغوی ته یې هیڅ ګټه نه درلوده هم ډډه کوله. ویره مې پدې کې وه نه چې د همدې پوښتنو او ځوابونو او تحقیق په منځ کې ګټور اطلاعات چې د خوځښت په تاوان وي د دښمن په لاس ورنکړم. او دا هغه انګیزه وه چې زه یې پوښتنو ته له ځواب ورکولو منع کولم. هغوی چې مجبور وه زما دوسیه بشپړه کړي او څارنوالي ته یې ولیږدوي، له هرې چارې یې کار اخیست (په ربړونې، ویرول، ملایمت) تر

څو ما اړیاسي تحقیق وکړم او دغه پړاو له سره تیر کړم.

په همدې خاطر بیا هم یوه ورځ فرید د یو کس په عنوان چې اصلاً ربړونې، نیولو او دا ډول نورو جریاناتو ســره کار نلري، یوازې قانونې دنده یې وه چې زما دوســیه جوړه کړي. هماغه ډول چې مې وویل نه پوهیدم په تحقیق کې د کومو مطالبو پوښــتنه کوي او د څه لپاره یې په کاروي. له هغه ځایه چې په اداراتو کې مې بوروکراسي او قانوني تشریفات لیدلي وه، باور مې کاوه چې د تحقیق دغه پړاو هــم د همدې تشــریفاتو یوه برخه ده. خو بیــا هم دغه موضوع راته دومره روښــانه نه وه او دغه ځل چــې فریــد د تحقیق لپاره زما خوا ته راغلی وه، پدې فکر شــوم د دې لپاره چې د تحقیق د دغه پړاو په ماهیت پوهه شــم او ښــه وپوهیږم، په تجربه کولو مې لاس پورې کړ حاضره شوم پوښتنو ته یې په هغــه انــداز چې زما په هکله اطلاع لري ځواب ورکړم او په هغه صورت کې که مقصد یې له ما څخه د اطلاعاتو لاس ته راوړل وي دوام ورنکړم. د منلو وړ ده چې د فرید احترام امیزه چلند نشــو کولی په ما اغېزه وکړي که چیري زما د تشخیص له مخې کار ناسم ښکاره شو نو خبرو ته دوام نه ورکوم.

په هر حال فرید خپلې پوښتنې پیل کړې چې کوم کتابونه مې لوستي دي. ما د څو کتابونو نومونه واخیستل وروسته له دوه درې پوښتنو چې درلودل یې جزییاتو ته ننوت له ځواب ورکولو مې ډډه وکړه. ځکه فکر مې کاوه که ځوابونه ورکړم ښایي ګټور اطلاعات تر لاسه کړي. نو ومې ویل: زه نور ځوابونه نه ورکوم. فرید هک پک شــو چې څه وشــول؟ اصلاً مهمه نده... خو ما بیا خپله خبره تکرار کړه، پداســې حال کې چې ډیر زیات عصباني شــوی وه بیا هم مجبور وه چې د خپل مؤدب نقش ساتلو په خاطر عصبانیت په ډاګه نکړي، پداسې حال کې چې وینې یې په جوش راغلې وې پورته شو او ولاړ.

بیــا ځلي نور کســان راغلل او اســتدلال یې کاوه چې باید تحقیق ورکــړم او دا کار اصلاً مهم نده. بالاخره ســبا شــپه خطایې راغی او ویې ویل: «دلته ستا د ترور کور ندی، سترګې او غوږونه د خلاص کړه! دلته څوک نشــته چې ســتا ناز او نخرې ومني، ته باید تحقیق ورکړې!» ما وویل: ته غواړې له ما څخه خبرې واخلې. زه به تحقیق ورنکړم. هغه وخت یې زه په ســاواک کې په ربړونې تهدید کړلم. کله یې چې د ربړونې خبرې کولې هیڅ ډول ویره مې نه احساس کوله. اصلاً ربړونه راته مهم نه وه، ویره مې یوازې له دې وه چې مبادا پدې تحقیق کې دښــمن ته اطلاعات ورنکړم. پدې خاطر مې نه غوښتل چې تحقیق ورکړم.

دریمــه ورځ یو مزدور مســتقیماً وپوښــتل چې ځواب ورکولــو ته حاضره یې او کــه نه؟ ویل یې: «خطایې ویلي د وروستي وار لپاره ورڅخه پوښتنه وکړه که ځواب منفي وه ساواک ته یې لیږدوم». بیا یې ویل: «د خطایې زړه هم ستا په حال سوزي که هلته لاړه شې نو روغه رمټه به رانشې او نه غواړي

ســاواكيانو ته وواييې چې مورږ ونشــو كړای هغه تحقيق او ګروېږنو ته اړ باسو. همدا وجه ده چې هغه (خطايي) تر اوسه زړه نا زړه پاتې دی. اوس نو ستا ځواب وضعيت روښانه كوي». دهغه له دې خبرو څخه ښه ښكاريده چې څومره غټ تضاد او سيالي د ساواک او د حوزې مزدوران تر منځ شتون لري. جريان پدې ډول وه: د وســله والې مبارزې له هماغه پيل څخه چې د ايران د خلكو ضد رژيم خپلې ګټې او د خپلو امپرياليســتې بادارانو ګټې په جدي توګه په خطر كې وليدې او په ايران كې د انقلاب بنستيز كيدو په ويره كې اچولي وه او پوهيدل كه انقلاب پراختيا وموميي نور به هغوی په هيڅ وسيله ونشــي كولی هغه وټكوي. ټول امكانات يې په كار اچولي وه او كوښــښ يې كاوه په هره وســيله چې كيدای شــي د انقلاب د پرمختک مخه ونيســي. پدې لار كې د دغه غورځنګ په ضد يې د خلكو له ډارولو نيولو تر پراخو غولونكو تبليغاتو په ځانګړې توګه د ساواک او دحوزې د جنايتكارو مامورينو بسيج كول د انقلابي ځواک له منځه وړلو په موخه لاس پورې كړ.

«روپۍ» او «مقام» د هغوي دوه مهمې وســيلې وې چې د هغو په وسيله يې ځان پلورلي جنايتكاره ساواكي او د حوزې مزدوران د انقلابي ځوانانو په نيولو او ربړولو ته هڅول او هغوی هم د مقام ګټلو او د لا زياتو پيسو لاسته راوړلو په خاطر په جنايت كولو او ځناورتوب كې يوبل سره سيالي كوله. خو د همدې سيالي په خاطر د ساواكي او د حوزوي د مزدورانو تر منځ كلک تضاد منځته راغی چې رژيم ته يې زيات تاوانونه واړول. له هغې ټولګې كولی شو د ملګري مجيد احمد زاده د نيولو په وخت كې د ساواک اوحوزې مزدورانو تر منځ وسله واله نښته په ګوته كړو او يا د ملګري مسعود احمد زاده په اړه يادونه وكړو: پداسې حال كې چې حوزې هغه ډيره موده مخكې نيولی وه، خو ساواک پرته له دې چې موضوع څخه خبر شــي د هغه د نيولو په خاطر پراخې هلې ځلې په لار اچولې وې او دهغه خور يې تر فشار لاندې نيوله چې ښايې له هغې څخه د ملګري په اړه مالومات تر لاسه كړي.

د غورځنــګ پراخيدل او په مختلفو عملياتو كې د انقلابيونو بريا د رژيم د بيحده وحشــت لامل وګرځيده.مزدورانــو د ټولــو ځواكونو پــه ځانګړې توګه د ســاواک او د حوزې د يــو موټي كيدو په لزوميــت اګاهــي وموندله. تر هغه ځايه چې خپل عمليات همغږي كــړي او د خپلو انقلابي ضد او خلقي ضد موخو ته د رســيدو لپاره په ګډه كوښــښ وكړي. د دغه همغږيتوب اړتيا په ځانګړې توګه د «خلازير» تر جريان وروســته هغه وخت چې دوه ملګري د ســاواک تر ډزو او نښــتو وروســته په تيښــته بريالي شول او دښمن يې په نيولو كې ناكام كړ، دغې پيښې هغوی د انقلابيونو د قاطعيت او شجاعت په وړاندې په خپلې بې وسۍ اعتراف كولو ته اړ ويستل.

د خلازير نښــتې په بهير كې ســره له دې چې ســاواک خپل ټول ځواک په يادې شوې سيمه كې

خپور کړی وه، د حوزې او ژاندرما له ځواک څخه هم مرسته غوښتې وه خو د هغوی تر منځ د تضاد د شــتون له کبله چې واحد عمل وکړي د دښــمن په ګټه ډېر کوچنی کار هم سرته ونه رسیده. که څه هم پدې اړه د ملګرو قاطعیت او د عمل چټکوالی د دښمن د ناکامي او د هغوی د بریالیتوب اصلي لامل وه.

په هر حال همدا اوس د انقلاب ضد ځواکونه د حوزې، ســاواک، ژندارما او نور څارونکي متحداً د (تحقیــق او خرابکاري ضد کمیټې تر عنوان لاندې) په خپلو جنایتونو بوخت دي. زما د ګروېږنې او تحقیق په هکله هم همدغه تضاد وه چې هڅه یې کوله د ټولو حربو نه په ګټې اخیستو سره که څه هم یوه تشریفاتي ګرویږنه وه، خپل قدرت یو د بل مخې ته کیږدي.

وخت تیر شــو خو ســاواک ته د ټللو خبره پاتې شوه. ښـځکیو تل ټینګار کاوه او د دلایلو له مخې یــې هڅــه کوله ما قانع کړي چې تحقیق ورکړم. خو ما چې بیا هم ځان د ګرویږنې ورکولو لپاره چمتو نه لیده، تحقیق کوونکو سره مې له خبرو کولو ډډه کوله.

# ملګري حميد توکلي سره کتنه

يــوه شــپه، خطايي يو څــوک راوليږه چې ما د هغه کوټې ته يوسـي. په کوټه کــې دوه غټ ميزونه ايښــودي ول چې خطايې، مخفي او فروغي هلته ناســت وو. يخچال يې د ميز تر څنګ ځای درلود او د کوټــې پــه مخ فرش غوړيدلــی وه. د ديوال په مخ د ملګرو ۹ انځورونه (هغه کســان چې د نيولو په خاطر يې ډالي ټاکل شــوې وې) ځړولي ول. خطايې تعارف وکړ چې کښــينم. بيا يې په خبرو پيل وکــړ چې: «ګوره دغه فرش پيژنې؟ ښــه ورله ګوره. په يــاد د ده کوم ځای کې مو اوار کړی وه؟» په نيشداره خندا يې وويل: «هغه کور چې په پلاني ځای کې مو درلود او دا هم د شهين توکلي[۶] يخچال دی. واقعــاً جهيــز يې د امن کور لپاره اخيســتی وه؟» د امن په کلمه يې ډيــره تکيه کوله. خبرې يې زما نظر ته چټې ملنډې او ماشــومانه راتللې. اصلاً په منظور يې نه پوهيدم ياني څه؟ ايا غوښــتل يې په خپلې لوټمارۍ او غلا اعتراف کوي تر څو د ښځې جهيز تر دغه دروغجن عنوان لاندې چې ګويا د ســازمان په پيســو پيرودل شوی غصب کړی؟ د دې مسخره اعتراف په وړاندې مې چې د بې تفاوتې حالت درلود، وويل څه؟!

له هغه وخت څخه چې کوټې ته ننوتې وم يوه شيبه مې هم سترګې ديوال څخه نه اړولې. له ډيرې مودې راهيســې چې د مزدورانو کرغيړنې څيرې ليدلې وې، د دغو څيرو تر شا ډيرو سپکو او چټلو موجوداتو ځای درلود، د ملګرو څيرو ته په کتلو سره مې کولی شول ستر انقلابي شخصيتونه د هغوی په څيرو کې ووينم، چې ما ته خوشــحالي بخښــونکي وه. ملګري مې په خپلو ځيرکو کتو کې دښمن ســره زما د چلند په هکله پريشــانه وه. ملګري سلاحي غوښــتل چې زما ټول وجود د غوسه او کرکه وي او ملګري پويان راته ښــوول چې په ملنډو او ســپکاوي هغوی سره مخامخ شم او لاس ورواچوم. خطايې چې زما د ننداری شــاهد وه، په مســخره ډوله خندا يې انځورونو ته اشاره وکړه او ويې پوښتل: کوم يو پيژنې؟ بيا يې د ملګري حميد توکلي[۷] انځور له جعبې څخه راواخيســت او زما مخې ته يې کيښود چې پيژنم يې او که نه؟ (ملګری حميد له هغو ملګرو څخه وه چې ما په بيرون کې هغه سره

اړیکه درلوده) ومې ویل: نه! وروسته یې البوم راته ښکاره کړ چې په هغه کې یې د ملګري حمید انځور په مختلفو حالتونو کې ښکاره کاوه. وویل: «ښه ورته وګوره په لمړي ځل د کوم ځای کې لیدلی دی؟» ما پرته له دې چې ځواب ورکړم یا د ځواب ورکولو په فکر کې شم، د البوم پاڼې مې اړولې وایې به میلمستیا ته راغلې یم او د سرګرمي لپاره د البوم تماشا کوم. د جګړن مخفي حوصله تنګه شوه البوم یې را څخه واخیست او ویې ویل: «حمید پخپله وایې چه ته یې لمړی ځل....» خطایې یې خبره پریکړه: «پریږده چې خپله یې ووایې!» د ملنډو خندا مې په شونډو کې وه! نه مې د هغوی خبرو ته اهمیت ورکاوه او نه مې اصولاً احساس کاوه چې زه زنداني یم او د دښمن په لاس کې بندي یم! ځان مې د انځورونو په تماشا او د میز په سر شیانو سره په لاس وهلو، هغې خوا او دې خوا ته په کتلو مشغول کاوه. د هغوی ټول کارونه را ته ملنډې ښکاریدې. خطایې بیا ځلي تکرار کړه: «دغه انځورونه پیژنې؟» ومې ویل: نه!. مخفي وویل: «که اوس خپله حمید راشي او ووایې چې تا پیژني، څه وایې؟» ومې ویل: کله چې هغه ما نه پیژني، ولې به داسې خبره وکړي؟ او خطایې چې غوښتل ووایې ډیره نکته سنجه ده وویل: «نو ته غواړې چې ووایې حمید دروغ وایې؟ که ووایې هو، نو اقرار کوې چې ستا ملګري دروغجن دي او که وایې نه، نو ته هغه پیژنې.» ومې ویل: نه، زما ملګري دروغجن ندي خو که حمید دا ډول دروغ ووایې حتماً د سازمان د مصالحو لپاره دي. مخفي وویل: «که هغه پخپله راشي او ووایې چې تا پیژني نور نو ته نه وایې چې هغه دروغ وایې؟» ومې ویل: نه! که هغه تشخیص کړي وي چې باید دا شان خبرې وکړي زه هم د هغه خبرې تاییدوم. وروسته تر ډیرو خبراترو ښکاره وه چې هغوی زما او د ملګري حمید پیژندګلوئ څخه مالومات لري ښایې مهمه به نوي چې ملګري دغه خبره کړیده. کله چې زه پوهه شوم که دا موضوع وویل شي د ملګري له نظره کوم مشکل نلري، ما هم وکولی شول چې ووایم هغه پیژنم. خو فکر مې وکړ دا یو فرصت دی چې ملګری ووینم. پریږده چې کارونه په ساډګي او بې زحمته سرته ونه رسیږي او هغوی نور هم ستړي شي. ساعت شاؤ خوا د نیمې شپې دویمه برخه وه. ملګری یې له خوب څخه ویښ کړی او اتکړی په لاسونو یې زما کوټې ته راووسته. زه له ځایه پورته شوم او ملګري ته ول مې سلام ووایه. زړه مې غوښتل د مزدورانو په مخ کې خپل محبت ملګري ته پداسې شان ونښایم چې هغوی پوه شي د خپل ملګري په لیدلو څومره د خوشحالي احساس کوم. خطایې ته مې وکتل او بیا په څوکی کښیناستم. غوښتل مې چې هغه زما دغه حرکت ویني او د ځان په اندول زما تحقیر امیزه چلند له هغه سره پرتله کړي.

عطایې وویل: «سرونه مو کښته واچوئ یوبل ته مه ګورئ!» څه د زور خبره!» ما او زما ملګري

تــه په هغه شــرایطو کې چې قرار درلــود، یانې د مزدورانو په مخ کې، د خبرو شــونتیا وجود نه درلود، څرنګه مو کولی شــول چې لږ تر لږه په کتلو یوبل ســره خبرې ونکړو؟ سربېره پر دې، دا دښمن وه چې حکم یې کاوه او موږ نشو کولی چې امر یې ومنو. خطابې ملګري ته وویل چې ایا هغه پیژنې که نه؟ له هغه ځایه چې په مخکنیو ګرویږنو کې ملګري حمید خپله اشــنایي ما ســره څرګنده کړې وه (دې خبرې یوه کوچنۍ اطلاع د دښــمن لاس ته نه ورکوله او هیڅ اهمیت یې هم نه درلود چې پرې پوه شي) او اوس یې هیڅ لزومیت نه درلود چې له دې اشنایي څخه انکار وکړي، ویې ویل پیژنم یې. خطابې ما ته مخ کړ او ویې ویل وادیوریدل؟ ښه مې وکړای شول چې لاس ور واچوم. تر عجیبه هلو ځلو وروســته یې یو مهم شــي کشف کړی وه! غوښــتل مې چې تر دې زیات لاس ور واچوم او ومې ویل: نه! زه په ســوچ وهلو کې وم، غوږ مې نیولی نه وه. ملګري ته یې وویل چې خبرې تکرار کړي او ملګري بیا ځلي تکرار کړه.

مخفي په ډېر حرص ســره وویل: «وا دیوریدل؟!» په ســږه سینه مې ځواب ورکړ: والله چې وامی وریدل خو ښــه پوه نشــوم چې څه وایي. که یو ځل یې بیا تکرار کړي ښه به وي او ملګري ته مې مخ کړ چې تا لمړی ځل دغه جنۍ چیرې لیدلې وه؟ خطابې پرې نښــود چې ځواب ووایې او ســاتونکو ته یې وویل چې هغه یوســي. بیا یې له ما څخه وپوښــتل: «ښه بیا هم انکار کوې چې هغه نه پیژنې.» ومې ویل: پیژنم یې خو په یاد مې ندي له کوم ځایه! د خیابانونو په نوم اخیســتلو یې پیل وکړ: «پلانی ځای نه وه چې هغه د ولید؟» ما هم ګډوډ ځوابونه ورکول. کله چې هغوی ټینګار وکړ با لاخره ووایم پــه کــوم ځای کې مې ولید ومې ویل: پوهیږئ هیڅ مهمه نده چې زه ووایم په کوم ځای کې مې ولید. خو تحقیق یوازې د خط لیکنه نده، زه غوارم ستاسو پوښتنو ته ځواب درکړم.

غوښتل یې زما خبرې بې اهمیته وښایي. لږ شیبه یې ځان سره خبرې وکړی. بیا مخفي په معمولي حالت خبرې پیل کړې، ګنې چې د پوښتنو کولو قصد نلري وویل: «شهین د بیرون لیدلې وه؟» چُپ ناسته وم. پوه شول چې نورې خبرې نکوم. ساتونکي ته یې غږ کړ چې خپلې کوټې ته مې یوسي.

# مزدوران د بېوسۍ په لوړه څوکه کې

د شـپې بیده شوم. سهار مې ښـځکۍ ولیدې چې خپل اسبابونه او شیان ټولوي. دا چې هغوی هر وخت زما له لاسه عصباني کېدلې او نه پوهیدلې چې څه وکړي، خطايې ته يې ويل: «مورې بدلې کړه، نور دوه کســان د هغې د څارنې لپاره وټاکه» فکر مې وکړ چې غوښــتنه يې منل شــويده. پوښتنه مې وکړه: غواړي چې دوه نور کســان راولي؟ او هغوی پداســې حال کې چې ځانونه يې ناراحته ښوول په دوســتانه او ګیله منه توګه وويل: «آخر نه پوهيږو چې ســتا په سر کې يې څه تخته کړي، جنۍ لږ څه عاقلانــه فکــر وکړه پرون شــپه دې د تحقیق په کوټه کې څه ملنډې په لار واچولې؟ ماشــومه خو نه يې په متانت منطقي خبرې وکړه. ته اصلاً سیاســت سره بلدتیا نلرې» او هغه بلې په ورو اواز وويلې: «ځه لاړه شــه خپل دروغونه جوړ کړه، ووايه چې ونه وايې تحقيق نه ورکوي. ښايې اصلا هم پوه نشي چې خبرې د دروغ دي. اخر مورې څه وکړو؟ نصيحت خو نه مني خپله هم دومره ســاده ياســت چې فکر د مغزو ته نه رســيږي. مورې ته يې وويل چې نور لازمه نده دلته پاتې شــو، پټيل شويده نن ساواک ته وليږدول شې» يو له ساتونکو څخه کوټې ته ننوت. غمجنه څيره يې ځانته نيولې په سترګو کې يې ماته کتل په پچ پچ يې يوې ښځکۍ ته څه وويل او ښځکۍ هم په ټيټ آواز وويل: «تا ته يې هم ويلي؟ له کوم ځايه د اوريدلي؟» ټولو چې زړه ســواندې او غمجنې څيرې ځانته نيولې وې په کوټه کې يوې خوا بلې خوا ته تلل. داســې يې ښــووله چې وی به يوه وحشتناکه او له تصور نه وتلې پيښه د جوړېښت په حال ده. ساتونکې ښځکۍ، دغه زما ډېره شريفه ملګرې! او زړه سواندې مور! وويل: «زه نن سهار ولاړم ډيــره هڅــه مې وکړه. هغوی ته مې وويل: هغه وار چې جنۍ مو مړه تحويل کړه، که زه هغې ته رسيدلې نه وای، شونې نه وه چې ژوندۍ پاتې شوې وای. نور يې دا ځل نه قبولوم او ډاډه اوسئ ستاسې هيڅ مامور نشي کولی زما په شان کار وکړي.» په خندا مې وويل: له کوم ځايه مالومه ده چې ژوندۍ بيرته راوګرځم، تر څو لازمه شــي يو کس له ما څارنه وکړي! وويل: «ته خيال کوې چې زه شــوخي کوم؟ خطايې زما په مخ کې ســاواک ته تليفون کاوه.» څه مې ونه ويل. هغوی کوښښ کاوه نصيحت

راته وکړي. ومې ویل: څله ځانونه ستړي کوئ؟ ستاسې ټولې خبرې مې اوریدلې دي.

دوه درې ورځې تیرې شوې ساواک ته د تللو د خبرې پته ونه لګیده. وروسته تر هغې شپې بیا هم مــا تــر یوې مودې د ګروېږنې په دغه پړاو کې د ځواب ورکولو فکر وکړ. د دې لپاره چې وکولی شــم نتیجه تر لاســه کړم، ومې ویل: چې څو پاڼې کاغذ ما ته راکړئ. خطایې فکر کاوه چې غواړم طرحه شــوو پوښــتنو ته یې ځواب ورکوم، څو پاڼې کاغذ چې مُهر پرې ټاپه شــوی وه راوړ او ټینګار یې وکړ چې نه باید هغه څېرې کړم او باید په همدې ډول یې بیرته ورکړم. ما په واقع کې کاغذونه د دې لپاره غوښــتي نوه چې د هغه پوښــتنو ته ځواب ورکړم بلکه غوښــتل مې چې د کاغذ په مخ خپلو افکاروته نظــم ورکــړم او نتیجه ګیري وکړم. ما په بیروني ژوند هم دغه کار ســره عادت درلود. خپل افکار مې همیشــه لیکل او د لیکلو په څنګ کې نتیجې ته رســیدم. غوښتل مې پدې ځای کې هم همدغه کار وکړم. منتها داسې مې لیکل چې یوازې زه پرې پوهیدم منظور مې څه دی. لیکنو یوه نیمه ورځ وخت واخیســت. خو تر اوســه مې د افکارو جمعبندي بشپړه او ما ته د منلو وړ نه وه. تر ټولو مهمه مسئله دا وه: داسې ونشي چې هغوی زما له خبرو ګټه پورته کړي. ما نشو کولی د هغوی له دې ډیر ټینګار څخه ارزیابي وکړم. دلیل یې هم دا وه چې تر اوســه مشــخص شوې نه وه چې زما په هکله د دښمن د مالوماتو کچه څومره ده. په هر صورت خطایې کاغذونو پسې یو کس را ولیږه ما پرته له دې چې هغه ته توجه وکړم هغه مې ټول څیرې کړل. بالاخره د شپې یې د تحقیق کوټې ته بوتلم. بیا هم له هماغه پیل څخه په دیوال باندې د انځورونو په ننداره شوم. نور انځورونه یې هم ځړولي وه. خطایې د شوخي پــه ډول خبرې کولی! بیا هم د انځورونو تماشــا کوی. ګورئ چې د انځورونو په شــمیر کې زیاتوالی راغلی. دا چې زما سترګې نزدې لیدونکې وې، کولی مې نشول چې انځورونه په ښه توګه ووینم.ومې ویل زما اینکې راکړئ. ولاړه شوم انځورونو ته نزدې ودریدم. خطایې مانع نشو او پخپله یې د ملګرو نومونه یویو ما ته وویل. په هر صورت د تحقیق پاڼې یې راوړې. ویې ویل: «پخپله یې لیکې که زه یې ولیکم؟» لږ سوچ مې وکړ؛ ځان سره مې وویل یو ځل بیا ازمېښت وکړم چې د دوی پوښتنې په کومو برخو کې دي او زما په هکله تر کومې کچې اطلاعات لري؟ ما وویل ته یې ولیکه.

پوښتنه: نوم، مستعار نوم، شهرت....

ـــ څرنګه سیاســي مســایلو سره اشنا شوی؟ په فکر کې ډوبه شــوم، څه ځواب باید ورکړم. پدې ځای کې دغه مســئله راته مطرح شــوه دا چې پاڼه د لیک په بڼه ده، محکمې ته استول کیږي، ګټه ترې اخیســتل کیږي نه ښایي سیاســي مسایلو سره ځان ډیر ښکیل ښــکاره کړم. فکر مې کاوه باید ځان ترهغې کچې ډیر ناپوهه وښــایم چې پوهیږم. ومې ویل: راکړه خپله یې ولیکم. قلم مې لاس کې

واخیســت خو بیا هم په فکر کې ډوبه شــوم. یوه کلمه مې ولیکله، وروسته مې قلم وځنډه، بیا مې یوه جمله، بیا مې قلم وځنډه، بیا ځلې فکر، دې کار ته مې ډیر ټال ورکړ، د خطایې حوصله پای ته ورسیده او یــو څــه مالومات یې چې زما په هکله درلودل بیان کړل: «ښــه لمړی ځــل بهروز وه چې تا ته یې کتابونه درکړل. وروســته جواد ســلاحي سره په اړیکه کې وې. ښه اوس خپله ووایه د وړې میاشت وه چې تبریز څخه تهران ته راغلی که د تلې میاشــت؟» او بیا یې په خبرو ورزیاته کړه، ودې لیدل چې موږ ستا له ټولو کارونو څخه خبر لرو. نو اوس واخله پاتې یې پخپله ولیکه. ومې ویل: که ته وایې چې له ټولو شــیانو خبر لری! نو زه څه ولیکم!؟ اصلاً دا مهمه نده ته پوهیږې چې زه د تلې میاشــت کې تهران ته راغلې یم که د وړې میاشت کې!؟» خطایې وویل: «نه موږ غواړو دا شیان په خپله ته ولیکې او بیایې نورې پوښتنې مطرح کړې: «د هغه کور پته چې تا او جواد په کې ژوند کاوه څه وه؟ څه موده مو هلته ژوند کړی؟ په هغه کور کې چې مخامخ یې مدرســه وه او یو کس په پورتنې پوړ کې اوســیده څو میاشتې پاتې شوئ؟ ښه یو ستاسو بازار په ننبه کړ او ستاسو بل... ته یې خپله ووایه.»

ســربیره پر دې چې له دغه پوښــتنو څخه مې مطالب تر لاســه کیدل، د دې لپاره چې د هغوی د پوهــاوی کچه د خپلو اطلاعاتو په هکله بشــپړه کړم، د هرې پوښــتنې د مطــرح کولو په اړه ما هم د اعتراض په توګه له هغوی څخه پوښتنې کولې. د بیلګې په توګه پوښتنه مې وکړه د کوم کور په مخ کې یوه مدرســه وه؟ خطایې ځواب راکوه هغه کور چې درې خونې یې درلودې، یا مې پوښــتنه کوله څوک همیشــه په دویم پوړ کې اوســیده منظور د کوم کور دی؟ هغه ځوابونه راکول هغه کور چې د سعادت شرکت څخه مو اخیستې وه. یو چاق او په اصطلاح هوښیار سړی په دویم پوړ کې وه.*

په همدې ډول مې پوښــتنې کولې چې یو وار تازه متوجه شــوی وه چې نباید دغه پوښتنو ته ځواب ورکــړې، لــه بتې راووت په چیغه یــې وویل: «زه له تا څخــه تحقیق کوم که ته له مــا څخه؟» د دغه اطلاعاتو پوهیدل زما لپاره ډیر ګټور وه. ځکه کولی مې شــول له هغوی څخه په جمعبندي کې ګټه واخلم. د خطایې وروستیو پوښتنو اطلاعاتي اړخ درلود او زه له هغو څخه ډیره وځوریدم ټول وجود مې په یو وار له کرکې ډک شــو. دغه جنایتکاران، دغه د خلکو دښــمنان، دغه د رژیم د قوانینو او اوامرو اجــرا کوونکــي، چې د خلکو د ټولو کړاونو عاملین دي، ما څخه تمه درلوده دغه پوښــتنو ته ځوابونه

---

* منظور ملګری فرهودي وه، څرنګه چې په لمړي ځل د بانک د مصادرې د عمل په جریان کې د هغه انځور د دښــمن لاس ته لویدلی وه هغه کور کې یې په مخفی توګه ژوند کاوه او لازمه نه وه چې موږ یوبل سره ووینو، هغه همیشه د کور په دویم پوړ کې اوسیده.

ووایم چې هغوی ورڅخه د وسـلهوال غورځنګ په ضد ګټه واخلي د کومې موخې لپاره چې زه تیاره یم په لار کې یې سل ځله ساه ورکوم؟ شاباس پدې خیال بافي، شاباس پدې سپین سترګتوب. په غوسه مې قلم پر مځکه کیښـود او په چیغو مې وویل زه نور نه لیکم. پوښـتنه یې وکړه ولې؟ ومې ویل: نه غواړم ولیکم. نه غواړم دغه پوښتنو ته ځواب ووایم. ډیرې خبرې یې وکړې خو زه چُپ وم او په کرکې مې سترګې د هغوی په مخ نښلولې وې. هغوی څه ونه ویل، زه یې بیرته کوټې ته بوتلم.

سـبا شـپه یو کس راغی زه یې بیا د تحقیق کوټې ته بوتلم. ما وویل: زه نه غواړم چې خبرې وکړم. ستاسـو دغه پوښـتنو ته یوه کلمه هم ځواب نه وایم. دا هم زما لپاره مهمه نده چې هرو مرو د تحقیق خونـې ته درشـم. د تحقیق خونې ته ولاړم. په کوټه کې مې هـم خطایې ته هماغه خبرې وکړې. هغه خبرې کولې او استدلال یې کاوه چې: «ځواب ورکول ستا په ګټه دی او.... پدغه وخت کې د تیلفون زنګ راغی. غوږی یې پورته کړ وروسـته یې د څو خبرو اترو په پای کې وویل: «مشـغول یم، اوس لیلا خانم (د لیلا خانم کلمه یې په ټوکماري لحن وویل) سـره خبرې کوم... نه بابا اړینه نده. همدلته خبرې کوي. اوس لږ صبر وکړئ... نه هرومرو...!».

که څه هم هڅه یې کړې وه د تیلفون شـاته ډیر طبعي وغږیږي خو ما احساس کړه چې دا صحنه سـازي ده. ښـایې هم نه وه. په هر حال ما ته یې اهمیت نه درلود. ما ته یې مخه کړه او ویې ویل: «له هغو څخه مې څو ورځې وخت واخیست. ساواکیانو تیلفون کړی وه. ته زموږ پوښتنو ته ځواب وایې که نه؟» ومې ویل: ګوره تاسـې چې هر ډول چلند ما سـره وکړئ تاوتریخوالي وي یا درناوی خو په هر حال همیشـه وینې زه حاضره نه یم تا سـو سره یوه کوچنی مرسـته هم وکړم. زه نه غواړم ستاسو پوښـتنو ته ځواب ورکړم. هغه په داسـې حالت کې چې بې وسي یې په ډاګه ښکاریده او پوهیده چې نـور د خبـرو ځای پاتې ندی، باید پریکړه وکړي ویې ویـل: «زه څه کار وکړم چې ته خبرې وکړې؟ څه کار درسره وکړو چې زموږ پوښتنو ته ځواب راکړې؟» خندا نیولې وم. هیڅ فکر مې نه کاوه چې هغوی د دغه راز پوښـتنې ما څخه وکړي. په خندا مې وویل: زه څه پوهیږم؟ هیڅ شـی راته په یاد نه راځي! نور یې خبره ونکړه.

# ملګري علی رضا نابدل سره کتنه

څو ورځې کيدې چې په کوټه کې ښـځکيو سـره زما دعوا ترينګلې شوې وه. هيڅ چا سره مې يوه کلمه خبره هم نکوله. څه موده مخکې ښځکی زما لاسونه په ساعتونو خلاص پريښودل. خو په دغه ورځو کې پرته د ساعت له څلورمې برخې هغه هم د ډوډۍ خوړلو په وخت کې، د ورځې په پاتې نورو ساعتونو کې يې په ډيره غوسه تخت سره تړلم.

ښــه مې په ياد ندي د وروســتني تحقيق دريمه يا څلورمه ورځ وه چې نيمه شــپه يې له خوب څخه ويښه کړم او په لاسونو يې را اتکړۍ واچولې د تحقيق کوټې ته يې بوتلم. دا چې ناڅاپه له خوب ويښه شــوم د ګنســتوب حالت مې درلود. د تحقيق په کوټه کې مې ملګری نابدل وليد چې په څوکۍ ناست وه. ملګری ډير ډنګر او توړل شــوی وه، ســترګې يې ژوري پريوتې وې، ښی لاس يې چې په زنګون ايښــی وه غير عادي تر ســترګو کيده (وروســته وپوهيدم کله چې ملګري د حوزې روغتون له دريم پوړ څخه ځان ځمکې ته اچولی وه د لاس هډوکی يې مات شــوی وه، وروســته تر درملنې ښــی لاس يې ۵ ســانتي له کيڼ لاس څخه لنډ شــوی وه.). کله چې زه ملګري وليدم ســترګې يې خوشالي څخه وځليدلې. دا چې مزدورانو داســې کوټې ته راوستې وم په کومې کې چې ملګری ناست وه تعجب مې وکړ. هڅه مې وکړه چې پوهه شم منظور يې څه دی او څه غواړې چې سرته يې ورسوي. يوه څوکۍ يې دملکري نابدل مخې ته ايښــې او زه هلته کښيناستم. خطايې پوښتنه وکړه: «تا د سياهکل د اعلاميې په تدوين او تيارولو کې څه نقش درلود؟» ما څه ونه ويل: زما پام يوازې ملګري نابدل ته وه. هغه هم هماغه وخت څخه چې کوټې ته ننوتې وم په ډير ځير او تيزي سره ما ته کتل. خطايې پرته له دې چې ځواب ته منتظر پاتې شي ښکاره وه چې د بلې موخې په لټه کې دی بيايې پوښتنه وکړه: «چا اعلاميه وليکله، چا ټايپ کړه؟» بيا مې څه ونه ويل. چوپه شوې وم او چوپتيا مې دومره درنه وه چې په هيڅ ډول له هغه څخه ځان بايلل او ماته خوړل تعبير کيدای نشي. وروسته تر هغه خطايې ملګري ته مخ واړوه او همدغه پوښــتنې يې له هغه څخه وکړې. د ملګري څېرې څخه په ډاګه ښــکاريده چې هغه

په خپل ذهن کې د دښمن د دغه پوښتنو موخه بررسي کوي. لمرې يې څو شيبې څه ونه ويل. بيا يې هغـه ځوابونـه چې پدې اړه يې مخکې په تحقيق کې ورکړي وه بيان کړل. وروســته تر هغې يې بيا ما سره خبرې ونکړې. ساتونکو ته يې وويل: «اوس يې بوځئ....».

کوټې ته ستنه شوم او په ساعتونو، ساعتونو مې د دښمن د دې کار په اړه فکر وکړ. د کار په مانا يې پوهه نشوم. لمړی مې د ملګري نابدل خبرې له نظره تيرې کړې. آيا دښمن کولی شي له دغه خبرو څخـه ګټه پورته کړي؟ خبرې مې دوه، درې وارې ځان ســره تکــرار کړې ومې ليدل چې د ملګري خبرې په هيڅ ډول دښمن سره مرسته نکوي.

بيا نو دښــمن د دغی صحنې جوړولو څخه څه موخه درلوده؟ په هغه وخت کې ما د دغو پوښــتنو ځوابونه پيدا نکړل، يوازې همدا اوس متوجه کيږم چې دښــمن زما په وړاندې ملګري نابدل څخه د دغو ســوالونو له پوښــتلو څخه څه موخه درلوده. داسې پوښتنې پوهيدل چې ځواب يې هماغه ځواب دی کــوم چــې مخکې يې ورکړي وه او اوس يې يوازې تکراروي. د دښــمن موخه د دې ډول صحنې جوړولو څخه دا وه چې وښــايې ګويا نابدل موږ ســره په ارامه خبرې کوي او ارام حالت لري تر څو پدې ډول زما روحيه کمزورې کړي او زما غوســهناک درېز له منځه يوسي. واقعاً هم وروسته تر هغه چې ملګري د اعلاميو په هکله ځواب ورکړ، ما څخه يې يوه کلمه بله پوښتنه ونکړه؟ اوس چې هغه صحنه سترګو ته مجسم کوم، وينم ټول شيان د يو ځانګړي غرض لپاره اوډل شوي وه: کوټې ته تلل، مخامخ ملګري نابدل سره په څوکۍ کښناستل، د بابيزه پوښتنو او ځوابونو مطرح کول او نور هيڅ.... هوکې دا د دښمن يوه چلوټه وه چې يوازې د انقلابي ملګري نابدل د کړو وړو په نظر کې نيولو څخه کيدای شول وپوهيږو. هغه ملګری چې ريښتونی انقلابي وه او د وياړ څخه ډک د شهادت تر شيبې يې هيڅکله لاس له مبارزې وانه خيست.

تــر هغــه ځايه چې ما د دا ډول صحنو آغيزه او همدا رنګه د روحي ربړونو پايله د تجربې له مخې تر لاســه کړې، کولی شــم ووايم چې په واقعيت کې جسمي ربړونه پرته د دغه ډول صحنو له اغيزې په ټوليزه توګه نشــي کولی اغيزناکې واقع شي. چټې نده چې دښمن هڅه کوي له هرې چارې کسان له مبارزې څخه ناهيلي کړي او د ملګرو په منځ کې بی باوري جوړه کړي. د يو کس د تســليميدو يا ناهيلــه کيــدو، ليدل يا اوريدل په بل کس باندې که څــه هم د هغه په لامل پوهيږي خپله ناوړه اغيزه پــه ځــای پريږدي او د دې برعکس په نــورو مبارزينو کې د مقاومت پالنې روحيــه، ټينګار او ثبات ليدل په فرد کې شــور او شــوق هڅوي او هغه د دښمن د ربړونو او چلوټو په وړاندې پياوړی کوي له همدې لارې ده چې د خپلې روحيې ســاتل، د کارونو ســرته رسول او دا رنګه خبرې کول چې وکړې

شــي د دښــمن په وړاندې د نورو ملګرو د روحيې د پياوړي کيدو لامل وګرځي، تر نيولو وروسته دا د هر انقلابي ملګري مهمه دنده ده. دښــمن په مختلفو وســايلو او لارو هڅه کوي چې همدغه روحيه په مبارزينو کې له منځه يوســي د دښــمن د هڅو خنثی کولو يوه مهمه لار دا ده، چې هيڅکله اجازه ورنکړو محبت اميزه چلند ولري. بايد هميشه خپل کړه وړه داسې تنظيم کړو چې په ټوله کې هغوی ونشي کولی موږ سره په کاذبه مهرباني او محبت خبرې وکړي.

زما د اړ ايســتلو لپاره چې پوښــتنو ته يې ځوابونه ورکړم له بل روش څخه هم کار اخيســت. د دې لپاره چې په اصطلاح زما حوصله تنګه نشي ځينې وخت دوه جنکۍ چې د ټايپينګ دنده يې درلوده زما کوټې ته راتللې او خبرې به يې کولې. هغوی به د خندا او شوخي په څنګ کې پوښتنې کولې. پدې ډول يې فکر کاوه، کيدای شــي زه د هغوي د ټوکماريو دوکه شم. څومره سپين سترګي وې يا څومره کوک شوې وې، هرڅومره چې ما رټلې او ښکنځلې کولې هغوی مخ نه ګرځاوه غوښتل يې زما باور ځانته جلب کړي. ويل به يې: «اشــرف جانې ښــه ده، ته چې هر څه غواړې ووايه موږ اصلاً تا ســره ځانګړې مينه پيدا کړې، موږ تاته حق درکوو چې ښکنځلې کوې، ځکه چې ته موږ د مستنطقينو يوه ټولګه پيژنې. همداسې ښه ده ته اوس نه پوهيږې چې دا ډول نده. وروسته به متوجه شئ چې موږ دوه کسان ساده کارمندان يو لکه د نورو ادارو په شان سهار راځو او مازيګر بيرته ځو، موږ ته توپير نلري چې په کومې اداره کې کار وکړو. ځکه چې د ادارې کار سره کار نلرو...» ما به ويل: ځئ ولاړې شئ دغه خبرې خپلې مور ته وکړئ. زه د دې ځای مستخدمينو ته هم نشم کولی ښه نظر ولرم که څه هم هغوی يواځې د يو ساده مستخدم په بڼه ووينم تاسو لا پريږده!

دوه شــپې يې نور هم تحقيق کولو ته يوړم. پدې موده کې مې هم وکولی شــول چې د ځان په هکله د دښــمن له پوهاوي څخه مالومات تر لاســه کړم. خو دښمن لا تر اوسه پدې برلاسه شوی نه وه چې لــه مــا څخه د تحقيق پاڼه ډکه کړي. په کوټه کې مې فرصت تر لاســه کړ تر څو وکولی شــم له ټولو ناســتو، ملاقاتونو او تحقيقاتو څخه يوه سمه جمعبندي جوړه کړم. ومې ليدل چې زه د ځان په هکله د دښــمن له ټولو اطلاعاتو او هغه کارونو چې ما ســرته رسولي ول او زما د اړيکو په هکله خبر لري پوهيږم. د تحقيق په بهير کې زما مقاومت اوس خپله ګټه لاس ته راوړې وه او زه له هر څه خبره وم. اوس مې د دې چمتووالی په ځان کې احساس کاوه چې د تحقيق پاڼه د خپل تکليف روښانه کولو په منظور ډکه کړم، پرته له دې چې کټور اطلاعات دښمن ته ورکړم او پدې ډول د تحقيق پړاو ته د پای ټکی کښيدم او له دې کړاو څخه ځان خلاص کړم. بيا ځلي مې ټول هغه مسايل چې پيښ شوي وو را ټول کړل که چيرې کومه نيمګړتيا تر سترګو شي هغه اصلاح کړم. بيا مې د وروستنئ جمعبندي

په پای کې خپله پریکړه وکړه.

د وروستي تحقیق ناستې څخه دوه ورځې تیریدې چې بیا یې کوټې ته وغوښتلم او دا ځل مې پریکړه کړیوه چې د تحقیق پاڼه له کډوډو اطلاعاتو څخه چې له خطر څخه یې په بشپړه توګه ډاډمنه وم، ډکه کړم. خطابي دغه بې ننګه مزدور چې غوښتل یې له وخت څخه ګټه پورته کړي او په اصطلاح زما نظر د ملګرو په نسبت واړوي، وویل: «د پویان له کارونو مور ته خبر رسیدلی په ویلو یې سرې شرمیږي چې په ژبه یې راوړي. یوه ښځه راغلې او شکایت یې کړی چې پویان او څو کسه نور د هغې کور ته تللي غلا یې کړې او ښځه دومره غوسه وه چې ټولو ته یې ښکنځلې او ښېرا کولې.» ومې ویل: دغه خبرې ملنډې او مسخره دي. ته دومره هم نه پوهیږې چې خپل دروغ څرنګه جوړ کړې تر څو د تصور وړ وګرځي! ډیر ټینګار یې کاوه چې خبرې یې ریښتیا دي. ویل یې سپارښتنه کوم چې سبا ښځه دلته راولي. په دومره ټینګاراو په ډاډ یې خبرې کولې که چېا د خپلو ملګرو په پاکي ډیر کوچنی شک هم درلودای او نه پوهیدای چې د ملګرو ټول ژوند د خلکو د خدمت لپاره په نه ستړي کیدونکو هلو ځلو کې تیر کړی، شونې وه چې په زړه کې یې تیره شوي وی، په ریښتیا سره به یې دغه کار کړی وي؟ دغه رذیلانه درواغ یې د تحقیق په پای کې د دې لپاره وویل چې دغه خبرو ته بشپړه آغیزه ورکړي د دې په څنګ کې یې داسې ښووله چې غواړي لطف او مهرباني کوي ویې ویل غواړئ د پویان د کور کالي ووینئ؟ هغه ټول شیان مو په لویه کوټه کې ایښودي دي. ټول وسایل، وسلې، د غره وسایل، اعلامیې ټول هلته دي. لویې کوټې ته ولاړو، دوه اوږده میزونه مخامخ ایښودي وه، اسبابونه په کتار کې ځای په ځای ایښودي شوي وه. د یو دیوال په مخ د ملګري پویان بدلې جامې ځړول شوې وې. جامې پداسې بڼه ځړول شوې وې چې وی به د چا په تن پرتې دي. کله چې ورنږدې شوم نور نو هغه وخت رسیدلی وه چې دغه خائن مزدور ته ووایم، دغه ټولې هلې ځلې او د ځان ستړیا او د ملګري بد ستایل، په ما کوچنی اغیزه نکوي. ته وا چې جامې ملګری په تن کې اچولي او ما هغه ښکل کړې. خطابي او نورو چې هڅه کوله دغه شیان یو یو ما ته وښايي هکپک یې راته کتل او ما د دې لپاره چې ملګري سره مې په خپلې مینې ټینګار کړی وي وویل: جامې ډیر ښه کولی شي چې ملګری راته په سترګو کې مجسم کړي. د دې لپاره چې په مخ یې رانوړي او ونه وایې تیروتنه یې کړې، دوه درې نور شیان یې راته ښکاره کړل او بیرته یې کوټې ته بوتلم.

دوه ځل یې نور هم د خطابي کوټې ته بوتلم او پدې ډول وروسته تر یوې نیمې میاشتې دروغجن تحقیق پای ته ورسید. تحقیق واقعاً دروغجن او د ملنډو وه. زما ټولې لوبې د تحقیق په پاڼه کې منعکس شوې وې. خطابي زما ټول کړه وړه او حالتونه په هغې کې لیکلي وه. وروسته تر هغې چې

دوســیه مې په محکمه کې لوستله نه مې شوای کولی د خپلې خندا مخه ونیسم. مطالب یوبل پسې په بد خط د ماشــومانو په انشــاء کتار شــوي ول. پاڼو هیڅ مطلب په لاس نه ورکاوه. په پاڼو کې د کارونو څرنګوالي داسې راغلي وه چې د دښمن اطلاعات د هغه په اړه ناقص او نیمګړي وه او یوازې شهید شــوي ملګري په هغو خبر ول. د بیلګې په توګه تر پایه مالومه نشــوه چې زه د څه لپاره هره ورځ د پوهنتــون مخــې ته ورتلم (د هغه مزدور د ګزارش له مخې چې زما د ورور اجاره دار وه) ویلي وه پدې یوازې ملګری بهروز پوهیده. ماته یې څه ویلي نوه. ښــایې د وضعې د توجیه په خاطر وه چې غوښتل یې زه هغه سره اوسم!

د ځینو کارونو ســرته رســول هغوی ته نسبت ورکړل شــوی وه. حتی ډیرې بې اهمیته خبرې هم په دروغو راغلې وې.

# مهرباني او نرمښت د مبارزينو د دښمنانه روحيې د له منځه وړلو لپاره وسيله

د پرلت تر ماتولو وروســـته خپلو پخوانيو ورځو ته راګرځم، هغه پړاو ته چې دښـــمن هڅه کوله په هره وسيله چې کيږي ما څخه تحقيق وکړي.

وروســـته تر هغې حاضره شـــوم خواړه خوړل پيل کړم، کړه وړه يې بدل شـــول، بيا ټولې دايه ګانې له مور څخه لا زياتې مهرباني او زړه ســـواندې وې. يو څه موده يې د افســـرانو له جيرې څخه خواړه راکول. زرشـــک پلو له کباب شـــوي چرګ سره، ته چين پلو.... زه نه پوهيدم چې دلته دوه ډوله جيره ده، يوه د ساتونکو او زندانيانو لپاره او بله د افسرانو او مامورينو لپاره. پدې کې شک نوه چې هغوی دغـــه کار زما د کمزوره شـــوي بدن لپـــاره کاوه. له دغی با ادبه پذيرايې څخه اريانه شـــوې وم. با ادبه! مزدورانو ته مې ويل: له دغې پذيرايې څخه مو موخه داده چې زه تکړه او غښـــتلې شـــم تر څو وکولی شئ ما ښه وربړوئ. خو زه خوشحاله يم هيڅ نلرم چې تاسې يې له ما څخه تر لاسه کړئ او ومې ويل: ای کاش چې څه مې درلودای او تاسو ته مې نه ويلی، نه پوهيږئ دغه کار څومره خوندور دی. هغوی داســـې ښـــکاره کوله چې دوی له دې کار څخه بې خبره دي او يوازې د بدني پياوړتيا په فکر کې دي. وی به چې زه يې د کورنی يوه غړی يم!

وروســـته متوجه شـــوم چې د هغوي موخه په اصطلاح له دغې مېلمســـتيا څخه دا وه چې زه خپله جسمي سلامتيا کومه چې ما د ربړونو له امله له لاسه ورکړې وه بيرته په لاس راوړم، په احتمالي توګه که چيري د بين المللي ټولنې د فشـــار له لارې حقوقي استازی په محکمه کې حضور پيدا کړي، زما په څېره کې د ربړونو له امله د کمزورې نښـــې ونه ليدل شـــي.. دا هم د دښمن يوه چلوټه ده. حتی په ځينو شـــرايطو کې د ځانګړو امپولنو په ترزيق کولو ســـره چې په بدن کې پړســـوب پيدا کوي تر څو غوښن او چاغ ښکاره شي.

دوه ښځو د دې په څنګ کې چې زما د څار دنده يې درلوده په مستقيم او غير مستقيم ډول يې د

مســـتنطیقینو غوښــتنې تر سره کولې. په مهرباني سره به یې چلند کاوه، چې په یو ډول ما پخلا کړي تر څو دښــمنانه چلند ونلرم. یا داســې روحي عذاب رامنځ ته کړي چې له ډېر کړاو څخه مثلاً زاري او بخښنه وغوارم او له هغه ځایه چې هغوی ښځې وې او ټول څلورویشت (۲۴) ساعتونه یې ما سره په څنګ کې تیرول، کولی یې شــول له مختلفو لارو خپلو موخو ته د رسـیدلو لپاره ګټه پورته کړي. دوســتانه خبرې کولې، د کورنۍ زړه خواله کولو څخه نیولې د ښـځکیو خاله ګانو د زورولو تر کچې نقش لوباوه.

د ملګرې شهین توکلي په هکله، د دې لپاره چې د ملګري عباس جمشیدي رودباري[۸] په هکله هغې څخه اطلاعات تر لاســه کړي نقش لوبولی وه: دوه ښځې د ملګرې شهین تر شا دریدلې، پدې ډول یې ورو ورو خبرې کولې چې شــهین یې اوریدلې وشــې خو فکر وکړي هغوی نه غواړي خبرې یې تر غوږو شــي، یوبل سره پدې هکله چې جمشیدي نیول شویدی خبرې کوي«پلاني، جمشیدي په کومه کوټه کې اچولی دی ۱۷۳ شــمیرې کوټه کې هماغه چې شــمالي لهجه لري...». تر غرمې وروســته یو پیره‌دار چې ملګرې شــهین سره یې ښــه چلند درلود د یو دوست په بڼه یې خبر راوړ چې جمشیدي ونیول شو او اوس په ۱۷۳شمیرې کوټه کې اوسیږي. هماغه شپه ملګرې شهین د تحقیق لپاره د اســتنطاق کوټې ته وړي او د ملګري جمشــیدي په هکله ترینه پوښــتنې کوي. قصد یې دا وه چې ملګرې شــهین خپل ځان سره ووایې: ملګری جمشیدي چې نیول شوی دی، نو مهمه نده کوم اطلاعات چې د هغه په اړه لرم یوازې د هغه د نه نیولو په صورت کې شــونې وه چې د دښــمن په ګټه وې ووایم.

د پرلت تر لمړیو ورځو وروســته، دوه ښــځو تر دې کچې مهرباني کوله چې زه یې په تعجب کې اچولــم. ځان ســره مې ویل مګر دوی نه پوهیږي چې زه د هغوی دښــمنه یم. نــو کله چې زه هم په همدې موضوع کلکه ولاړه یم، نو د دې کارونو مانا څه ده؟ اصلاً ګولی مې نشول چې زه د دې کارونو په دلیل پوهه شم او له دې کبله مې ځان سره ویل خامخا د دوی خصوصیت همدا ډول دی. د بیلګې په توګه کله چې به ســهار له خوبه پاڅیدم د لاســونو اتکړۍ به یې را خلاصې کړې شــېدې، هګۍ او چای به یې راته راوړل او هغه هم له صمیمیت او درناوي سره یو ځای! چوپړې ته به یې ویل اشرف ته په غټه پیاله کې چای راوړئ، زه پوهیږم چې تُرکان چای ډېر چښي. یا به مې لیدل چې په خپلو پیسو مېــوه اخلــي لکه چې زه یې کور ته میلمه راغلی یم. په مرتب ډول یې تعارف کاوه. مېوه یې په ټینګار ســره زما په خوله راکوله د یوې زړه ســواندې مور په شــان! ویل به یې: «د ساواک بیشرفانو یوه جنۍ ووژله. عجیبه بېرحمه انســانان دي. بابا د حوزې کســان ډېر ښــه خلک دي» ګنې دا چې خپلو غټو

درواغو ته متوجه شــوې، د ډاډ جلبولو لپاره خپلو خبرو ته ادامه ورکوي، «پدې ځای کې هم څو تنه بیشــرفه افســران شته» دي. د دغو خبرو په څنګ کې یې زما ستاینه هم کوله. اشرف څومره پاکه او سپیڅلې جنی ده، پوزه یې څومره ښکلی جوړښت لري، غاښونه یې تر هر څه زیات ارزښت لري.... او یوې بلې ښځې به ویل چې زه د هغې د مشرې لور په شان یم...

په هر حال تر پرلت وروســته په لویه کچه چلند همدا شان وه. کولی شم ووایو هڅه یې همدا ډول وه خو وخت د هغوی د زړه په خوښــه نه تیریده. هغوی مجبور ول چې زما د غبرګون په اړوند خپل چلند په بله بڼه وښایي. په واقع کې هغوی د خپلې مهربانۍ له لارې غوښتل چې ووایې دوی ښه خلک دي. یوازې دوه درې کســان بد دي چې ربړونې کوي! ښــځکی ویل: «ته خو نه پوهیږې، ربړونکي لمړی خپل ځان ربړوي، بیا وروسته مقابل کس. اعصاب یې د ربړونې په وخت کې کمزوري کیږي» د نیــک طبــع په اړه یې ویل: «د ربړونې په وخت کې دومره غوســه کیږي، چې زه فکر کوم بالاخره متروکه په لاس به سکته وکړي».

که څه هم ما د هغوی د چلند په وړاندې عادي حالت درلود. او خپله مې هم معمولي خبرې کولی مثلاً د هغوی د کورنۍ په هکله مې پوښــتنې کولی خو د دې په څنګ کې مې چلند او عمل له نظر څخه تیرول چې ووینم کرغیړنه موخه یې د کارونو او کړو وړو په کوم ځای کې پټه ده. په جزیې توګه ناشــونې وه چې پدې موضوع پوه شــو، مسئله کُلي وه. د مبارز د غوســه ناکې روحیۍ وژل! او دا یوه تجربه شوې چلوټه وه چې تیرو وختو کې په کراتو مراتو نتیجې ته رسیدلې وه.

# څوک زنداني دي؟

پدې ډول زه د خپلو زندان ساتونکو د بې کچې مهرباني په لیدو سره، هره شېبه د هغه د حسابولو لــه مخـــې پوهیدم او هغه ناوړه اغیزه چې زما د ټېکاو او هوســاینې لامل کیده فکر کاوه. نه، نښــایې هغوی ته اجازه ورکړم چې ما ســره نرم او ملایم چلند وکړي. له دې کبله هر ځای چې مې مناســب لیــده، زما پــه نظر هغه خبرو چې په ښارونکو یې آغیزه کوله او هغوی یې حقایقو ســره آشــنا کول مطرح کولې او یا د هغې دندې ماهیت چې دوی ته ســپارل شــوې پرته له جنایتکاري بل شی ندی او دا مې هغوی ته د خبرو اترو په څنګ کې ثابتوله. پدې ډول هغوی مجبوره کیدل تر څو خپل چلند تــه بدلون ورکړي. په اصطلاح له حده زیات محبت امیزه چلند نشــي کولی تر دوه ورځو زیات دوام وکړي کله چې به وضع بدله شــوه داوې دنګلې، ښــکنځلې او ملنډې له ســره پیل کیدلې. هره ورځ د دغه کارونو تکراریدلو د هغوی غوسه نوره هم بربنډوله. له دې کبله زه بریالی شوې وم. هغوی ویل: «کــه پنځــه ګوتې ګبین کړې او د دې جنی په خوله کې یې ورکړې وایې چې دا ګبین نه ول بلکه زهر ول» لیدل مې چې څومره په کوتاه فکر حســاب کوي. هغوی سره له دې چې د دښمن مزدوران ول او ما سره یې طبقاتي دښمني درلوده خو موضوع یې شخصي لیدله. په زړه کې مې خندا کوله. هغوی ته مې ویل: آخر طبقاتي دښــمن خو نشــي کولی د ګبینو پنځه ګوتې ولري. د دښمن دوستي، د لیوه دوســتي ده. موږ یو د بل طبقاتي دښــمنان یو، که څه هم تاسو وایې چې دا خبرې پریږدم، دا چې موږ په یوې کوټې کې پرته له مســتنطیقینو په اړیکه کې ژوند کوو، کولی شــو یو د بل عقایدو ســره کار ونلرو. اوس چې فکر کوم خندا راځي هغوی ســره مې څه ډول اســتدلال کاوه دا چې خبرې یې له بنسټه ناسمې دي. خو هغوی له ډیرو هڅو سره سره بیا هم نشو کولی چې شخړه منځ ته رانشي. آخر دا خو ممکنه نه وه، موږ یو د بل دښــمنان وو او یو بل ته مخامخ ولاړ وو. هغه شــیانو چې هغوی یې خوشحالول، دقیقاً هغه شیان ول چې زما د غوسې او کرکې لامل ګرځیدل. او هغه شیان چې هغوی یې ناراحته کول او ځورول زما د خوشــحالي باعث وه. ټول ژوند یې په خواري او بیهوډګي کې ډوب وه. شوخیګانې او ټوکې یې هم مرتجعانه رنګ او خوند درلود. هغوی به د ملګرو پیښې کولې. ښکاره

ده پدې وخت کې زما چلند دا ډول کیدی چې ښـځکې پنځه کوټې په ګبینو کې وهي. په لمړي سـر کـې ورله عجیبه ښـکاریده، ځکه مثلاً همدغه پنځه دقیقې مخکې يې پـه اصطلاح یوه نرۍ محبت کړی وه، اوس نو ولې د يو بيځايه شـي په سـر! د هغوی له نظره لکه د ملګرو پیښـې کولو په سـر د هغوی په ټولو مخکنیو محبتونو سترګې پټې کړم!... وروسته تر هغې پوه شوي ول چې دغه کارونه يې دروغجنو محبتونو سـره نه جوړیږي. نور يې په معمولي حالاتو کې دا کار نه کاوه. البته ډیرئ وخت دغه ډول پیښې منځ ته راتللې، هغوی هڅه کوله ما له خپل سازمان څخه جلا وشميري. ملګرو ته يې بد ويل او فکر يې کاوه دا چې ما ته بد نه وايي نو نه ښايي چې زه د خپه شم. پداسې حال کې ښکاره وه چې زه او سازمان مې د هغوی له محدود او تنګ نظره کیدای شي یوبل څخه جلا اوسو.

له ځینو کړنو څخه يې تر اوسـه زما سـر نه خلاصیده. وی به چې زه د هغوی د کورنۍ یوه غړې وم. حتی ځینې وخت مې په ځان ویاړ کاوه. د بیلګې په توګه یوه ورځ چې مزدورانو زما د ربړونې په هکله خبرې کولې په ډیرې ستاینې يې یادولم. دوه ښځې په خوشحالۍ او منندویه څېره زما کوټې ته را ننوتې په محبت او درناوي يې راته وکتل خو ويې نشو کولی چوپ پاتې شي په خوشحالئ يې وويل: «ټول سـتا تعریف کوي!» وروسـته هم چې نورې زنداني انجونې د قصر زندان ته راتللې او ښـځکيو سـره يې اړيکه درلوده، اوریدل مې چې ښـځکيو هغوی ته زما د ربړونو په هکله تعریف کړی او په ویاړ سـره يې زما د مقاومت سـتاينه کړې او ویلي يې دي: «تاسو څه کاره یاست، زما تر لاس لاندې چریک ده!».

پدې ډول ورځې تیریدلې او پدې ترتیب کله چې به ورسره د محبتناکه چلند موقع په لاس نه وه، له هرې خوا به ملنډې پیل شـوې. حتی سـاتونکي هم چې د ګاردانو ډلې څخه ول يانې تر ټولو پوچ مغزي مزدورانو هم را باندې ملنډې وهلې. ما زیات اهمیت ورکاوه چې هغوې سـره ښـه چلند ولرم خو له دې موضوع څخه ناراحته وم چې دښـمن په څه ډول د هغه کسـانو له ناپوهي څخه ګټه پورته کوي کوم چې په فقر او بیچارګي کې لاس او پښـې وهي او د اسـارت په بند کې تر زبيښناک لاندې شپې ورځې تیروي.

ښـځکيو او افسـرانو کوښـښ کاوه چې د حوزې په یوې څانګې باندې د حملې د مطرح کولو په اړوند ځانونه د سـاتونکو ملاتړي وښـايې او هغوی زما په مقابل کې وپاروي. ما سـاتونکو ته توضيح کوله که چیرې ستاسې مسئولین ریښتیا وايي، نو ولې له خطرنه ډک کارونه په تاسو سرته رسوي او بیا تر ټولو لږ حقوق تاسو ته درکوي!؟ زور زیاتی کوي او سپکاوی مو کوي، ستاسو لپاره په ډیر کوچني درناوی هم قائل ندي!؟ خو هغوی په ښـه توګه زما اسـتدلال ته نه متوجه کیدل او د خپلو بادارانو په

تبعیت یې عمل کاوه. مثلاً یو له ساتونکو څخه چې کله به په دروازه را د ننه شو زما د نیولو د لمړنیو ورځو پېښــې به یې کولې: «خلک... خلــک...» او ویل به یې: «پلانیه دغه خلک چېرې دي...؟ که ته د خلکو دوســته یې نو را د شــي چې تا له دې ځایه خلاصه کړي کنه!» او ښځکیو به په پرک پرک خنداکوله چې: څومره زړه راښــکونکی ابتکار په لار اچوي او څومره شــوخې خبرې د په یاد دي.او هغه به بیا بیا یې تکراروله «خلک... خلک...»

ښــځکیو هــم دغه خبرې ډیرې کولې: «ته خو اوس زنداني یــې. اوس زموږ په لاس کې یې لږ تر لږه ســم او حســابي چلند کوه ســتا په ګټه وي...» څه عجیبه حالت مې درلود. اصلاً کولی مې نشول چــې دغــه خبرې زغم کړم. د کلماتو مفهوم یې زما په ذهن کــې نه ځایده. د هغوی په وجود کې مې ډیر زیات حماقت تر سترګو کیده او ځان سره مې ویل واقعاً دوی نشي کولی پوه شي چې زه په هیڅ ډول د اســارت احســاس نکوم؟ د هغوی په اړه چې د خپل حقیر ژوند او د مبتذل خوی په ټغر کې لتاړ شــوي ول، د څومره پراخې آزادي احســاس مې کاوه. ایا هغوی په ریښــتیا نه پوهیدل چې زه نه بلکه هغوی خپله زندانیان دي؟

د «خپل» کلمه زما د فکر په واټن کې ځاې پیدا کولی نشو چې دغه خپل «څوک» وه؟ زړه مې دغه د کوچنی بورژوازي مفاهیمو ګډوډ کړی وه. د ځان په ګټه، د ځان لپاره، زه... زه... نه پوهیدم څرنګه کولی شم متعادل چلند ولرم. نه مې د هغوی هغه ډول دوستي غوښتله او نه مې دغه ډول شخړې. د ښځکی له ډانګ وهلو ډیره غوسه کیدلم. د هغې په هر وار سره مې په ځان کې د بریا احساس کاوه. په سپکاوي سره به یې ویل: «آخر ته څه کار کولی شی؟ ستا له لاسه هیڅ کار سر ته نه رسیږي» واقعاً هیڅ کار مې کولی نشــو. ټول وخت مې لاســونه تخت سره تړلي وه، حتی ټټی ته د تګ په وخت کې هم زما په لاسونو کې اتکړی اچول کیدلې. ومې کتل چې بیځایه هغې ته دغه موکه په لاس ورکوم. د هرې بې ارزښته موضوع په سر او د هرې کوچنی بهانې په سر په ډانګ وهل او پدې ډول ځان برلاسه ښوول زما لپاره ډیره ګرانه تمامیده. که څه هم دا پخپله زه وم چې هغه مې دغه کار ته اړ ایستله. هغه زما په ښکنځلو او خبرو ډیره غوسه کیده. دغه ډول چلند چې خورا ناوړه پایلې یې ځان سره درلودې، د دې لامل شو چې خپل چلند ته لږ څه بدلون ورکړم.

په تېر ژوند کې راته د یو کس د بیچارګې او بې وســې حالت ډیر ســخت تمامیده. پدې ځای کې د ښځکیو په اړه دغه حالت مخې ته راغی. یو ځل ښځکی زما له خبرو د ناراحتي دې کچې ته ورسیده چې ټول بدن یې عصبي تشــنج ونیوه. د هغې دغه حالت ته په کتو ســره فکر کې ولاړم. ځان ســره مې وویل: زه خو هغې ســره شخصي دښــمني نلرم. اوس چې پدې ځای کې چلند د شخصي مسئلې

بڼه غوره کړي، ســمه نده چې په خپل چلند د هغې د ربړوني لامل شــم. که څه هم پوهیدم انســان ته د درناوي اعتقاد د انســان طبقاتي موقعیت ته له توجه پرته یو بې مانا شــی دی او دا یوه ایده آلیستي اندیشــه ده چې انسان څخه په مجرد ډول یادونه وکړو، په یوې طبقاتي ټولنه کې غواړې که نه غواړې هر شــي طبقاتي مارک خوړلی دی. خو دغه موضوع چې انســان د درناوي وړ موجود دی زما په ذهن کې د دې لامل شــوه چې هغوی ســره خپل چلند ته لږ څه بدلون ورکړم. که څه هم د هغې ښځکی د اعصابو د تشنج له امله زما ناراحته کیدل او دې موضوع ته شخصي کتل زما اعتقاداتو سره سمون نه درلود. هرومرو پوهیږم که چیرې مې د اوږدمهال لید درلودی او د خپل دغه کار په اهمیت پوهیدی، هیڅکله مې دغه پریکړه نه کوله. ځکه کولی مې شــول ووینم چې زما کار د دغه ښــځکیو او نورو مزدورانو روحیه څومره کمزورې کوله. چې بیایې نشو کولی د قدرت د احساس له مخې ملګرو سره چلند وکړي. یا مې کولی شول ووینم چې د دښمن بیخ وتلی او حیران پاتې دی چې ما سره څه وکړي. او په کوم ځای کې مې وســاتي. حتماً یې په ځانګړي ســلول کې اچولم چې زما په ګټه وو، د کوچنۍ بورژوازي له ژوند څخه چې په کوټه کې منځ ته راغلی وه لرې پاتې کیدم.

د کوټې دوه ښــځکۍ او څارونکي همیشــه د یوې پلمې او لاســوندي په لټه کې وه چې وخاندي او خوشــحاله اوســي. یوبل ته یــې د پخوانیو یادونو تعریفونه کول. کله چې بــه د څو ورځو لپاره کور ته ولاړې، کوم کارونه یې چې ســرته رســولي وه ټکي په ټکي کېســې کولې. همیشنی کار یې شیریخ خوړل او سینما ته تلل وه چې په ډال و ډیل یې تعریف کاوه. ځینې وخت یې هم په کست سره پدغه موضوعاتو ډېره لګوله چې په اصطلاح زما زړه وســوځي. بله بوختیا یې د اداري افســرانو سره وه چې ډیرې ناوړې او له شــرم نه ډکې ټوکې یې یوبل ســره کولې. ځینې وخت یې هم د ټولنې د فقر د لامل په هکله افســرانو سره خبرې کولې.ما به هوښیاري څخه کار اخیست او څارونکو سره به مې خبرې کولې. هوښــیاري له دې پلوه چې په یو وار مې نه ویلې ستاســو خبرې غلطې او ناســمې دي. بلکه د هغوی خبرې مې داســې اړولې چې لمړی نه متوجه کیدل. خو وروســته یې هغه شــان نتیجه ترېنه اخیســته چې باید اخیستې وای نو بیا هغوی نشــو کولی څه ووایې. ځینې وخت ما هم د څارونکو د ژوند په هکله پوښــتنې کولې او هغوی ته مې خبرې کولې. ښــایې ما دغــه څارونکو ته بیځایه زیات ارزښت ورکاوه. هغوی په کوچنۍ بورژوازي او وچ نظامي ژوند کې ډوب وو. پدې ډول دهغوی لیدل زما لپاره دردوونکې وه. واقعاً د ښځکیو په وړاندې د هغوي مریې ډوله چلند او د افسرانو د خوراکي توکــو د خوړلــو په خاطر یې څومره د ځان ســپکاوی کاوه، دې ته په کتو ســره مې ټول بدن په غم او غوســې ډک کیده. تر ټولو هغه ناوړه کانګېړاوړونکي خبرې وې چې هره ورځ به یې زما د تخت په

ســر یوبل ســره کولې. دې مسائلو دومره ځورولم او ناراحته کولم چې ځینې وخت به په واقعې توګه د کانګو کولو حالت راته پېښېده. په بهر کې هر وخت د ربړونې خبرې کیدې، ما به ځان سره ویل: تر ټولو ناوړه ربړونه هغه ده چې سړی د کوچنۍ بورژوازي ژوند کولو ته اړ کړای شي. پدې ځای کې هم د کوچنۍ بورژوازي ژوند وجود درلود او زه په هغې کې د ننه اوسیدم. په سترګو مې لیدل او په غوږونو مې اوریدل، هیڅ کار مې له لاسه پوره نه وه. ایا د دې لپاره یې همیشه دغه معمولي! خبرې کولې چې ما غوســه کړي او هغوی سره شــخړه وکړم؟ پریکړه مې کوله چې هیڅا سره خبرې ونکړم او داسې کار وکړم چې د هغوی هیڅ حرکت ونه وینم خو شونې نه وه. له هرې خوا پوښتنې پیل کیدې. لمړی په کراره. پلانۍ ولی خبرې نکوی؟ په بې اهمیتي ســره مې ځواب ورکاوه چې د خبرو کولو حوصله نلرم. اصلاً ما ســره کار ملرئ. یا مې په ډاګه ویل: زما نه خوښــیږي چې تاسو سره خبرې وکړم. تاسو هم ما ســره خبرې مکوئ. خو هغوی لاس نه اخیست. هرڅومره چې زما چوپتیا ځندېدله د هغوی چلند هم بدتر کیده. که څه هم زما د لاســونو کلک تړل، د اوبو نه ورکول، په ځنډ ټټی ته بیول او د ورځینیو مسائلو په هکله له حده زیاتې خبرې کول د دې لپاره چې زه ووینم د هغوی ژوند څومره په خوښــې!! تیریږي. پدې ډول داســې وضع منځ ته راتلله چې تر پخوا بدتره وه. په هر حال هیڅ کار مې تر لاسه پوره نه وه. ښایې زه بلده نه وم. د ځان لپاره مې کړنلاره او برنامه جوړوله چې د کره مسائلو په هکله فکر وکړم، مثلاً ولې وسله واله مبارزه موخې ته د رسیدلو یواځینۍ لار ده؟ یا کله ناکله د ورځې یوه ټوټه شــعر ووایم او داســې نور. خو هغه زورونې او خنډونه چې هغوی جوړول، تقریباً هیڅ وخت د برنامې په عملي کولو بریالۍ کیدای نشــوم. ښــځکیو غوښتل چې حتی کوچنۍ کار هم د هغوی په خوښه سرته ورسیږي. د هغوی لپاره د زنداني کلمه د یو فرمان منونکي مریې کلمې سره مترادف وه. حتی ناشونې وه کومه اندازه چې تا د ځان لپاره غوره کړی ول ولولې؟ کله چې به بیده کیدم د ښځکۍ حوصله به ســرته رســیده، ښارونکو ته به یې ویل چې تخت په لغته وواهه او ښارونکو به تخت په زور ســره په لغته واهه، په خوب کې به راته زلزله تر ســترګو شوه. تخت به یې واهه چې پورته شه، مه بیده کیږه، ځکه چې آغلې ښځکۍ ته زما بیده کیدل د کسالت حالت پیدا کوي. له هر کوچني ښیز څخه یې زما د ازارولو لپاره کار اخیست. زه یې د ورځې دوه ځله هغه هم په ډیرو زاریو ټټی ته بیولم او خپله به یو ښارونکي ســره د ټټی تر دروازې راتلله. د دروازې څنډه باید لږ خلاصه پرینښــودل شــوې وای. کومه ورځ چې مې غوښــتل درې وارې ټټی ته لاړه شم، په اداره کې شورماشور پورته کیده چې غږونه یې د دهلیز تر پایه رســیدل. افسران به له کوټې څخه بهر راوتل او بالاخره ټوله اداره به خبریدله چې زه غوارم ټټی ته لاړه شم. هر یو به په بې پروایې سره پیغور راکوه او خپلو کوټو ته به ورتلل. د ملګرې شهین توکلي په هکله سربیره پر دې مسئلې، د غذا خوړلو په هکله هم همدا ډول نارې سورې په لار

اچول کیدې. ملګرې شـــهین لړ ډوډۍ خوړله (دوه یا درې ځمڅۍ) او ښځکې به نارې سورې په لار اچولې چې پدې ځای کې ژوند کول په خپله خوښه ندی. هغې غوښتل چې غذا په اندازه وخوړل شي او د هغې په خوښـــه د هر لاس مینځي په ســـر خپل لاسونه او پښـــې ومینځو. زیاتره د همداسې ورته شیانو په سر شورماشور او داوې پیښیدې. البته دا د هغې همیشنی خصلت وه هڅه یې کوله داسې کار وکړي چې ټول یې اطاعت وکړي. مګر له موږ څخه بیریدله کوښښ یې کاوه زموږ په اړه تر هغه ځایه چې موږ اجازه ورکوله کارونه په مســـالمت آمیزه توګه په مخ یوســـې. هغې په ښه توګه زموږ کرکه او نه بیریدل په سترګو لیدل او پوهیدله چې دا رنګه بد چلند د هغوی لپاره ناوړه پای ځان سره لري. عملاً یې څو ځله تجربه کړې وه. د بیلګې په توګه یوه ورځ دوه ښـــځکې د ملګرې شـــهین توکلي د تخت په څنګ کې څملاســـتلې وې، د ملګرې لاســـونه چې تل تخت سره تړلي ول، ځان سره فکر کاوه چې په یو ډول ځان د تخت څنډې ته نږدې کړي او هغه څوکۍ چې ښـــځکیو ته نږدې وه د پښـــو په ټېله کولـــو هغـــوی باندې چپه کړي. دغه کار کوي خو له هغې څخه د څوکۍ لریوالی او د ملګرې د ټیټ قد له امله پښه په سختي سره څوکۍ ته رسوي، څوکۍ لږ لرې د ښځکیو څنګ ته لویږي، چیغه وهي او هغوی داسې بیروي چې یوه له ښځکیو ضعف کوي او ځای په ځای دبلۍ (میخکوب) کیږي.

کومه ورځ چې به د تحقیق کوټې ته تللم او خبرې مې نکولې، ښـــځکۍ ډیرې غوســـه کیدې. البته هغوی به همیشه ویل، موږ دې کارو سره کار نلرو او خپله غوسه یې په مختلفو پلمو بل ډول ښووله. ښـــځکۍ به ویل: «زه د تحقیق اطلاعاتي جلســـې سره کار نلرم خو اصلاً نشم کولی دغه ډول کړنه او چلند زغم کړم کله چې د خطابې په شـــان یو محترم ســـړی!کوټې ته راځي، حتی مخ د هغه خوا ته نه اړوې. آخر ولې سړی دومره مغرور او له ځانه راضي اوسي.» ځینې وخت یې دغه خبرې په لوړ آواز کولـــې او څومره بد چې ما ورله ښـــکنځلې نه کولې. یوازې مې ویل: زمـــا دغه کار تا پورې اړه نلري، ښـــه دا ده چې پدې اړه خبرې ونکړئ. زما د ښکنځلو نکولو پریکړې دغه اغېزه پر ځای پریښودلې وه چې نور مې په اســـاني سره نشـــو کولی تهاجمي روحیه ځان ته غوره کړم، له دې کبله نیوکو مې په اصطلاح مؤدبانه حالت غوره کړی وه.

د تحقیق په ورځو کوټه کې د دعوا حالت برلاسی وه. هماغه شان چې مې وویل دعوا ظاهراً نورو مسایلو سره تړاو پیدا کاوه خو دوي به د خپل خیال له مخې تړتلم. شونې وه هغه ورځو کې ما ته اوبه رانکړي، یا مې لاســـونه نور هم ټینګ وتړي. کله به هغه دوه ټایپستانو چې ما یې نومونه واخیستل او یا د هغوی په شـــان نورو مزدورانو به د دې لپاره چې ما تحقیق ورکولو ته اړ باســـې په ملنډولاس پورې کاوه. په کوټه کې د ښځکیو چلند هم محبت آمیزه کیده. لاسونه یې راته خلاصول، یوازې د شپې له

خوايې لاســونه راته تړل او حتی کولی مې شــول د دوه څارونکو په شتون کې چې زما دواړه خواوو ته ناســت وه په کوټه کې قدم ووهم او ورزش وکړم. دا زما په هکله د ملګري حميد توکلي په پرتله چې زما کوټې ته مخامخ وه او ټول وخت يې لاســونه او پښــې تړلي ول دهغوی د ډير محبت ښکارندوی کوله. ملګری حميد توکلي د غبرګولي د دريمې فاجعې او ملګري پويان او ملګري پيروندیري نيولو تر خبريدو وروسته دومره ناکراره شوی وه، پداسې حال کې چې لاسونه يې تړلي ول، خپل سر کلک په مځکه وهي دومره ســخت ټپي کيږي چې مزدوران په چټکي ســره هغه روغتون ته رســوي او څو ورځې يې هلته درملنه کوي. له هغې مودې وروســته د ملګري لاســونه او پښې يې هميشه تخت سره تړلې.*

پدغه وخت کې د هغوی مهرباني له صميميت سره يو ځای شوی وه، واقعاً د هغوی دښمني يې زمــا له ياد څخه هيره کړې وه. زه نشــم کولی ووايم چــې هغوی ټول وخت دغه نقش لوباوه. په واقع کې پدې کار هم قادر نه ول. لس دولس ورځو کې يو ځل خپل کور ته تللې. خو د هغوی ټول ژوند په کار کې تيريده او ټول حرکتونه يې د کار لپاره ول. يا کولی شم ووايم هغوی د کار په څنګ کې خپل معمولي کارونه هم په مخ بيول. دغه دوه ښځې داسې لوبغاړې وې چې لوبې يې د ځان په ملنډو بدلې شــوې وې. هغوی ما ته د دوه ســرطاني غدو حکم درلود چې زړه مې غوښــتل له بيخه يې وباسم. دا زما کمزوري وه چې نه پوهيدم د هغوي د ډول ډول نخرو په وړاندې څه غبرګون وښايم. هيڅ وخت راضي نه وم چې هغوی سره دوستانه خبرې وکړم که مې دوه ورځې دا کار کړی وای، دريمه ورځ مې په خپل ځان نيوکه کوله. چې آخر څه ډول کسانو سره معمولي خبرې کوې؟ نو هغه وخت مې خپل چلند ته چټک بدلون ورکاوه، ځان ســره مې ويل: کله چې دښــمن ربړونه درکوي، تر کوم ځايه چې دهغه موخې څخه اګاهي وجود لري، په اســاني ســره کيدای شــي تصميم ونيسئ او دهغه د هر ډول

---

* ملګری حميد توکلي تر نيولو وروســته تر څلور ورځو غښــتلي مقاومت او ربړونو وروســته کله چې ډاډمــن شــو ملګــرو پدغه موده کې کورونــه تش کړي، د کور پته ويلې وه. دا دهغه لپاره ضعف نه شــميرل کيږي، ځکه د ملګرو پريکړه داســې وه، هر څوک څلور ويشــت ساعتونه وروسته تر نيولو کولی شي د کور پته ووايي. په ځانګړې توګه ملګري اســکندر صادقي نژاد پدې هکله ملګري حميد ســره خبرې کړې وې. خو ملګري پويان د هغو طرحو د پلي کولو په خاطر چې پدې کور کې يې مناســب امکانات تر لاســه شوي وه او د هغه له لاســه ورکول ورله ګرانه وه، د کور تخليه کولو په هکله يې غوځ دريځ غوره نکړ او ملګري اســکندر هم هغه ســره پريکنده برخورد ونکړ پدې ډول پايله دا شوه چې ملګری پويان کور نه پريږدي او د غبرګولي دريمه غميزه منځ ته راځي.

چلند په وړاندې برعکس عمل وکړم. خو پای یې هیڅ ډول ځانګړې موخه نلري.

نه مې شول کولی چې ټول چلند ته یې د تحقیق مسئلې سره تړاو ورکړم. واقعاً چې هم همیشه یې دې موضوع ســره اړیکه نه درلوده. په هر صورت هغوی د دښــمن چوپړان وه او کړنې یې کرغېړنې وې. لیدل مې چې زیاتره وخت موضوع شــخصي او ښــځینه وه. کله مې چې په ځان نیوکه کوله چې ولې د کوټې له وضعیت څخه ناراحته کیږم، مګر دښــمن څخه د ښه چلند تمه ولرم؟ خپله نا خوښي مې دا ډول توجیه کوله چې زه باید له ناوړه او ستونزمنو شرایطو څخه ګیله ونلرم. دښمن خو غواړي چې هر ډول شــرایط زما لپاره جوړ کړي خو د ښــځکیو خورولي په دې موضوع کې ځای نه نیســي. البته وروســته مې پخپله ځواب ورکاوه چې د دې کوټې وضعیت هم هغه شــرایط دي چې دښــمن په ناګاهانــه یــا نه ناګاهانه ډول منځ ته راوړي دي. خو په هر صــورت نه له کوټې او نه مې له خپل چلند څخه رضایت درلود. ځان ســره مې ویل کاش ما هم د نارینه ملګرو په شان سیار څارونکي ساتونکي درلودی. چلند مې تحقیق کوونکو افســرانو ســره د تاوتریخوالي حالت څخه په ملنډو بدلیده. هغوی غوښــتل خپل کارونه قانوني وښــایي. د هغوی لپاره جنایتونو او بیشــرمانه اعمالو څخه خبرې کول معمولي شــی وه. په ډیر راحت او عادي توګه یې خبرې کولې. کله چې یې د مســایلو په اړه د حق په جانب قیافه کې ماســره خبرې کولې، نه مې شــو کولی په هغوی ملنډې ونه وهم او په خبرو یې خندا ونه کړم. ځینې وخت یې داســې خبرې کولې ته به وایې چې یوې ماشــومې جنی سره مخامخ دي. یو له هغه افسرانو څخه چې د ملګري بهروز په ډزو کې ټپي شوی وه، تازه روغتون څخه رخصت شوی وه او تر اوسه ګوډ ګوډ په لاره ګرځیده، زما په مخ کې به هم ګوډ ګوډ روان وه او په خندا به یې ویل: «وګوره ورور د زما په پښه څه کار کړی ده...!؟».

ملګری بهروز د نیولو په وخت کې په داســې حال چې په بشــپړه توګه تر محاصرې لاندې وه یوه شــېبه هم د هغوی په وړاندې ارام نه وه. او مخکې تر هغه چې د دښــمن مزدوران د شا له خوا په هغه حمله وکړي او لاسونه یې ونیسي ویې کولی شول په هماغه لمړیو شېبو کې څو تنه مزدوران له پښو وغورځوي او وروســته هم چې لاســونه یې د شا له خوا نیول شوي ول او پښې یې ماتې شوې وې، پر لّه پسې یې ډزې کړې وې. که څه هم په هغه وخت کې یې کولی نشول چې ګولی د دښمن په مغز او زړه کې ونښلوي خو په هر حال دغه ډزو دښمن په ویره او وحشت کې اچوه او هم د دې لامل کیده چې روغې مرمی یې د دښــمن په لاس ورنشــي. په هر حال ملګري سره په دې ډول مخامخ جګړې کې د دښمن نقشه چې په اساني به یې ونیسي، سره له دې چې ټوله سیمه محاصره شوې وه ماتې سره مخامخ کړه. د ملګري انقلابي جســارت او زړورتیا تر دې کچې د دښــمن په زړه کې وحشت اچولی

وه چې هغوی به همیشه له هغه ځخه د افسانې په بڼه یادونه کوله.

خطایــې خپــل ځانګړی چلند درلود. هڅه یې کوله چې له چالاکــې ځخه کار واخلي په ما ملنډې ووهي. دغه کار د دې لپاره تر ســره کیده چې مقابل شخصیت وټکوي او روحیه یې کمزورې کړي، ما په دې هکله ساده‌کي درلوده ځینې وخت ژر دې موضوع ته نه متوجه کیدلم او تر څو مې چې فکر کاوه پوه شــم پلانی مطلب په څه دلیل مخې ته راکاږي، لیدل مې په څېره کې یې ځوروونکې مســکا پیدا کیده. مثلاً یوه ورځ یې یو انځور راوښــود چې وګوره پیژنې یې که نه، ما واخیســت او ومې کوت. انځور د یوې جنۍ وه چې وایې به له قبر ځخه راپورته شوې وه. سترګې یې کولکو ته پریوتې وې او په مخ یې ډېر ډنګرهډوکي تر ســترګو کیدل. ومې غوښــتل د بې تفاوتې په حالت کې انځور بیرته ورکړم چې هماغه ځورونکې خندا یې په څیره کې پیدا شوه. پوهه شوم چې نوې ملنډه په کار کې پرته ده. دوهم ځل مې په ځیر سره انځور ته وکتل او خپل ځان مې په کې وپیژاند (په لمړۍ ورځ یې زما انځور اخیســتی وه) خو په مخ مې رانه وړه چې په لمړي ځل مې پیژندلی نه وه. پوښــتنه یې وکړه چې پیژنې یې که نه؟ د خبرې ځواب مې ورنکړ یوازې مې دومره وویل وینې یې چې څیره یې له کرکې او نفرت نه ډکه ده. سترګو ته یې وګوره چې په څه نفرت دښمن ته ګوري!

# د بیوزلۍ او بې خبرۍ قربانيان

دګارد ســاتونکي بــدل شــوي وو. هره ورځ نوی څارونکي د ســاتلو لپاره کوټې تــه راتلل. د دغو څارونکو موجوديت زما لپاره د خوښــۍ پانګه وه. کله چې به ښــځکی په کوټــه نه وې، موږ به یوبل سره خبرې کولې. زیاتره یې کلیوال وو چې په کلیو کې یې کار تر لاسه کړی نه وه او څارونکي شوي وو. یو شــمیر یې د کارخانو کارګران وو. د کارخانې او کلي د وضعیت په هکله مې پوښــتنې کولې. ځینې وخت سیاسي بحثونه مخې ته راتلل. ځینو یې تر یوې کچې سیاسي پوهه درلوده. هغوی د هغه ســتمونو په هکله چې په دوی او نورو روا ګڼل کیږي خبرې کولې او له دســتګاه څخه یې نارضایتي ښــودله. ځینې ډیر زیات کنجکاو وو چې ووینې څه ډول شــونې ده چې د یو کس لپاره د شــخصي ګټې مطرح نه وي او د خلکو د خلاصون لپاره خپله ټوله زندګي په مبارزې کې مصرف کړي. ځینې وخت دغه کنجکاوي دومره شــدیده وه، چې کله به ښځکیو هغوی ته سپارښتنه وکړه ما سره خبرې ونکړي له یاده یې وتله حتی د هغوی په مخ کې یې ما سره خبرې کولې. دغه څارونکو نارینه ملګرو سره هم خبرې کولې. او ملګرو هغوی په مختلفو مسایلو روښانه کول. د ملګرو اخلاقي خصوصیاتو زیاتــره څارونکي په ځان مین کړي ول. د هغوی یو شــمیر کســانو کله چــې د ملګري نابدل نوم په خوله اخیســته له خوشــحالي به یې خندل. د هغه د خبرو په یاد کې به پاتې شول، او کتل به دې چې هغه ســره څومره مینه لري. دغه څارونکو په انفرادي خونو کې هم د ملګرو کارونه ســرته رســول. د پیغــام وړل او را وړل او بهــر ته خبر ورکول. ځینو یې حتی د ملګرو لاســونه خلاصول او څار یې کاوه کله چې به کوم مزدور راغی سمدســتي به یې لاسونه ورتړل. د نارینه ملګرو چلند او زما احترام امیــزه کړنې د دې لامل شــوي وې، چې دغه څارونکي به یوازې دولس (۱۲) یا څلورویشــت (۲۴) ســاعتونه زما په څنګ کــې ول، باور وکړي. هڅه یې کوله ګټوري زما لپاره څه کولی شــي. کله چې به ښــځکیو اوبه څښــل راباندې بندول، په چالاکي او هوښــیاري به یې شــاوخوا کتل او د هغوی له ســترګو به یې پټ اوبه راکولې. دا کار ما ســره د هغوی د محبت نښه وه. د اوبو څښل مهمه نه وه. د

دې کار ســرته رســولو ارزښت درلود. په وروســتيو کې هم چې زه يې د حوزې ځمکه‌پوړ ته يوړم، ډېر ځله مې دغه ډول زړه پورې مهربانۍ ګانې ليدلې دي. هلته مې وکولی شــول پيره‌دارانو ســره ملګرې شــم. ځينو سره ډېره صميمي شوم. کولی مې نشول هغوی ته د سرکار کلمه وکاروم. فکر مې کاوه په ســرکار ويلو ســره هغوی دښمنان شميرم. په دې وخت کې راته په ياد راتلل چې هغوی د ټولنې د فقر او نيمګړتياو قربانيان دي چې موږ د هغوی د سوکالي په لار کې مبارزه کوو او په ياد مې راوړل چې هغوی په نهايت کې پخپله زموږ دي. دا ســمه ده چې دوی اوس زموږ په ښنګ کې نه بلکه زموږ په وړاندې ولاړ دي. خو موږ کولی شو د دې خبرې لامل تحليل کړو او ووينو چې هغوی د خلکو واقعي دښمنانو سره څه توپير لري. هغوی به يوه ورځ خپله اصلي دنده وپيژني او هغه وخت چې د پوهاوې شېبې ورسيږي، زموږ او د هغوی تر منځ به شته ديوالونه ونړيږي. همدا اوس مې په هغوی کې غوره خصلتونه تر ســترګو کيدل. په محبت مې هغوی ســره خبرې کولې د «دا دا» خطاب مې ورله کاوه. هغوی سره د زيات بحث کولو موکه نه وه. هغوی يې د څو زياتو ورځو لپاره په ځمکپوړ (تهکاوی) کې نه پرېښودل او وار په وار يې بدلول.

خو په هر حال د بحث لپاره موکه مخې ته راتلله. بحثونه صميميت ســره نغښــتي وه. د ځينو لپاره د ملګري صمد بهرنګي د «نانځکه خبرې کوي» کتاب څخه څو پاڼکي ياد کړي وو او په هره موکه مــې هغوی څخه پوښــتل: ښــه ده، راځه او د خپــل درس ځواب راکه، «په يو ګل نه پســرلی کيږي» ځواب څه دی؟ (دغه خبره اســتوار ښارونکي هميشــه په ځمکپوړ کــې زندانيانو ته کوله ) اوهغوی ځــواب ورکاوه: «هــره رڼا که هر څومره کمزورې وي بالاخره روښــنايې ده». ځينو ته مې دغه پاڼکی شــعر ياد کړی وه: «که چيرې ســتمکش دغه ستمونو ســره چې وينې يې بيا هم جوړجاړی کوي، د ستمکوونکي ساتونکی دی» هغه آواز چې کله به ښارونکی زما د سلول له مخې تيريده او هغه به يې په خپلې ســيمه‌ايزې خوږې لهجې د دوســتي ظاهرولو په ښه زمزمه کوله اوس هم زما په غوږونو کې جرنګهار کوي. «که چيرې ســتمکش دغه ســتمونو سره چې وينې يې او بيا هم جوړجاړی کوي، د ستمکوونکي ساتونکی دی».

د هغوی يوه بله ښکلې او له سپېڅلتيا څخه ډکه صحنه په ياد راولم چې هيڅکله به مې له ياده ونه وځي. يو ځل چې د پيره‌دار د بدليدو موکه نږدې وه، يو آشــنا ښارونکی چې زما د ســلول په مخ کې ولاړ وه، وويل: «که سبا دلته رانغلم، خپلو دوستانو ته د سپارم چې سم او حسابي چلند درسره وکړي. هغوی ټول کوښــښ کوي تر هغه ځايه چې کولی شي ستا لپاره کارونه سرته ورسوي.». ښارونکي يوه دوره په ځمکپوړ کې تيره کړه بيرته راستون شو: «که سبا زما پيره دلته نه وه، دوست مې دلته راځي.

که چیرې څوک ستا سلول ته راغی، پداسې حال کې چې نبی لاس یې د پتلون په جیب کې وه او تا ته یې سلام وویل، هغه زما دوست دی ته کولی شی په هغه ډاډ وکړئ».

کوم کارونه یې چې زما لپاره سرته رسول، د بیلګې په توګه کله چې به ټپی ته تللم د ملګرو د سلول دروازه یې پرانیستې پرېښووله. یا که ملګرو کولی شول کومه خبره وکړي، دهغې ګزارش یې نه ورکاوه او داسې نور. موږ ټول د دغو بې ریا محبتونو په قدر پوهیدو او ارزښت مو ورکاوه. هغه جدي ژمنې چې څارونکو به پرې خبرې کولې، زما لپاره ډېره زړه‌راښکونکې وې. له خوشحالی مې پړک پړک خندا کوله.

د اطلاعاتو د ادارې څارونکو د پوهاوي له مخې له دښمن ته خدمت کاوه، هم له دې پلوه او هم د لومړني خصلت په درلودلو سره ډېر پست کسان وو. چلند یې د زنداني انجنو او نارینه ؤ په وړاندې توپیر درلود. ځکه چې دغه توپیر چټې او سپک اړخونه درلودل. لازمه وه هغوی سره په ډېر ټینګښت او تاوتریخوالي مخامخ شئ او د ډېرو خبرو اجازه ورنکړې. دنورو څارونکو په هکله موضوع بل ډول وه. مثلاً د هغوی د ځینو محبت له مبارزې سره د هغوی د سمپاتي ښکارندويې کوله، بلې موضوع سره یې هم تړاو درلود. د هغوي په افکارو اوس هم فیودالي فرهنګ واکمن وه، ښځه یې کمزوره او ضعیفه پیژندله همدغه خبره د دې لامل کیده چې محبت یې د انجنو په هکله د حمایت او ملاتړ رنګ ځانته غوره کړي. خو د هغوی یو شمیر نورو د خپل تیر شوي ژوند له امله لومړني خویونه درلودل او موږ ته یې په بده سترګه کتل. موږ له هغوی سره صمیمانه چلند نه درلود.

په ځمکپوړ کې چوکیدارانو (نګهبان ها) په ډېره کلکه له څارونکو سره د ملګرو د خبرو مخنیوی کاوه. ځکه چې هغوی ښه پوهیدل که ملګري زندانیانو سره خبرې وکړي ډېر ژر به پوه شي چې قومندانان یې د زندانیانو په هکله دروغ ویلي دي او دا یې هیڅ په ګټه نه وه. خو ځینې څارونکي ډېر مهربان ول، وایې به هغوی خپله دنده ګڼله چې ملګري خوښ وساتي. ځینو یې په خپلو پیسو زندانیانو ته سګرټ اخیستل. یو وار یو له څارونکو ما څخه وپوښتل: «بهروز ستا ورور وه؟» ومې ویل هو، ژر مې ورځخه پوښتنه وکړه ته د هغه ربړونو څخه څه پوهیږې؟ پوهیږې هغه یې څو ورځې وربړاوه؟ په څیره کې یې ډېره ناراحتي پیدا شوه او ویې ویل: «زه هیڅکله هغه تا ته نه وایم.» ټینګار مې وکړ هرومرو یې ووایه خو هغه خبره ونکړه او ویې ویل: «زه څرنګه کولی شم یوې خور ته د ورور هغه عذابونه او کړاونه چې ورباندې تیر شویدي ووایم نه،نه زه نشم کولی» بیا مې ټینګار وکړ او ومې ویل: ته اصلاً د خور او ورور خوا په نظر کې مه نیسه، دا لازمه ده چې پوهه شم، هرو مرو یې ووایه. هغه بیا مقاومت وکړ او ویې ویل: «پوهیږې چې همیشه د تورې ټپ رغیږي خو د ژبې ټپ

پاتی کیږي. که زه د هغه ربړونې شــرح کړم مثال یې دا دی چې ما تا ته د ژبې ټپ درکړی دی او زه به همیشه نا ارامه اوسم چې د ژبې په دې ټپ مې د یوې خور زړه ټوټه ټوټه کړیدی.» نور مې ټینګار ونکــړ. د هغــه ځارونکي زړه تر دې ډیر پاک وه چــې د دې ډول فکر له مخې خبرو کولو ته حاضر شــي او دا له انصافه لیري وه چې پخپل ټینګار ســره هغه ته ازار ورکړم. دغه ډول صحنې ډیرې وې چې زموږ زړونه د هغو د صمیمیت او مهرباني په لیدو دردیدل. ځکه چې ښــه پوهیدو هغوی د فقر او تیاره ژوند له امله په طبقاتي ټولنه کې د شــته توپیر له کبله اســارت ته تن ورکړی وه. هغوی له هغه ټولو مهربانیو سره سره نشو کولی کومه دنده چې سرته رسوي راضي او خوشحاله اوسي. له دې کبله همیشه ځوریدل او ربړول کیدل.حتی موږ د هغو کسانو په وجود کې چې د ناپوهي له مخې یې خپله دنده په رضایت سره سرته رسوله او ظاهراً خواشیني هم نه وو، بربنډ اسارت مو په کې لیده، هغوی د فقر او ناپوهي اسیران ول چې دواړه د ټولنې ثمره وه د هغوی په هر ځای کې طبقاتي توپیر تر سترګو کیده. دغه ټولې ربړونې، په مردکیو ویشــتل، زوروا کي او زندانونه د هغو لپاره دي چې په ټولنه کې د طبقاتي توپیر او په پایله کې د فقر، ستم، زوروا کي او اسارت د لهمنځه وړلو په خاطر راپورته شوي. او دغه مقاومت د خلکو د خلاصون د لارې مبارزینو په وړاندې هم، د هغو کسانو له خوا ده چې په ټولنه کې د طبقاتي توپیر له منځه تلو ســره ســم د هغوی په ورکاوي پای ته رسیږي. یانې نړیوال امپریالیزم پورې تړلي لوی پانګهوال او د هغوی ټولو سرکی مزدور پاچا!

هوکې موږ د خپلو ساتونکو په وجود کې داسې اسیران لیدل چې د هغوی د اسارت په لیدو زموږ کرکــه او غوســه د خلکو د دښــمنانو په وړاندې نوره هم زیاتیــده او د دې لامل کیده چې تر ربړونې او پــه زنــدان کې د هر ډول زور زیاتي، تحقیر او ســپکاوي لاندې په یاد ولــرو چې د خلکو د کومو دردونو، کړاونو او ناورین د له منځه وړلو لپاره مبارزه کوو. څرنګه کیدای شــي د هغه ســاتونکي په وجود کې چې زما د ښــځکیو په وړاندې یې لکه د غلامانو په شــان درناوي کاوه او کله چې به ما اوبه غوښــتلي لمړی به یې هغوی ته غوړهمالي او تعارف کاوه او بیا به یې ما ته را کولی، د هغوی اســارت احســاس نکړی او بې تفاوته پاتې شــې؟! او څومره زیاتې مې دغه صحنې لیدلې چې ډیرې ترخې او ربړوونکې وې، ځان ســره مې ویل: څوک چې همدا اوس کرکه او کینه نه لري، څرنګه کولی شــي راتلونکي سره مینه ولري؟

# ملګریه! الوتل په یاد ولره مرغۍ مري

په دغو ورځو کې (د دوبي لمرۍ ورځې یا د پسـرلي پای) پر له پسې یې ملګري نیول. اداري یو سـاعت هم هوسا وضع نه درلوده. مزدوران ټول وخت په منډو رامنډو کې وه. له سهاره تر شپې او له شـپې تر سـهاره د ربړونو چیغې او ناري سـورې وې چې تر غوږو رسیدې. مزدوران دومره لیوني او خروړي شـوي وه چې بې دلیله یې په هره خوا منډې وهلې. مثلاً ښـځکۍ به چې د ربړونو په چیغو له ځایه پورته شوې په دالیزو کې به په منډو شوی او ویل به یې: «میراث مړیه، نو مخکې له ربړونې یې ووایه!....».

ځینې شـپې یې نیشـه کوله او ټولو به په دهلیزونو کې چیغې وهلې. په ترپکو به شـوې او شعرونه به یې ویل او د ملګرو نومونه یې په ملنډو شعر کې اخیستل. هغوی ټول وخت په اداره کې تیروه او تر دوه درې سـاعتونو زیات په شـپه او ورځ کې نه بیده کیدل. ټول وخت په ربړونه او تحقیق کولو بوخـت وه. د دغـې صحنې په لیدلو ډیره ناراحته کیدلم. له ځانه مې پوښـتل واقعاً پولیس همدا ډول شـپه او ورځ هڅه کوي! آخر څرنګه کیدی شي انسان د د یوې مرتجعانه موخې لپاره ټول وخت کار وکړي او بیده نشـي؟ په حقیقت کې پیسـې او مقام، په هر صورت خپل ځان او خپل خلخنده ژوند سره علاقه درلودل، هغوی ته د دې وس ورکوي! زړه مې غوښتل چې بیروني ملګري له دې موضوع څخه اګاهي تر لاسـه کړي او پوه شـوي وای چې دنده یې څومره سـتونزمنه ده او دا ډول دښمنانو سـره د مقابلې لپاره باید څو برابره کار وکړي. په ځان مې ډیره نیوکه کوله او افسـوس مې کاوه چې ځینې وخت مې ولې تنبلي کوله او وخت مې چټي تیروه. کله به یې چې څوک ونیوه له خوشحالي به په جامو کې نه ځایدل. لکه د شـکو په شـان یې په پښو کې پیسي توییدې. د مکافات او اضافه کاري لپاره یواځې ښـځکۍ ته په یوې میاشـت کې درې زره تومان ورکړل شـوې. د هوایې ځواک په واټ کې تر نښـتې وروسـته ځینې مزدورانو د رتبې ارتقاء ترلاسه کړه. په دغه وخت کې مزدورانو ته موقع په لاس ورغله چې له موقعیت څخه ګټه واخلي او واک تر لاسـه کړي. هر یو غوښـتل ځان پیاوړی

او لایــق وښــایي او د ځان لپاره جایزې په برخه کړي. همــدا وجه وه چې ټولو هڅه کوله تر نورو ډېر وېنه‌څښونکی، داړونکی شي او د غوړه‌مالي وروستی څوکې ته ورسیږي. په هغه کال کې زیاتره نیول د پولیســانو د حوزې له خوا ســرته رسیدلې وې. همدغې خبرې هغوی ډېر مغروره کړي وه. کله چې به ربړونه قطع شــوه، مزدوران به خوشاله کیدل چې: «یو څه یې وویل» او ښکنځلې یې کولې «تا چې غوښتل ووایې نو ولې د ځنډ وکاوه؟...».

کله یې چې ملګرو ته ربړونه ورکوله زما بدن به د انقباض حالت درلود. خو چې کله به مزدوران په کوټه کې ول، غوښتل مې چې ځان چُپ او بې پروا ښکاره کړم او کله چې هغوی ویل وګوره ملګري د څه ډول د ملنډو په ژبه یې د ملګري په کلمه تکیه کوله خبرې کوي، نور له تاسو څوک پاتې ندي او یا څوک نشــي کولی له داسې ســتر دولتي قدرت سره مقابله وکړي. مصدق چې دولت یې په لاس کې وه هیڅ کار یې له لاســه پوره نشــو، اوس تاسې څو کســان غواړئ چې دولت نسکور کړئ؟... ما وویل تاســې همدا ډول فکر وکړئ دا د انقلاب پیل دی، نور به تاســې هیڅکله د تیرو کلونو په شــان ارامتیا په سترګو ونه وینئ. ستاسې زندانونه ډک کیږي. د مبارزینو د ساتنې لپاره ځای نه پاتې کیږي. تاسې له دې موضوع څخه خوشالي کوئ، په داسې حال کې چې همدغه موضوع د انقلاب د شرایطو برابرولو لپاره ښکاره دلیل دی. ځینې وخت مې د ملګري پویان خبرې تکرارولی کله چې موږ لاس په عمل پورې کوو، شونې ده د سازمان ډېر ملګري له لاسه ورکړو او اصلاً شونې ده سازمان په ټولیزه توګه له منځه لاړ شــي. نور ســازمانونه به مبارزې ته دوام ورکړي. دا مهمه نده، موږ ویاړو چې د وسله والې مبارزې په پیل ســره مو په خپل هیواد کې د خواشــیني له امله شــته چپتیا ماته کړې، ومې ویل: موږ تیریږو، خو لار مو پاتې کیږي....

ځینې وخت د ســباناري په مهال د ربړونو غــږ او چیغې پورته کیدې، زه به د مزدورانو په وړاندې چې په دې اعمالو یې ویاړ کاوه، په ډېر زحمت مې کوښښ کاوه په ځان مسلط شم او سباناري ته ادامه ورکړم. لازمه وه هغوی ته ثابته کړم چې ستاسو کار هیڅ ویاړ نلري او هیڅ اهمیت نلري. زه له تاسو څخه د هیڅ ډول ښه چلند تمه نلرم. موږ د خپلې بریا په واقعیت لکه د ځلانده لمر په شان باور لرو.

کله چې به په کوټه کې څوک نه وه د ربړونې د چیغې په اوریدو مې لاســونه موټی کیدل. غاښــونو مــې یوبل چیچل، غچ، کرکې او نفرت مې ســتونی مروړه. داســې حالت راته پیــدا کیده لکه چې تر چاودنې د مخه شــیبې رایادوي. نه پوهیدم څه باید وکړم. څه کار مې له لاســه پوره وه، که مې لاسونه خلاص وای د ربړونې کوټې ته په منډه کیدم او په ملګري مې ټینګار کاوه چې د دښــمن په خوښــه رفتار ونکړئ، هغوی ســره خبرې مکوه، ایا له دې ځایه نارې کړم: ملګرو! الوتل په یاد ولرئ مرغی

مري؟! په هغه ظالمانه شور ماشور کې زما غږ چيرته رسيدی شو؟ ټول بدن مې په سور اور کې کړېده، څومره ترخې شـيبې وې. احسـاس مې کاوه کار د دښمن په ګټه تماميږي، خو هيڅ چاره مې فکر ته نه رسـيده چې مخنيوی يې وکړم. د دغې بې وسـئ احساس ډېره ځورولم، نوره دې حالت ته رسيدلې وم چې هيله مې کوله د ربړونو غږ قطع نشي. د مبارزې نړۍ همدا ډول عجيبه نړۍ ده. له هغه ټول عشـق او محبت سره چې هر ملګري سـره يې جلا جلا په زړه کې احساسوې، کله چې دښمن سره مخامـخ کيږې غوره ګڼې چې دغه چيغې تل واورې او چپ نشـې، که پريکړه دا وي چې د ملګري چپتيا دښـمن ته د هغه د تسـليميدو نښه وي! ځکه چې د مبارزې په لار کې ملګرو سره مينه کول د ډير لوړ ارمان له مينې څخه سرچينه اخلي چې په زړه کې راټوليږي او که نه کله چې هغه خپل ارمان ته شا واړوي نو څرنګه کولی شی چې بيا هم هغه سره مينه ولرئ؟

بايـد ووايم چې د ربړونو قطع کيدل هميشـه د ملګرو د ضعف د ښـکارندويې نښـه نده. ځينې ملګري د بدل آدرس په ورکولو د لنډې مودې لپاره د دې لامل کيږې چې ربړونه قطع شي او ځينې وخت تر ربړونې لاندې د ملګرو بې هوشي وه.

دښـمن د ځينـو له مقاومت نه کولو څخه د نورو د روحيـې ضعيفولو لپاره ګټه اخلي. په واقع کې هغوی د ځينو عيني بيلګو په ښـوولو او د خپلو هميشـګي تکراري خبرو په ويلو: «بابا ته ډير ساده يـې، دلتـه هر څوک د خپل ځان په فکر کې دي. آخر دا به ليونتوب وي چې يو کس د بل کس لپاره ځانته عذاب ورکړي. هغه چې ټول بهر دي ډيرې لاپې کوي خو کله يې چې پښـې دلته ورسـيږي له الف تر يا هر څه وايې!».

پـه دې ډول هڅه کوي چې کس له مقاومت کولوڅخه پښـيمانه کړي. مـزدوران، دغه خلکو ته خاينانو چې به کله د ځينو له عدم مقاومت څخه بريا تر لاسه کړې وه، دومره به خوشاليدل چې سر او پښې به يې نه پيژندلې. د پيسو ځلاء يې سترګې ړندې کړې وی او پرته له دې چې يو کس ونيسي بله هيله يې نه درلوده. په ډاګه ليدل کيدل چې دښمن سره د ملګرو د خبرو يواځينئ ضربه د ملګرو نيول يا وژل نه دي، د يو تشـکيلاتي کور له لاسـه ورکول نه دي، يا يواځې دا نه ده چې خلک ووايې: انقلابيون وژل شويدی، ماتې يې خوړلې، د دې کار ضربه نور عواقب هم په څنګ کې لري. دا چې دښمن زړور کيږي، روحيه پيدا کوي، د نورو ملګرو لپاره د مبارزې ډګر تنګوي او همدارنګه هغوی لـه دې موضوع څخه د نورو زندانيانو د روحيې کمزوري کولـو لپاره ګټه اخلي او هغوی خبرو کولو ته هڅوي.

هغـه چلند څخه چـې ما د هغوی د زهرجنو خبرو په وړاندې کار اخيسـت او نه مې پريښـوول

چې ما تر آغیزې لاندې راولي، هغه دا وه چې کوښښ مې کاوه د هغوی په یوې کوچنۍ خبرې هم باور ونکړم. ویل مې د دښمن په هکله باید د نه باور شتون مطلق وي. له دې ټولو سره سره ځینې واقعیتونه وه چې کیدای نشو په هغو سترګې پټې کړم او ټول شیان دروغ وبولم. یو ځل ټټی ته د تګ په وخت کې مې یو هلک ولید چې کړوپ کړوپ په غمجنه څیره لکه د یو بې وسې او بیوزلي په شان چې یو څارونکی یې په خوا کې وه د ټټی په لور روان وه، کله چې ښځکیو ولید څارونکو ته یې وویل: «ژر یې یوسئ» او هغه ته یې هم وویل: «سر د کښته کړه» او هغه لکه د مریې په شان ومنله. د دې صحنې لیدل راته ډیر ځوروونکی وه، زړه مې غوښتل کلک ټکان ورکړم او په چیغه induced ووایم خجالت وباسه، سر د لوړ ونیسه. دا یو تریخ واقعیت وه چې نور مې ونشو کړای باور ونکړم. د دې صحنې لیدل چې په نیم یا یو ساعت ربړونه کې خبرې کیږي هم واقعیت دی.

# د ایمان او ارادې ځواک د ربړونې تر ځواکه برلاسه دی

ځینې وختونه، کله چې یو کس کمزوري شـودله، د دښـمن د بریالي ځیرې په لیدلو ډېره غوسـه کیدلم. ژوره کرکه مې احساسوله او هغه وخت به چې زما په ذهن کې ډول ډول پوښتنې پیدا کیدلې، فکر کاوه. آخر ولې ځینې کسـان خبرې کوي.ایا د هغوی ربړونه دا ډول ده چې د مقاومت امکان یې نشته؟

او بیا مې د ملګرو د افسـانوي مقاومتونو د بیلګو په هکله سـوچ کاوه او ځان سره مې ویل: آخر هغه وحشیانه ربړونې چې ملګري نیک داوودي[۹] د مرګ تر بریده وزغملې، پرته له دې چې دښمن ته یوه کلمه ووایې او ترسختو ربړونو لاندې یې سا ورکړه تر دې بله سخته ربړونه وجود لري؟

کومې ربړونې کیدای شـي تر هغې زیاتې سـختې وي کومې چې ملګري بهروز ته ورکړل شوې؟ په داسـې حال کې پرته له دې چې ملګری یوه ذره هم د وحشـیانه ربړونو په مقابل کې تسـلیم شي، دښمنان یې د خپل خلل ناپذیر او زیان نه منونکي ایمان په وړاندې په ګونډو کړل، مګر همداسې نه وه چې دښمن د ډیرو سختو ربړونو تر کارولو وروسته کوم چې د ځنګل ملګرو د خپل زړور مقاومت له مخې ځانونه د خلکو لپاره جار کړل بیا یې د هغوی بې سا، خو مقاوم او ویاړلي جسدونه په مرمیو سوري سوري کړل؟

آیا هغه ربړونې چې د جزني[۱۰] ډلې په اوږد مهال کې ولیدلې او دهغوې په وړاندې یې بې سـاری زړور مقاومت وښود، اندازه یا شدت یې کوچنی وه چې له ربړونو څخه دا ډول سرلوړي او ویاړلې بهر راووتل؟ له ځان څخه مې پوښـتل مګر کولی شـو په تصور کې یې ځای کړو چې دښمن د خپله ټوله پیاوړتیا د زړورو مبارزینو په ربړولو نه کاروي او په لږ شدت د ربړونه ورکړي؟

کله مې چې د جزني ډلې د یو ملګري د بې باکه افسانوي مقاومت صحنه په یاد راوړله چې یادول

يې خپله دنده بولم: د دغه اتل ملګري په هکله تر هغې وروسته چې دښمن ډول ډول ربړونې وکارولې او بيا يې چې بريښــنايي منقل راووړ په خندا او خوشــالي ويلي وه: «اوس تا د دې په مخ کښــېنوو او تــه به هغه وخت په خبرو راځې.» ملګري په داســې حال کې چــې د زياتې ربړونې له امله د حرکت کولو وس نه درلود په ډېر زحمت يې ځان د منقل خوا ته کش کړی وه او ويلي يې وه: «په ويتنام کې چې يو بودايي د خپل ارمان په خاطر ځان ته اور اچوي، نو زه چې يو کمونيست يم د منقل اور څخه وبيريږم؟» په خپله د هغه په مخ کښيناستلی وه.

تــر دې وخت پورې ما د ملګري مســعود احمد زاده[۱۱]، ملګري مجيد احمــدزاده[۱۲]، زړور مجاهد علي اصغر بديع زادګان[۱۳]، ملګری عباس مفتاحي[۱۴]، ملګری همايون کتيرايي[۱۵]، ملګری ســيروس سپهري[۱۶]، ملګری شــاهرخ هدايتي[۱۷]، ملګری اصغر عرب هريسي[۱۸]، ملګری محمد تقي زاده[۱۹] او د داســې نورو لســکونو سر سختو مبارزينو بيلګې چې وروســته يې د ژوند حماسې د پورته ياد شوو ملګرو ســره يو ځای شــوې خبر نه درلود او په ورته وخت کې د ځينو د نه مقاومت په ليدو سره په دې فکر کې لويدم چې آيا د هغوی ربړونې دومره سختې وې چې په وړاندې يې مقاومت امکان نه درلود، دغه د خلکو زړور فدايي سرتيري، دغه د خلکو د خلاصون د لارې سپيڅلي صادقانو په خپل بی ساري مقاومت دښــمن په ګونډو کوي او د مبارز انســان د ارادې ځواکمنې د ځلانده يادګار په توګه د تاريخ په پاڼو کې پريږدي. نشم کولی هغه څه مې چې د ملګري مسعود احمد زاده د مقاومت په هکله اوريدلي غلی پاتې شم.

دښــمن د ملګري تر نيولو وروســته هغه تر ډيرو ســختو ربړونو لاندې نيولی وه. تصور يې کاوه کولی شــي د ملګري شونډې چې د تسخير نا پذير مورچل په شان ټينګې وې خبرو کولو ته خلاصې کړي. د ربړونې ټول وســايل يې د هغه په هکله وکارول خو نتيجه يې تر لاســه نکړه. ملګري مسعود به په زندان کې ما او دوه نورو ملګرو ســره چې نومونه به يې په وروســته پاڼو کې وليکم د ملاقات په وخت کې هميشه کوښښ کاوه خپل ټپونه او د ربړونې نښې له ملګرو څخه پټې وساتي. هغه تر دې بريده په مقاومت ټينګار کاوه او تصور يې درلود، ښايي حتی د هغه په بدن د سختو ربړونو آثار ليدل ملګري تر آغيزې لاندې راولي!

ملګری مســعود څو ورځې بل ملګري سره په يو ســلول کې اوسيده. هغه وخت چې د بريښنايي منقل ربړونې د ملګري مســعود په شــا د يو پيشقاب په اندازه ټپ جوړ کړی وه. خو ملګري کوښښ کاوه تر څو په سلول کې هغه بل ملګری د هغه ټپونو ته پام نشي يوازې هغه وخت چې ملګری بيده کيده په (وينو او زوو ککړ ګينجی زيړ کميس) به يې بدلاوه. يوه شپه د سلول ملګری وينښيږي او د

هغه ژور او پراخه ټپونه ويني او هغه وخت په چيغو چيغو نور زندانيان د ظالمانو له وحشيګري څخه خبروي. په دې وخت کې ملګرى مسعود کوښښ کوي چې هغه له دې کار څخه منع کړي او هڅه يې کوله د دې خبرې د افشا کيدو مخه ونيسي.

د ملګري مســعود په اړه چې دښــمن هر ډول ربړونې ازمايښــت کړې، ټولې له ماتې سره مخامخ شــوې او ملګري هيڅ مالومات د دښــمن په واک کې ورنکړې او د خپلو چريکي ملګرو د مبارزې اســرار يې په خپلې ســينه کې ښخ کړل. د ملګري مقاومت تر دې بريده حيرانوونکې وه، کله چې دا ټولې ډول ډول ربړونې بې پايله ســرته ورســيدې، يو ډګروال (سرهنګ) چې د ربړونې مامور وه هغه ته ويلي وه: «موږ تا سره خونړې دښمنان يو، خپله هم پدې پوهيږې، خو زه د ستاينه کوم او اعتراف کوم چې تر اوســه مې ستا په شان څوک ليدلي ندي». ټولو ربړونکو د ملګري په وړاندې خپل سرونه د درناوي په توګه ټيټ کړل او د خپلو بې بريده وحشــيانه ربړونو په څنګ کې ملګري ســره هميشه په درناوي چلند کاوه.

په دې ډول دې پايلې ته رســيږو چې تســليميدل رنګارنګ دلايل لري چې د هر چا لپاره د فهم او تحليل وړ دي. موږ اوس د انقلابي ژوند په پيل کې ژوند کوو او غورځنګ د خپل ماشومتوب پړاوونه تيروي. دا سمه ده چې موږ د خپل تير ژوند په کمزوريو برى تر لاسه کړى دى. خو د دغو کمزورتياو بشــپړه نابودي زموږ لپــاره ممکنه نه وه. په انقلابي ژوند کې هم ځينې وخت هغوى ســره د مخامخ کيدو په صورت کې زياته سختګيري نه کوو. خوش باوري کوو او د خپلو کمزوريو د ليدلو په وړاندې مــو زغــم کاوه. په کافي اندازه په ځان او ملګرو انتقاد او نيوکه نه کوو. خپل منځ کې د کمزوريو د له منځه وړلو پر ځاى په هغو ســرپوښ کښيدو. دا چې له زندان څخه بهر د ژوند شرايط، دغو کمزوريو ته د څرګنديدلو اجازه نه ورکوي. له همدې کبله کله چې زندان کې ولويږو، ربړول کيږو، دښمن زموږ د روحيې د کمزوري کولو لپاره له سلګونو چلوټو کار اخلي، ډيره موده يوازې پاتې کيږو او د همدغه کمزوريو د پياوړتيا لپاره مساعده زمينه جوړيږي. نور نو د هغې د مقابلې وس نه لرو، همدا ده چې د تســليم کيدو شــرم په غاړه اخلو، د همدې لپاره بايد هميشه په ځان سختي ومنو او هره شيبه په ځان انتقاد وکړو او خپلو کمزوريو ســره په بې رحمي مخامخ شــو، کوښښ وکړو هغه له منځه يوسو. نه دا چې په هغوى د سرپوښ ايښودلو له لارې هغوى ته اجازه ورکړو د څه مودې لپاره په موږ کې ځانونه پټ کړي. پدې صورت کې کيدى شــي ډاډمن اوســو چې د ايمان او ارادې ځواک تر هرڅه پياوړى دى او هيڅ شى د هغه د ماتولو وس نلري.

# په زندان کې د هر مبارز دنده د ملګرو د روحيې پياوړتيا ده

پوهيــدم د هــر کار پايله چې تبليغاتي اړخ ولري همدايې د ويلو لازم ځای ده. د هغه ملګري ورين تندی چې د ټټی په لار کې ور ســره مخامخ شــوم زما دغه نظر يې تاييد کړ. څه موده وروســته هماغه ډنګر شوی هلک په هماغه لار کې په مخه راغی. سر يې هسک نيولی وه په خوشحاله څيره او خندا ســره يې شــاوخوا کتل. هيڅ ډول قيد او بند يې په وجود کې نه تر سترګو کيده، يو آزاد انسان وه. کله يې چې سترګې په ما ولګيدې ډير خوشاله شو. موږ دواړو په ډيره مينه يوبل ته سلام ورکړ او په خندا شولو. نه پوهيدم په هغه څو لنډو شېبو کې کومه کلمه په ژبه راوړم چې زموږ د احساساتو بيانوونکی شي. هغه هلک چې مخکې مې ليدلی وه، نا اشنا ملګري ته مې آشنا وويل: ملګريه هميشه خوشاله اوسه! البته په خپل منظور يوازي خپله پوهه شوم.

په هغه ورځو کې ښـځکيو زندان ته د «علَم»* د راتګ خبرې کولې او ويل يې ښــايې زما کوټې ته راشــي. ما ته يې ويل د راتګ په وخت کې يې بايد ودريږې او په اصطلاح مؤدبه اوســې. څومره زړه پورې خبرې! د اوريدلو زغم مې هم نه درلود. کله مې چې په ذهن کې دغه وينې‌څښونکي انسان چې د ژورې (زالو) په شان د زرګونو بزګرانو او زيارکښانو وينې څښې او د خپل ژوند په کرغيړنو لارو کې ترې خوند اخلي مجســم کاوه، شــونې وه زما کوټې ته راشي، ټول وجود مې غوسې اخيستی وه، ليدل مې چې په مقابل کې يې د اور يوه ټوټه يم، پوهيدم که چيرې هغه ســره مخامخ شــم، په ټول قوت سره هر هغه څه چې مې لاس کې وي پرې حمله کوم.... دا هغه موضوع وه چې زه يې د يو بل کار ســرته

---

* د پهلوي کرغېړنې کورنۍ د وفادارو چوپړانو او خاين شــاه دربار وزير، د ايران له مشــهورو فيوډالانو څخه ده چې د ځمکنې اصلاحاتو وروسته په ايران کې پر امپرياليزم پورې تړلی يو غټ بورژوا باندې بدل شو.

رسولو په فکر کې واچولم. ولې د خطایې سترګې ونه باسم؟ ایا نشم کولی د هغوی یو کس ووژنم یا لږ تر لږه په هغوی کې یو کس مړګونی ټپي کړم؟ ولې دا کار ونکړم؟ ایا دا په خپله نشي کیدی چې یوه تبلیغاتي موضوع اوسـي او د ملګرو په روحیې ښـه اغیزه ولري؟ کله مې چې ځان څخه دغه پوښتنې کولې، ومې لیدل هیڅ دلیل وجود نلري چې دغه کار ونکړم.

نقشـه مې جوړه کړه چې د خطایې سـترګې وباسـم په چل یې نه پوهیدم. فکر مې کاوه کولی شم سترګې یې په لاسونو کاسې څخه وباسم. په خپلو سترګو مې تمرین کاوه. خو ګویا امکان یې نه درلود. یو ځل چې خطایې ناسـت وه په دقیقه توګه مې د هغه سـترګې په نظر کې ونیولې چې کولی شم دغه کار سـرته ورسـوم که نه پوهه شوم هغه طریقه چې ما په نقشه کې غوره کړې ده عملي نه ده. کار مې ونه شو. خطایې نور زما کوټې ته نه راته. دا ځل مخفي وه چې کله ناکله به کوټې ته راته. د مخفي په هکله مې فکر وکړ کولی شـم د اوبو په ښیښـې ګیلاس یې په مخ وولم. یو وخت چې زما په خوا کې ناسـت وه، پیرەدار ته مې وویل اوبه راوړه هغه اوبه راوړې. مخفي مخ کوږ نیولی وه ښـځکیو سره یې خبرې کولې. غوښـتل مې مخ راوګرځوي تر څو یې ګیلاس په مخ ومښـلي، ښایې وړوند یې کړی. د ګیلاس اوبه مې لږ وڅښلی خو په دغه شېبه کې هغه ته آواز وشو بیا هغه پورته شو او ولاړ.

ما دغه کارونه په دغه موقعیت کې خپله دنده ګڼله، که مې سرته نه رسوله، وجدان مې ډیر ناراحته کیده. کله چې مخفي ولاړ ډیره خپه شـوم او ومې پتیله چې بیا ځلي دغه کار سـرته ورسـوم. خو بیا مناسـبه موکه پیدا نشـوه، هغوی ډیر کم زما کوټې ته راتلل او هروار ډیر لږ وخت دریدل. د ملګرو نیول خپلې لوړې کچې ته رسیدلي وه او هغوی ډیر زیات د خپلو جنایتونو په سرته رسولو کې بوخت ول. د ملګرو پرله پسـې نیولو او ربړولو زه ډیره غوسـه کړې وم. رفتار مې ټولو سره په شخړه کې وه. ښـځکیو چې څه موده نه ازارولم، اوس یې کار له سـره نیولی وه، هغه ډول مې چې وویل، اتکړی یې کلکې تړلې، د ټټی دروازه یې پرانیستې پریښوده او په پیرەدارانو یې سپارښتنه کوله چې د دروازې له مخې لرې لاړ نه شي او داسې نورې ملنډې...

د نیولو لمړنی ورځې تیرې شوې وې تر څو د هغه په اړه ګام پورته کړم او هغوی ما وډبوي او زه لاس او پښـې تړلې یواځې وکولی شم هغوی ته ښـکنځلې وکړم، باید هغوی مې رټلي وای. ځان سره مې وویل: اوس چې افسـران زما کوټې ته نه راځي، د دغه ښـځکیو تر ټل هم کیدی شي پخپله تبلیغ وي. د خپل ځان لپاره مې پوښـتنې مطرح کړې: که هغه په سـوټیو ووهم، دغـه کار به زما لپاره څه پای ولري؟ سمدسـتي وپوهیدم چې دغه پوښـتنه مې محافظه کارانه مطرح کړیده. بدله مې کړه: ایا سـمه ده چې دغه کار سرته ورسیږي؟ د دغه کار سـرته رسول په نورو څه آغیزه کولی شي؟ پوهیدم

که چیرې وخت ما څخه د دې کار د سـرته رسـولو غوښتنه کوله او ما هغه ته مثبت ځواب نه ورکاوه، نو خپل ژوند مې په بې هدفي او بیهودګي کې تیر کړی دی. د همدې پریکړې له مخې د یو مناسب فرصت لپاره کښیناسـتم. په دې موده کې ښځکی ډیرې سپین سترګې شوې وې او زما په مخ کې یې ملګرو ته ښـکنځلې کولې. لږ وخت تیریده چې ملګرې رقیه دانشـګري[۲۰] نیول شـوې وه. د هغې پـه اړه یـې له پیغوره ډکې خبرې کولې او په ما یې هم پورې کولې. په هماغه ډول چې د هغوی مجلې او ورځپاڼې یې لیکې. په پای کې د هغوی په هکله خو فکر هم نشي کولی تر دې وړاندې لاړه شه.

باید په هماغه ورځو کې مې ځواب ورکړی وای. یوه ورځ چې ټټی ته تللې وم او ښځکی د معمول په شان غُریدله او امر یې کاوه: «په دې لاس مینځې کې لاسونه مه مینځه، په دغه بل کې یې ومینځه». نور مې فرصت له لاسـه ورنکړ پرې ومې دانګل او ښـه حسـابي مې ووهله. ښځکی له ویرې اریانه او غلې په ځای پاتې شـوه. هغې چې ځان ډیر چالاک او هوښـیار باله، حتی جرئت یې نشوکولی چې چیغه ووهي. پیره‌دار هم هک پک پاتې وه د دې په ځای چې زما لاس او پښې ونیسي، هغه یې نیولې وه او ما چې هر څومره په لغتو ټینګه وهله او په لاسـونو مې له ګریوانه کشـوله، د خپه کیدو په حال کې وه. زموږ په شـور او غوغا، افسـرانو بهر راودانګل او زه یې په کش کولو کوټې ته د ننه کړم. او هلته یې تر کوتکو لاندې ونیولم. خو ما دومره د خوشـحالي او سوکالي احساس کاوه چې نه دهغوی په کوتکو ژوبلیدلم او نه ناراحته کیدلم. هغه کار مې چې غوښـته تر سـره کړی مې وه. او په کوتکو د وهلو انتظار مې هم درلود، نور نو هیڅ مهمه نه وه، په تخت یې څملولم او لاسـونه یې د تخت په سـر ټینګ وتړل او پښې یې راته په رسۍ تخت سره وتړلې.

فرید په اصطلاح د حوزې دغه مؤدب مزدور، نیک طبع سره یو ځای د اتکړیو تړلو په وخت کې پرله پسـې په مخ څپېړې راکولې. هغوی په خواشیني سـره دهغه کسانو په څیر چې یو کار هم سرته رسـولی نشـي او غواړي په یو ډول خپله کرکه وښایې په سوکانو یې په ګیډه او تشي کې وهلم، دا چې لاسونه مې د تخت په سر تړلي وه په اساني سره یې کولی شول دا کار وکړي. څه موده وروسته لاړل.

د پښو رسۍ مې دومره ټینګه تړل شوې وه چې په هغو کې وینه ټوله شوې وه او پښې یې راته شنې اړولې وې. په هډوکو مې چې رسۍ تیره شوې وه همدارنګه د لاسونو بندونه مې چې په اتکړیو ټینګ تړل شوي وه ډیر درد کاوه، کولی مې نشول چې سرته ټکان ورکړم او لاسونه مې چې پورته تړل شوي ول دردناکه ستړیا یې منځ ته راوړې وه. په هر صورت درې څلور ساعته په هماغه کوټې کې چې زما پیره دار د سـاتونکي دنده درلوده هم راسـره وه په کوټه کې پاتې شوم. دومره خوشحالي مې کوله چې حد یې نه درلود. پیره‌دار ډیر نا ارامه وه. لاسـونه یې په رسـۍ وهل که وشي کولی لږ یې سست کړي.

زړه يې غوښتل زما لپاره کوم کار وکړي. اوبه يې راته راوړې او خپله يې زما خولې ته نږدې کړې چې وېې څکم. پرله پسې يې ويل: «آخر ولی په خپل لاس ځانته کړاونه جوړوې؟» کاملاً صميمي حالت يې درلود لکه د ورور په شان چې ځان موظف ګڼي د خپلې خور ملا تړ وکړي، خبرې کولې. وروسته تر درې څلور ســاعتونو يو شمير مزدوران په ښــکنځلو او پيغور ويلو کوټې ته راغلل، زما تخت يې د پيره‌دارانو په اوږو کېښــود او له کوټې يې بهر کړم. د هغوی، منوچهري (د قندي مســتعار نوم) چې زه يې نيولې وم، يو دنګ ځوان د هېږ په شــان پېږه تنه او پړســېدلې ســترګې، نيک طبع له هميشنۍ ناهيلې څيرې سره، فريد، مخفي، اميني... کرغيړنې او ناولې څيرې مې ليدلې چې ما ته يې کتل.

تخــت يــې په کــږو وږو لارو کله په لوړو ژورو په اوږو يووړ. يو به ويل تخت ســم ونيســۍ ښــايې ولويږي، نورو به ځواب ورکاوه: «داډه اوسه دا د سپي سا نه لويږي» ما چې فکر کاوه ربړون‌خونې ته مې بيايي، له دې خبرو مې زيات قوت تر لاســه کاوه، په غوســې مې چېغه کړه: که تاسې مقاومت او ســر نه ټيټولو ته د ســپي سا وايي، زه به همداسې د سپي سا پاتې شم! څو پوړي کښته پريوتم. ناڅاپه د ماشين يا د يو ځواکمن موتور غږ پورته شو. زما په خيال يو عجيبه او نوی شي وه. ساتونکو ښځکيو تر دې پخوا ما ته د انفرادي سلولونو په هکله خبرې کړې وې چې د انسان پښو لاندې يخې يا ګرمې اوبه جاري کوي. فکر مې وکړ چې دلته د همدې شــيانو دســتګاه دی. په شور ماشور يې زما تخت په يــو کوچنې او تياره کوټه کې کېښــود بيايې دروازه وتړلــه او ولاړل. څه موده په هماغه حال کې پاتې شــوم. د يخو يا ګرمو اوبو په انتظار وم چې تخت لاندې روانې شــي. هڅه مې کوله سرته ټکان ورکړم او تخت لاندې وګورم چې هلته څه تيريږي او زه چيرې يم؟ خو کولی مې نشول چې ځای ووينم. د کوټې چت مې کاته چې د ګومبزې په ډول وه او په هغه کې يو کوچنی سوری وه، کله کله به سترګو له هغه ځايه د کوټې ننداره کوله.

په ځان کې مې د ارامتيا او ســوکالۍ احســاس څخه ډير خوند اخيســت. فکر مې کاوه د يخو او يا ګرمو اوبو جاري کيدل ستمکښــو خلکوسره زما د يووالي د لا ټينګښت ښکارندويې کوي کوم چې هميشه تر دې ناوړه کړاونو او ستونزو سره لاس او ګريوان دي. د هغه اهوازي کارګر په ياد پاتې کيدم چې د دوبي په ۵۰ درجو کې د بټۍ په شاوخوا د يوې مرۍ ډوډۍ پيداکولو لپاره څومره کړاونه زغمي او دهغــه بيوزلــو ماشــومانو په فکر وم چې د ۴۸ کال په ژمي کې د ګرمــو جامو نه درلودلو له کبله د مدرســې په لار کې يخ شــل کړي ول او په لســګونو بزګران چې هر کال د تبريز شاوخوا سيمو کې د يخني له کبله ژوند له لاســه ورکوي. ځان ســره مې ويل د دې ځای ربړونې د خلکو د هميشــه ناکو تدريجــي ربړونو په پرتله ډيرې کوچنۍ بيلګــې دي. ډول ډول ربړونې مې له نظره تيرولې، دا چې د

بیوزله خلکو ژوند مې لیدلی وه، کله مې چې په نظر کې تر سترګو مجسم کیدل، لیدل مې چې په دې ځای کې هیڅ داسې ربړونه نه تر سترګو کیږي کوم چې د خلکو دایمي ژوند سره نه پرتله کیږي. دغه خلک چې ټول راته خواږه او ګران وه او همداسې به یې ولرم. تر څه مودې وروسته، ښه نه پوهیږم څومره وخت به تیر شوی وي، پیره‌دار دروازه پرانیسته. پیره‌دار آشنا وه، له هغه کسانو څخه وه چې ما مخکې د هغوي د محبت په هکله ویلي وه. هغه ته مې مخکې ویلي وه چې بلاخره به د دغه ښځکیو چاره وکړم. کله یې چې سترګې په ما ولګیدې، په صمیمانه ګیله مندي یې وویل: «تا ته مې نه وه ویلي چې دا کار مه کوه؟» لږ یې بهر وکتل یو بل پیره‌دار چې دوست یې وه وسپارلم تر څو مواظب اوسي بیا په خپله راغی د پښو رسی یې راته سسته کړه. تر مازیګره څوک سلول ته رانغلل. کله ناکله پیره‌دارانو له سوري څخه کتل. په دې موده کې یو ځل د ښکنځلو چیغې او د څپېړو اوازونه زما تر غوږونو ورسیدل. موتور چې خاموش شوی وه، بیا یې آواز پورته شو. زه د غږونو د لټون په هلو ځلو کې شوم چې وګورم د څه لپاره او له کومې دستګاه څخه دغه اوازونه راپورته کیږي. (وروسته پوه شوم د هوا کش غږ وه چې کله کله د ځمکپوړ د هوا تصفیې کولو لپاره په کار اچول کیږي) د څپېړې او ښکنځلو د غږ په اوریدلو مې ځان سره وویل آیا دا هماغه تهکاوی ده چې همیشه په کې ملګري ربړوي او یوه شېبه یې ارام نه پریږدي؟ هماغه ډار اچوونکې ځمکپوړ چې خپله د هغې په هکله خبرې کوي؟ مازیګر یې د زندانیانو دروازه پرانیستله. د شکري په نوم یو ځوان پیره‌دار (د اطلاعاتو د خود اداري پیره‌دار) سلام راکړ او زما د حال پوښتنه یې وکړه. په ډیرې بې پروایې مې ور وکتل. هغه پوښتنه وکړه: «اشرف خانم څه پیښه شوي؟ دلته یې ولې راوستې یې؟» ومې ویل: اوس نو زه باید ستاسې د کارونو ګزارش درکړم؟ ویې خندل او ویې ویل: «نه والله اصلاً زه نه وم (البته په یاد یې لرم چې ځینې له دغو څخه هیڅکله په دغه شان کارونو کې برخه نه نیسي، لکه د فرید په شان مهربان او منطقي دي ). ما اوریدلي چې تا یوه ښځه وهلې، ما وویل نه بابا حتماً دا درواغ دي....» له یو پلوه چې د ورمیږ او لاس و پښو هډوکي مې له درد څخه وچ شوي وه او له بل پلوه په داسې حال کې چې لاسونه او پښې مې تړلي وه او د یو اسیر حالت مې درلود یو مزدور سره ارامه خبرې کولو ډیره نا ارامه کولم، غوښتل مې چې زر بهر لاړ شي نږدې راغی لاسونه یې په رسی ووهل او اتکړیو ته یې وکتل، ویې ویل: «ډیر درد درله کوي؟» ځواب مې ورنکړ. د سر په ټکان مې ځواب ورکړ چې پوښتنه د بې مانا ده. راغی او رسی یې سسته کړه. او همدا ډول یې دلاسونو اتکړۍ هم سستې کړلې. غوښتل یې وواېي چې امر یې تر لاسه کړی ندی او دا د هغه خپله ښیګڼې ده. ویې پوښتل: «دا رنګه هوسا نده؟» ومې ویل هوساینه کومه مسئله نده خو که چیرې زه خپل نظر ورکړم، وایم چې ټول خلاص کړې. ما یو مزدور، د خلکو یو دښمن په سوټې وهلی او دا زما حق وه چې دا کار وکړم. هغه څوک چې باید په

بند کې واچول شي، هغه د خلکو دښمنان دي نه زه. زړه مې غوښتل ووايم امر درته شوی چې رسی او اتکړی سستې کړې. دغه خبره مې هغه ته وکړه او د ازمايښت لپاره مې وويل: اتکړی مې خلاصې کړه او د تخت غاړې ته يې وتړه. ښکاره وه چې د خپلې ارادې له مخې هيڅ کار نشي کولی. تر نيم ساعت وروسته د هماغه مخکني پيره‌دار په نقش کې بل زندان ساتونکی چې هغه هم يو ځوان وه د ګلشاهي په نوم راغی. ويې ويل: «لاسونه يې درله ولې د تخت له پاسه تړلي دي؟ په دې ډول خو ډېر درد کوي پريږده چې خلاص يې کړم او د تخت غاړې سره يې وتړم» اوس هم نه پوهيږم چې په هغه موقعيت يې ولې زما په وړاندې دا ډول نقش لوباوه. ايا دغه زندان ساتونکو واقعاً په خپله اجازه دغه کارونه سرته رسول؟ وروسته دغه دوه کسانو چې تصور يې کړی وه کولی شي په اصطلاح د خپل محبت‌آميزه چلند له مخې زما نظر ځانته جلب کړي، هڅه يې کوله تر پايه دغه ډول چلند ته دوام ورکړي. هغوی غوښتل چې دغه ډول چلند څخه ناوړه ګټه پورته کړي.

دغه بې همته او هرزه مزدورانو چې حتی په زندان کې يې هم نشو کولی د يو مبارز چريک په وړاندې د خپلې هرزګۍ مخه ونيسي، کله به يې د اتکړيو د تړلو او خلاصولو په وخت کې ځنډ څخه کار اخيست په دې کار يې غوښتل خپله هرزګي په ډاګه کړي ما به په غره سترګو او د لاسونو په چټک حرکت په تحکُم سره ويل: لاسونه د پورته ونيسه! او د دې مخنيوی مې کاوه چې حتی يوه شيبه هم د خپلې هرزګي په فکر کې پاتې شي. پايله يې هم مثبته وه.

# د دویم څپرکي توضيحات

۱ – په ايران کې د وسله والې جګړې په پيل کې ملګرو يوبل د امپرياليزم تر واکمنۍ لاندې د ټولو اتلو مبارزينو د يادونو د ژوندي ساتلو لپاره دهغوی په نومونو يادول، د دې خبرې بل دليل امنيتي ملاحظات وه. ملګری جواد سلاحي، د مشروطيت د جګړې په دوران کې د غښتلي مبارز حيدر عمو اوغلي په نوم ويل کيده.

۲ – د دې شـمارې توضيح د (لمړي څپرکي) په دويمه شـماره کې د ځنګل د شـهيدانو په لړ کې راغلی ده.

۳ – نواب صفوي: د اسلام د فداييانو د ډلی فعال غړی وه چې په ۱۳۳۲ کال کې په ګوليو وويشتل شـو. هغـه د لمـړي وزيرهُژبـر د اعدام اجرا کوونکـي وه. د هغه وخت وزير حسـنعلي منصور هم په ۱۳۴۱ کال کې د محمد بخارايې په لا س چې د همدې ډلې غړی وه اعدام شو.

۴ – وان تروې: د ويت کنګ انقلابي کارګر په ۱۹۶۸ کال کې د امريکا د وخت سفير جان د سوء قصد په تور ويتنام کې چارماري شو.

د وان تـروې د شـعر څـو پاړکـې پـه دې کتاب کې راغلي چـې د وخت په تيريدلو د ايـران د زياتو انقلابيونـو پـه ژبه جاري شـول. حتی په اسـلامي جمهوري رژيم کې هم د سـلول پـه ديوالونو وليکل شـول. له دې کبله لازمه ده توضيح يې په لنډه توګه لاندې وليکم او د شـعر بشـپړ متن يې په دې ځای کې ورزيات کړم.

دغـه شـعر، ويتنامي شـاعر توهوئـو د نګوين وان تروی په وصف کې چې د ويتنـام د اتلو خلکو له مبارزينـو څخـه وه ويلـی دی. د دې شـعر متـن ملګري بهمـن آژنګ په ۴۹ کال کې په پارسـي ژبې وژباړه. وروسـته ملګری نابدل چې پخپله انقلابي وه، په هماغه وخت کې هغه د شـعر په بڼه راووړ. کمونيسـت کارګـر وان تـروې (الکتريسـين) وه چـې د امريـکا د وخـت د دفاع وزير د تـرور په تور ۱۹۶۴ کال کې ونيول شو، په پای کې وروسته تر ډير قهرمانانه مقاومت د «چي هوا» په ربړونه تون کـې د اکتوبـر په ۱۶د رژيم د مزدور «نګودين خان» په لاس تيرباران شـو. وان تروې د تيرباران په شيبو کې په بې پروايې سره ترانګه له سترګو خلاصه کړه او خپله مينه يې خپل انقلابي هيواد سره په دغه ټکو کې بيان کړه: «غواړم د خپل ژوند په وروستنيو شيبو کې د خپل هيوا ننداره وکړم» او بيا د هرې مرمۍ آواز سـره «مړ د وي نګودين خان»، «ژوندی د وي هوشـي مين، ژوندی د وي هوشـي

مین، ژوندی د وي هوشـي مین» د رسـا غږ انګازې په فضا کې خپرېدې. هغه وخت چې وان تروې په اسـارت کې شـپې ورځې تیرولې د هغه د حماسـه زیږنده مقاومتونو په ویاړ، د ونزویلا چریکانو د انترناسیونالیسـتي پیوسـتون له مخې اړ شول د وان تروې د ازادولو په خاطر چې د ویتنام د خلکو د اتلوالی سمبول دی د امریکا یو جنایتکار ډګروال برمته کوي او اعلانوي که چیرې وان تروې تیرباران شي، یو ساعت وروسته به هغوی هم نوموړی ډګروال (سرهنګ) انقلابي اعدام کړي.

## د وان تروې په یاد

**شېبې دي چې دوران جوړوي**
**داسې خبرې چې اوازه یې زړه راکښونکي ده**
**هغه کلمې چې له سندرو هم زړه‌راښکونکي دي**

* * *

**وان تروې ته مړ شوی یې؟**
**نه، نه، تر ابده ژوندی یې.**
**خلک به څنګه تا هیروي!**
**مرګ ستا شونډې وګنډلې**
**خو ستا چیغه:**
**«خبرې مې په زړه کې وساتئ»**
**تر اوسه انګازې خپروي**
**تر اوسه ښایسته او ځلانده دي**
**ستا د سترګو بریښنا، د ګوند په لیک**
**که وروسته تر دې زرګونه کالونه تیر شي**
**د خلکو په زړه کې به پاتې وي**
**د مني په سهار د «چي هوا» غولي کې**
**د دوه ساتونکو منځ کې تللې**
**او کشیش تا پسې روان وه**
**پښې د له درده تاویدلې**
**مګر ستا مغرور سر هسک وه**

**د جامو رنګ د سپین، د جامو رنګ د سپېڅلی**
**ډنګر بدن د تر مرګ غښتلی.**
**جلادان یو بل پسې کتار ودریدل**
**روزل شوي تالي ختې**
**د مزدورانو دوه کتاره،**
**د وسلې په څوکو کې نیزې.**
**ته دروند او متین روان وې**
**او کتل د ارام،**
**ګوا چې ته هغه ورځ قاضي وې.**

* * *

**د هرې شنې پاڼې په زړه کې تازه غوټۍ،**
**له سره ژوند غوړیږي**
**ستا د وي هغه خاوره،**
**هغه مځکه چې آزادي غواړي**
**همدارنګه ستا د وي ستا هغه بدن،**
**چې هیله یې ده خلاصون**
**او تا چیغه کړه:**
**«ما څه جنایت کړی»**
**خو ته یې په دار وتړلې، او ستا سترګې هم،**
**چې ونه وینې د لس توپکو خولی.**
**او تا چیغه کړه:**
**«جنایتکاره امریکا ده».**
**بیا د په غوسې سره له سترګو،**
**لیرې کړې تړانګې.**
**ستا د سترګو بریښنا، هغه ټول سپوټکي**
**تا په مرګ داسې منګولې خښې کړې**
**ستا ټول وجود د بې پایه اور لمبه وه**
**بیا یې د دار رسۍ ټینګه وتړله**

**هغه ناولي له ويرې لړزيدل**
**او ستا شونډې له کرکې سوځيدلې**
**بايد د بلشويکانو په شان وجنګيږو**
**اور به په زړه څه وکړي، زموږ اور د ګوليو اور!؟**
**لږ ځنډ لا تير شوی نه وه چې:**
**لمړی کتار په ګونډو شو**
**په هماغه ځو شيبو کې**
**ستا چيغه له سره پورته شوه:**
**مرګ په يانکي، مرګ په مزدورانو، مرګ پر نګودين خان!**
**ژوندی د وي هوشي مين، ژوندی د وي هوشي مين، ژوندی د وي هوشي مين!**

* * *

**په داسې جاويدانه شيبو کې تا درې ځله،**
**«عمو» وويل.**
**بيا هغه وخت د يانکي وسلې مرمۍ واورولې**
**ته ولويدې او بيا راپورته شوې چې:**
**ويتنام هيڅکله نه مري.**
**دغه آواز د پورته کړ.**
**قبر د په وينو سور شو،**
**خو ستا له سينې کوکارې پورته نشوې.**
**ميړنی وه هغه کس چې کوکارې يې له پاکې سينې پورته نشوې**
**ميړنی وه هغه کس چې د ملک په شان په خاورو کې بيده شو**
**او هغه ځلانده خاچ (صليب)**
**چې کشيش ستا په څنګ کې کيښود**
**څه اړتيا وه!؟**

* * *

**ملګريه که څه هم اوس مړ شوی يې؟**
**ستا تُند آواز د بريا په خاطر**

**د هرې وینې ځواب د وینې په بدله**
**همداسې وه چې پارتیزانانو**
**یرغمل کړ په هماغه ورځ په کاراکاس کې.**
**جنایتکاره یانکي.**
**اوس مړ شوی یې، ته نه وینې**
**جنوب په سور اور بدل شوی**
**خو هیڅ اور ستا د سینې له اور څخه**
**ډیر ځلانده ندی**
**هغه شهاب چې ستا له وروستۍ سلګۍ پورته شو:**
**خبرې مې په زړه کې وساتئ**
**ملګریه وان تروې، ستا خبرې په زړه کې ساتو**
**انسان باید سرلوړی زیږد وکړي**
**او باید سرلوړی مړ شي**
**او دښمن ته خپل سر ټیټ نکړي**
**او د خلکو د آزادي په لار کې**
**له خپلې ټولې شتمني تیر شي**
**لکه ستا په شان**
**کارګر سره یو ځای.**

۵ – جګړن (سرګرد فرید) د دښمن له چټلو او کثیفو مزدورانو څخه یو تن دی چې د جنایتکارانه کړنو لپاره یې په امریکا کې د ربړونو او تحقیق کولو (بازجویې) زده کړه سرته رسولې وه. د ۱۳۵۰ کال د تلې په میاشت کې کله چې په هلکوپټر د بریښنایې برجونو چې د هغوی څو برجونه د خلکو د فدایې چریکانو له خوا منفجر شوي وه په پلټنې بوخت وه، هلکوپټر یې نسکوره او مړ شو.

۶ – شهین توکلي: آزادي پاله مبارزه، سره له دې چې شودې خوره ماشوم یې درلود، په چریکي فعالیتونو کې یې پیاوړی ګډون درلود. کله یې چې د ۱۳۵۰ کال د غبرګولي په دریمه خپل ټیمې کور ته بدلون ورکاوه د پولیسو تر حملې لاندې راغله او ونیول شوه. شهین د ۱۳۵۱ کال د ورې په میاشت کې محاکمه او د پنځه کلونو په بند محکومه شوه.

د همدې څېرکې د ۲۰ شمیرې توضیح ته رجوع وکړئ

۷ – حمید توکلي: د خلکو د فدایې چریکانو د سازمان غړی وه. د ۱۳۵۰ کال په پسرلي کې ونیول

شــو او د ډېرو ربړونو تر زغم وروســته د ۱۳۵۰ کال دکب په میاشــت کې په ګولیو شهید (تیرباران) شو.

۸ – عباس جمشــیدي رودباري: د خلکو د فدایې چریکانو د پیاوړو غړو څخه وه. هغه دوه وارې په کورکې د پولیســو له محاصرې څخه په تیښــته بریالی شــوی وه. کله چې د ســاواک غړو وپیژنده، د وسله والې شخړې په جریان کې ټپي او بیهوشه ونیول شو. پولیسانو یې د ملګرو د نیولو په خاطر هغه شــهید اعلان کړ، پداســې حال کې چې هغه اوس هم د جنبش د اســرارو د نه اشواکولو په خاطر د ډېرو دردناکو وحشیانه ربړونو لاندې قرار درلود.

د ملګري عباس جمشیدي رودباري د متن د ادامې په اړوند باید ورزیات کړم چې هغه په بیساري توګه دوه کاله د شــاه د رژیم تر تدریجي ربړونو لاندې نیول شــوی وه. خو دښــمن د ډول ډول غیر انســاني ربړونو په کارولوســره ونشــو کړای د ملګري انقلابې شــخصیت ګډوډ کړي. بالاخره یې په مذبوحانه توګه د هغه په وژلو ځانونه ارام او بسیا کړل.

۹ – حسن نیک داوودي: په ۴۸ کال کې ونیول شو او د ډېرو سختو ربړونو له کبله چې ورکړل شوې ول، په زندان کې په شهادت ورسید. هغه د خلکو د فدایې چریکانو له پیاوړو سمپا تیزانو څخه وه.

۱۰ – ګروه جزني: د مخفي (زیر زمیني) فعالیتونو لمړنۍ کمونیســتي ډله وه چې په ایران کې یې د وسله والې مبارزې له خط مشې څخه کار واخیست او عملاً یې د چریکي واحدونو په سازمان ورکولو لاس پورې کړ. نوموړې ډله د ۴۸ کال په ژمې کې د پولیســو د نفوذ له کبله کشــف شــوه او یو شــمیر غړي یې ونیول شــول. دغه ډله د «بیژن جزني» په نوم چې د مرکزیت له غړو څخه وه د جزني ډلې په نوم ونومول شــوه.علي اکبر صفایې فراهاني او محمد صفاري آشــتیاني د دغې ډلې پاتې کســان وو چې د۴۷ کال په ژمي کې وروســته د خپلې ډلې له کشــف کیدو څخه د الفتح جبهې په تکل شــول. د هغوی د فعالیتونو یادونه مخکې وشوه.

۱۱ – مسعود احمد زاده: د خلکو د فدایې چریکانو د سازمان د مرکزیت غړی وه. په ۱۳۵۰ کال د وعدې په تمځای کې ونیول شو او خپلو پنځه ملګرو سره یو ځای د ۱۳۵۰ کال په ژمي کې تیرباران شــو. «وســله واله مبارزه هم اســتراتیژي او هم تاکتیک دی» د مسعود احمد زاده اثر دی کوم چې د سازمان د خط مشې ځانګړتیا په ډاګه کوي.

۱۲ مجید احمد زاده: د خلکو د فدایې چریکانو د سازمان فعال غړی وه چې د ۱۳۵۰ کال په دوبي کې ونیول شو او د هماغه کال په ژمي کې، خپل میارز ورور مسعود احمد زاده او نورو څلورو ملګرو سره یو ځای په کولیو شهید (تیرباران) شو.

۱۳ – علــي اصغــر بدیع زادګان (۱۳۵۱ ۱۳۱۷ ): د «ســازمان مجاهدیــن خلق ایران» د مرکزیت غــړی وه. د ۱۳۵۰ کال پــه دوبــي کــې، په ســازمان کې د پولیســي عنصر د نفوذ له کبله د ســازمان یو شــمیر نورو غړو ســره ونیول شــو. هغه ډېرو ســختو ربړونو لاندي تر زړه ور مقاومت وروسته په شهادت ورسید.

پیاوړی مجاهد علي اصغر بدیع زادګان چې د حوزې له خوا نیول شــوی وه تر ډېرو ســختو ربړونو

لاندې راغی. د هغه د شـهادت په هکله صحیح روایت دا دی چې هغه يې وروسـته تر ډېرو ربړونو په ۵۱ کال کې تيرباران کړ.

۱۴ – د کتاب د لمړي څپرکي په ۳ شماره کې توضيح شوی دی.

۱۵ – همايـون کتيرايـي: د «گـروه ارمـان خلق» د مرکزيت غړی د ۵۰ کال د تلې په مياشـت کې تيرباران شو. د دښمن تر ربړونې لاندې دغه زړه ور مبارز مقاومت هيريدونکی ندی.

۱۶ – سيروس سپهري: د خلکو د فدايې چريکانو د سازمان غړی چې د ۵۰ کال د تلې په مياشت کې د يو ټيمي کور تر محاصرې وروسته، پداسې حال کې چې سر يې ټپي شوی وه، په زړه ورتوب سره يې په دښمن د مرميو ډزې چلولې تر څو د هغه دوه ټيمي ملګري (فرخ سپهري او شاهرخ هدايتي) وکولـی شـول د محاصـرې له کړي څخه ځانونـه بهر کړي. په دغې محاصرې کـې چې ډير کلک ټپي شـوی وه ونيول شـو، او د دښـمن وحشيانه ربړونو سره مخامخ شو چې له شدت څخه يې قهرمانانه په شـهادت ورسـيد دښـمن د هغه تر نيولو، ربړونو او وژلو، شپږ مياشتې وروسته په بې شرمي سره اعلام کړه چې سيروس سپهري مامورينو سره په نښته کې د کوی کن په سيمه کې وژل شويدی.

۱۷ – شـاهرخ هدايتـي: د خلکـو د فدايـي چريکانـو د سـازمان غړی وه چـې د ۵۰ کال د لړم په مياشـت کې ونيول شـو. هغه د ډېرو سـختو وحشـيانه ربړونو له امله په سـترګو وړوند شـو، پرته له دې چې دښـمن ته ډير کوچني اطلاعات هم ورکړي، په اتلوالي سـره شـهيد شـو، دښمن وروسته تر هغه چې د ۵۰ کال په ژمي کې د خلکو د فدايې چريکانو له خوا وټکول شوی وه، له ډير ې غوسې او بې وسـي تر نيولو څلور مياشـتې وروسته په سپين سـترګي توب سره اعلام وکړ چې شاهرخ هدايتي پـه بانـک بانـدې د يو بريد په ترڅ کې وپيژندل شـو، اوس تر څارنې لانـدې دی. او بيا تر يوې اونۍ وروسـته اعلاموي چې هغه د پوليسـو سره په يوې نښته کې ټپي او ونيول شو او ملګری يې سيروس سپهري هم ووژل شو.

۱۸ – اصغر عرب هريسي: د تبريز د ځانګې د خلکو د فدايې چريکانو د سازمان غړی وه. هغه د تبريز د پنځمې ناحيې (کلانتري) په بريد کې برخه درلوده. د ۵۰ کال د غبرګولي مياشت کې ونيول شو. د سختو ربړونو په وړاندې تر زړه ور مقاومت وروسته د ۵۰ کال په ژمي کې تيرباران شو.

۱۹ – محمد تقي زاده (۱۳۵۰ ۱۳۲۸): د تبريز د ځانګې د خلکو د فدايې چريکانو د سازمان غړی وه. هغه د ډيرو دردوونکو ربړونو تر زغم وروسـته د ۵۰ کال په ژمي کې تيرباران شـو. هغه د تبريز په پنځمې حوزې (کلانتري ) باندې د بريد له ګډونوالو څخه وه.

۲۰ – رقيـه دانشـګري: د زړه ورو مبارزينـو لـه ډلې څخـه وه چې د ۵۰ کال پـه دوبي کې د ډيرو سختو ربړونو تر زغم وروسته په لس (۱۰) کالو بند محکومه شوه. د تبريز د ځانګې د خلکو د فدايې چريکانو د سازمان غړی وه.

د شـهين توکلـي او رقيه دانشـګري په هکله کـوم چې پدې کتاب کې مې په کراتـو د هغوی نومونه اخيسي پدې ځای کې ناچاره يم ووايم، دغه دوه کسان د مبارزې په وروستيو شرايطو کې چې د پرګنو د پاڅون او د شـاه د رژيم له نسـکوريدو سـره منځ ته راغلي وه، هر يو په يو ډول د خلکو د فدايې

چریکانــو لــه کتار ځخه ووتل. په ځانګړې توګه په ډیر افســوس باید د رقیه دانشــګري د نوم یادونه وکړم چې وروســته د زندان له آزادي څخه زموږ په ســازمان کې خائن او سازشــکاره جریان ســره د ګډون له لارې همکاري وکړه او کرار کرار خپله په هماغه جریان کې حل شوه. د دغه جریان رهبران چې وروســته د «اکثریت» تر عنوان لاندې وپیژندل شــول، په اګاهانه توګه یې کوښــښ کاوه د ایران د خلکــو د فدایې چریکانو ســازمان د واکمنې ارتجاع لاس مچولــو ته وهڅوي. د «اکثریت» رهبري زمــوږ د ځوریدلــي پرګنــی په ماتې او په ایران کې د جنایتکاره او نوم بدي اســلامي جمهوري رژیم په واکمنــۍ کــې ډیر اغیزناکه خائنانه نقش ولوباوه. دغه ډول عناصرو ســره د رقیه دانشــګري یو ځای کیدل له هماغه پیل څخه ځان په وحشتناکو شرایطو کې لتاړ کړ. هغه وخت چې ما یو لیک د هغې په امضاء (د فرخ نګهدار د امضاء تر څنګ ) په ۶۰ کال کې «د ځوانو هلکانو او انجنو» اعدام د اسلامي جمهوري رژیم د جلادانو په لاس د «اکثریت» په نشریه (کار ۱۲۰ ګنې) کې ولوسته ډیره شرمناکه لیکنــه وه چــې پرتــه یې له کرکې او انزجار څخه نور څه منځ ته نــه راوړل. زما لپاره ګرانه وه چې باور وکړم دا هماغه رقیه ده چې ما تر مخه پیژندله. هغه وخت چې ما هغه پیژندله، په زړه مهربانه جنۍ وه، خو غړنده او سرسري کاتو ته یې همیشه په تشویش کې وم. ډیر ځله مې ځان سره ویل آیا شونې ده چې هغه یوه ورځ په ځان بســیا شــي؟ آیا کولی شــي د ایران د ســتمدیده خلکو، د سیاسي بندیانو او شهیدانو د ځوریدلو کورنیو څخه بخښنه وغواړي او بیا په داسې کارونو لاس پورې کړي چې عملاً خپله پښیماني خلکو ته ثابته کړي؟ یا اوس ډیر ناوخته شویدی؟ ښایې هغه عاطفي احساس چې ما همیشه د هغې په هکله درلود د دې ډول هیلې لامل شویدی.

دریم ښپرګی

# د ښاروالۍ ځمکپوړ او
# په انفرادي سلول کې دڅوند خاطرات

# د ښاروالي ځمکپوړ

د اطلاعاتــو د اداري ودانۍ درې پوړه لري. پــه هغه کال چې زه هلته وم، پورتنی پوړ د تذکرو او د پاسپورټ اړوندو چارو ځای وه چې ګڼ شمیر کارمندانو په هغه ځای کې کار کوه. د زندانیانو کوټې، د ربړونــې کوټه او د عملیاتو د ریيس کوټه پــه دویم پوړ کې وې. دغه کوټو څخه پخوا د اطلاعاتو د اداري د مامورینو لپاره ګټه اخیستل کیده خو په هغه کال د زندانیانو د زیات شمیر له امله هغوی ته ځانګړې شوی وه.

لاندینی پوړ ځمکپوړ (زیر زمیني) وه چې پخوا د انبار په بڼه ترینه ګټه اخیســتل کیده خو په هغه کال یې هغه ځای په ســلولونو تقســیم کړ، نمناکه او تیاره دروازې یې په هغو کې جوړې کړې وې. د ســلولونو اندازې د ۱\۵ په ۲ مترو کې وې. په ځینو ســلولونو کې ټغر هم غوړيدلی وه. په ځینو کې تخت اینښــودل شــوی وه چې زندانیان به یې هغوی سره تړل، سلول، کوچنۍ اوسپنیزه دروازه درلوده چې په پورتنۍ برخه کې یې ګرد ســوری داســې جوړ شوی وه چې د بهر له خوا تړل کیده. د دروازې په ســر یوې کوچنۍ جالۍ کې لږ رڼا والا چراغ لګیده. ســلولونه د ځمکپوړ په دواړو څنډو کې شــپږ کتاره جوړ شــوي وه چې پیره‌داران یې په منځ کــې تګ راتګ کوي. دغه انګړ (محوطه) چې په کې ناســته کوي د یوې لويې دروازې په واسطه له مربع شکلي سالون څخه جلا کیږي. په سالون کې یوه غټه کوټه د پیره‌دارانو خوب‌ځای وه او دوه کوټې د زندان ســاتونکو لپاره وې چې وروســته د ښــځو لپاره ځانګړې شوې.

یوې لويې ښیښــه‌ای دروازې دغې محوطې څخه بهر ته لار پرانیســتله. له بلې خوا د څو پوړیو په پورته کیدو دویم پوړ ته لار جوړه شوې وه. اوس یې بهرنی انګړ هم په سلولونو ویشلی ده. په ټوله کې یې ۲۵ یا ۲۶ ســلولونه جوړ کړي چې د دغې محوطې یوه برخه د کمیټې لپاره په پام کې نیول شــوې. په هر یو ســلول کې یو زنداني ځای درلود. په هغو کې ځینې ملګري پداســې حال کې شــاګانې یې ســوزیدلې وې، لاس ماتي، پښې ماتي اوسپنیز تختو ســر تړلي وو. ټول وخت پیره‌دارانو په ځمکپوړ

کـې ګزمـې وهلې او زه هغه وخت چې خپل موقعیت څخه خبره شـوم، وپوهیدم چې پدې ځای کې به پیره‌دارانو سـره په خوا کې یم. د سـلول هرې خوا ته مې وکتل خوشحاله شوم. تر نیولو دوه میاشتې وروسته په لمړي ځل یوازې شوې وم او دا یوه نیکمرغي او غیر منتظره بخښنه وه! ځانته او ځاتنه وم پرته د پورتنې ژوند له قیل و قال څخه، پرته د ښـځکیو له څارنې څخه. د ماښـام په وخت یې لاسـونه راخلاص کړل، د ماښام ډوډۍ مې وخوړه. څو دانې خام زردالو یې د میوې په توګه راوړي وه چې البته ما ته عجیبه وه. لمړی مې فکر وکړ چې میوه د زندان سـاتونکو ده، غوښـتل مې قبول یې نکړم، خو وروسته مې ولیدل چې په اصطلاح د زندانیانو جیره ده. آخر دوی خو د زندانیانو د ویټامین پوره کولو په فکر کې هم دي! وروســته یې چې څو دانې خوسا شـوي بادرنګ، تریو شوې هندوانې او رژیدلي انګور راکول. شـپه شـوه، غوښــتل مې ټټی ته لاړه شم. انتظار پاتې شــوم تر څو پیره‌دار د دروازې له سـوري څخه وګوري. سر ته مې ټکان ورکړ چې متوجه شو دروازه یې پرانیستله. ومې ویل غواړم ټټی ته لاړه شـم، څه یې ونه ویل. دروازه یې بیرته وتړله او ولاړ. نږدې نیم سـاعت وروسته دروازه خلاصه شـوه. د ښـځکې آمرانه آواز مې تر غوږو شـو چې پیره‌دار ته یې وویل: «لاسونه یې خلاص کړه چې راشـي» کله چې سلول څخه بهر شوم، غوښتل مې شـاوخوا په ځیرکي سره وګورم چې خپل موقعیت په سـمه توګه وپیژنم. خو تر شاوخوا مې یو شـمیر پیره‌داران راټول شول او ښځکي هغوی ته وویل: «کلکه یې ونیسـئ» او هغوی زه دومره کلکه نیولې وم، وایې به که لږ مې لاسـونه سسـت کړي زه به ډیر ژر تیښــته وکړم. پخپله ښـځکی هم تر ټولو د مخه په لاره شوه. پدې ډول تشریفاتو ټټی ته ولاړو.

(د ښاروالی د ځمکپوړ اټکلي نقشه)

پدې واټن کې مې هڅه کوله لاسونو او پښو ته په ټکان ورکولو سره پیره‌داران یوې خوا ته کړم. د ټټي دروازې ته چې ورسیدو، پیره‌دارانو لاسونه سست کړل. شرمناکه حالت یې درلود، غوښتل یې ټټي څخه لرې لرې ودریږي. خو ښځکۍ امر ورکړ چې خپله تر ټټي پورې ما سره لاړ شي او په بې شرمي سره خپله او څو تنو پیره‌دارانو سره د دروازې په مخ کې کتار دریدلي وو. په تحقیر آمیزه آواز یې غږ کړ: «ژر کوه!» پیره‌دارانو ته مې وویل یوې خوا ته شئ! او ښځکۍ چیغه کړه: «نه خیر همدلته دریږي» ښځکۍ ته مې چپ چپ وکتل او په غوسه مې وویل: پیره‌دارانو ته ووایه چې لرې لاړ شي! او هغې چیغه کړه: «همدلته چې دي بیا به هم همدلته وي باید په همدې ډول ټټي ته راشئ. ته د دې وړتیا نلرې چې په درناوي درسره چلند وشي.» سترګې مې ورته په مخ ونښلولې او له کرکې څخه مې په ډک حالت کې وویل: ایله ډمې ښځکۍ! ګومان کوې چې زه پدې کارو ځوریږم.؟ ډیره غوسه شوې وه. ناري سوري یې کړې او پیره‌دارانو ته یې وویل: «اصلاً نه غوارم. یا به په همدې ډول ټټي ته راځي یا یې اصلاً نه راولم.» سلول ته بیرته ستنه شوم. بیا یې لاسونه او پښې راوتړلې او په خپل حال یې پریښودم. څه وخت مې د اتل یاراني[1] په یاد تیر کړ چې دښمنانو په یو کوچني سلول کې اچولی وه او پرته له یوې ټوټې وچې ډوډۍ یې دغه ستر انقلابي ته نور هیڅ ډول خواړه نه ورکول. بیا دروازه خلاصه شوه. دا ځل دویمه ښځکۍ وه. په احمقانه غرور سره یې د اتکړیو کنجي پیره‌دار ته ورکړه. ویې ویل: «خلاص یې کړه» پورته شوم دوه پیره‌دارانو او ښځکۍ سره ټټي ته ولاړم. دا ځل معمول سره سم ښځکۍ د ټټي دروازه نیمکښه پریښوده او خپله د دروازې په مخ کې ودریده. کله چې سلول ته د ننه شوم د رسۍ (طناب ) په ځای یې پښې راته په زولنې (پابند) وتړلې چې د رسۍ په پرتله ډیرې راحته وې. او اتکړۍ یې هم سسته کړله. د شپې، نیک طبع او فرید راغلل او ویې پوښتل ولې مې دغه کار کړیدی. په غوسه او تهدید یې خبرې کولې او ویل یې: «خپله ښځکۍ.... پرینښودم که نه بلا مې درله په سر راوسته چې...»

ځواب مې نه ورکاوه، حتی مخ مې هم ورله نه اړوه چې مخونه یې وګورم. پورته شول چې ولاړ شي او نیک طبع چې بالاخره د نیک طبعي له مخې! غوښتل ما وتړټي، د پښو ځنځیر یې واخیسته په تخت یې وار کړ، ښکنځل یې وکړه او ولاړ. د شپې بیده شوم سهار د ټک ټک په غږ چې دیوال یې واهه له خوب څخه وېښه شوم. ټک ټک د څنګ سلول وه چې بندي ملګري هغه دیوال ټکاوه او سلام یې وایه. له ډیر شوق او خوشحالي څخه په جامو کې نه ځایدم. پداسې وضعیت کې چې دښمن د شاوخوا نیولې وي او ته پرته له دښمن څخه نور څه نه وینې، حتی د ټک ټک غږ چې پوهیږې ملګری دیوال وهي هم خوندور او د خوشالي زیږنده دی. سر نه تر پښو غوږ نیسې، ټکټک اورې،

غوارې چې دغه غږ د همیشــه په غوږ کې انګازې پاتي شــي. ملګري په زور سره دیوال واهه غوښتل يې ځواب يې ورکړم،خو څرنګه چې زما لاس او پښــې ترلې وې او ســر مې هم دیوال څخه لرې وه چې لږ تر لږه دیوال په سر ووهم، د پښو څنځیر ته مې ټکانونه ورکول.

د ســبا نــاري (یوه ټوټه وچه ډوډۍ لږ پنیر او یوه غټه چاینکــه خوږ چاي چې مقدار يې تر پورتنۍ کوټې زیات وه ) تر خوړلو وروســته، د زندان بل چوکیدار چې د ســهار له خوا په ټولو کوټو ګرځیده زمــا کوټې ته راغی (چوکیداران او پیره‌داران په ۲۴ ســاعتونو کې یو ځل بدلیدل ). دغه ۴۵- ۵۰ کلن چوکیدار د فرنګ! په نوم تُرکی وه. هڅه کوله تر کوم بریده چې کولی شي دوستانه (خودماني) خبرې وکــړي: «موږ ترکان زیات غوســه‌ناک او قهرجن یو، ډیر ژر له چوکاټــه اوړو» او دا ډول خبرې يې کولې: «ما دغه مســتنطقینو ته وویل، پریږدئ چې اشــرف څو ورځې ما ســره وي. زه کولی شم هغه دومره وروزم چې حتی شاه.... ته لیک ولیکي!»

ټکان مې وخوړ او ومې ویل څه؟ د شــاه لپاره لیک؟! یو وار مې ټول بدن کرکې واخیست او هغه خائن چې دا ډول کار يې سرته رسولی وه تر سترګو شو. څومره بدبختي او حقارت غواړي چې انسان وکولی شي دغه شرم ته غاړه کیږدي! وجود مې له کرکې او نفرت څخه ولړزیده. فرهنګ ته مې وکتل ومې لید چې تر یو ناپوهه حریص بل څه ندی، خبرې کول او استدلال کول ګټه نلري. په بې پروایې مې ځواب ورکړ: بابا څه وایې مالومیږي چې ډیر له چټې وتلی يې... په سپین سترګي توب يې وویل: «بیا به يې ووینې... پریږده چې لږ وخت تیر شي، حقیقت به درله په ډاګه شي.»

د څنګ ملګري پر له پسې دیوال واهه. کله کله به وار د سلول په دروازې لګیده او د ملګري غږ تر غوږو شه چې تشناب ته ځم یا اوبه راوړئ، ساعت څو بجې دي.

څومره ښــکلی چاپیریال وه. ملګرو کولی شول یو د بل غږ واوري او په ځان کې د یووالی او باور احســاس پیداکړي. کولی مو شــول پیره‌دارانو او دښمنانو سره د یوبل د کړو وړو شاهدان اوسو او زه چې پدې ځای کې یواځې وم، ومې کولی شــول ځان تــه برنامه جوړه کړم. د مختلفو موضوع ګانو په هکله منظم ســوچ کول، لاس او ســر ته په ټکان ورکولو ورزش کول، شــعر ویل.... د غرمې په مهال فرهنګ زما کوټې ته راغی. لږ نصیحت! او خبرې يې وکړې. یو بې‌حیا او په ټوله مانا احمق ســړی وه. کله به يې چې فکر وکړ پدې کار کې ګټه شــته. په هیڅ ســپکاوي او رټلو له ځایه نه خوځیده او په ډیرې بیشــرمي او بې‌حیایي يې په هغه کار ټینګار کاوه. هغه یو بریدګی وه چې د شــاتر (قداره) په توګه يې تیر وخت کې په اصطلاح د شاه په رکاب کې تبریز ته سفر کړی وه. هغه يې د ځان لپاره ویاړ باله. د بریدملي ســربیره د معاملاتو د لاربښــوونې په دفتر کې هم کار کوه. د ښځکی په اړه يې خبرې

کولې. له خبرو یې داسې ښکاریده چې غوښتل یې ما او ښځکۍ سره پخلا کړي. زما د تصور خلاف موضوع ساده ونیول شوه. ښځکۍ نه یواځې زما له ډبولو او د شخصیت ځپلو څخه د ناراحتي احساس نه درلود. بلکه هغه ډول چې په ډاګه شوه پدې موضوع یې ویاړ هم کاوه. پدې ډول له شخصې کرکې څخه هیڅ خبر نه وه، په ټولیزه توګه ترټل (تنبیه) کول هماغه سلول ته د هغوی ټاکلی تګ را تګ وه. مازیګر فرهنګ بیا راغی چې ښځکۍ راغلي او د دروازې په مخ کې وایې که / اشرف نه غواړي موږ ته ښکنځلې وکړي سلول ته راځو. بیایې له ما څخه پوښتنه وکړه: «اوس څه وایې، ووایم چې راشي؟».

نه پوهیدم څه ووایم. تګ راتګ یې ما پورې اړه نه درلوده. ما هوډ نه درلود چې ښکنځلې وکړم. د هغوی په کار مې کار نه درلود. فرهنګ ته مې وویل کومه خبره نشته، هغوی د راشي. البته د هغوی راتګ ماته چندان اهمیت نه درلود. هغوی چې موضوع خصوصي او شخصي نیولې وه. چې دا مهمه نــه وه. په هر حال هغوی ســلول ته راغلل. ښــځکۍ راوکتل. ما هم ځغلنده هغــوی ته ور وکتل. پیل یې پدې وکړ چې: «ښــاغلیه فرهنګ ما تل ویلي، اشــرف ماته د خپلې لور په شــان ښکاري. خو هغه عصباني ده» او همداسې نورې خبرې، چې زه نه غواړم تا لالهنده پریږدم او ووایم پلاني وبخښه: ومې ویل: نه عصبانیت پورې یې اړه نه درلوده. ما له پخوا تصمیم درلود.

سر له سبا یې د ورځې څو ګړۍ راته له پښو زولنې خلاصولې، یوه هفته یې دوام وکړ چې په بشپړه توګــه یــې خلاصولې. نور مې کولی شــول چې د څنــګ ملګري ته په دیوال په وهلــو ځواب ورکړم. ملګري د «ای رفیقان» د ســرود آهنګ په دیوال واهه او ما د ســهارناري په وخت چې لاســونه مې خلاص وه هغه ته ځواب ورکاوه.

# یو مبارز هیڅکله یوازې ندی

یو له هغه ورځو تر غرمې وروسته په تخت پرمخې بیده وم. هوا توده وه. شا مې خوله شوه لړلړ سوزیده. هڅه مې وکړه ځان ته ټکان ورکړم او شا مې هوا ته واړوم. له څه مودې وروسته مې وویل پریېږده او د آهنګ په ویلو مې پیل وکړ. هر ډول چې وه دغه شعر: که دښمن پوښتنه وکړي «امیر»* چیرې دی، لاس په سینه ږدم او وایم امیر زما په زړه کې دی، هماغه شان دښمن سره جنګیږي. پدې قالب کې مې آهنګ جوړ کړ همدارنګه د «امیر» په ځای مې د نورو ملګرو: صمد، بهروز، جواد، رحمت... نومونه کینښودل او آهنګ ته مې دوام ورکړ. سر مې د دیوال لوري ته واړوه. پداسې حال کې چې د دیوال په مخ کرښو ته مې کتل، د اتلو ملګرو پویان او پیرو نذیري د جګړې په یاد کې پریوتم. د دې زړه‌ورې جګړې په هکله مې په پورتنی کوټه کې له ښځکی څخه اوریدلي وه او تل مې د هغې په هکله فکر کاوه او په ځان کې مې نوې هلهله احساسوله. هغوی سر بیره پر دې چې د ملګرو په شهادت خوشاله وه (په ځانکړې توګه د ملګري پویان شهادت چې د سازمان د مرکزي کمیټې غړی وه او د سازمان په جوړښت کې یې له هماغه پیل څخه فعال نقش درلود ) کله به یې چې د هغوی په هکله بحث کاوه، هغه تحسین او درناوی چې ملګرو دښمن سره د اتلوالې مقابلې له کبله تر لاسه کړی وه او په هر ځای کې دغه خبر خپور شوی و، نه یې شو کولی سترګې پرې پټې کړي.

دغه مزدوران لمرنی ښاري چریکي جګړې څخه دومره وارخطا شوي وه چې د کېسې په شان ورله د منلو وړ نه وه. هغوی ښکنځلې کولې او ویل یې: «پلار مړي هغه ټولو وسلو او پولیسانو څخه چې برید یې پرې کړی و، نه بیریدل، څومره مقاومت یې وکړ!» په اساني سره مې کولی شول ملګري د سترګو په وړاندې انځور کړم چې څه ډول یې په قاطعیت، غوسې او کرکې سره یې د خپلو سترو ارمانونو په یاد شعارونه ورکول، دښمن سره په جګړه بوخت وو. په ځان کې مې د ژورې خوشالي

---

* ملګری امیر پرویز پویان

احســاس کاوه. د دښمن ســترپیا او ناکامي په څرګند ډول درک کیدله. هغوی د دغه ډول سرتیرو او زړه ورو مبارزینو په وړاندې څه کولی شول؟ حتی که چیرې د مبارزینو د اشتباه له کبله هم د هغوی د کور په پیداکولو بریالي شي، د چریکانو له غوسې ډکې سرې ګولۍ یې په سر اوریږي او په پای کې پرته له بې‌روحه جسدونو بل څه تر لاسه کولی نشي. د پاریدلې کرکې او احساس سره مې مخ واړوه او تر شــوندو لاندې مې وویل: «ای کرکې ته هم په خپل ځای د محبت په شــان سپیڅلې یې!» بیا مې په آواز سره د «کوراوغلي» صفحه ولوستله: سرغړونه، سرغړونه، سرغړونه (عصیان)...

# ملګري څه ډول د سلولونو چوپتیا ماتوي

د غرمې درې بجې وې. د پیره‌دارانو د پیرې د بدلون په وخت شــور ماشــور جوړ شو، د ځمکپوړ فضا شورماشور اخیسې وه. غږ مې تر غوږو شو چې ویل یې: «نوم د څه دی؟»

ګمان مې وکړ پیره‌دار دی چې کوم زنداني سره خبرې کوي. خو پوښتنه بیا درې څلور ځله تکرار شــوه بهر ټیلماټیل زیات وه غږ نه اوریدل کیده «نوم د څه دی؟» و پوهیدم زما د څنګ ملګری دی چې له دغه فرصت څخه ګټه اخلي په لوړ آواز خبرې کوي. د هغه دغه کار مې تر نظره جالبه راغی. زما فکر پدې نه وه رســیدلی چې کیدای شــي خبری وکړو. په خبرو مو پیل وکړ، یوبل ته مو نومونه واخیســتل او د نیولو لامل مو هم یوبل څخه وپوښــتل او دا چې: «دښمن ته خو مو څه ویلي ندي؟» بهر چوپتیا شــوه موږ هم خپلې خبرې غوځې کړې. وروســته ما په شپیلکي (سوت) پیل وکړ. د «ای ملګرو» نغمه په شپیلکي کې ویله. یوه کلکه ضربه په دیوال ووهل شوه. شپیلکی مې قطع کړ، لږ په انتظار کې پاتې شوم وګورم ملګری ولې دیوال ډبوي. بیا مې پیل وکړ، بیا ځلي دیوال وډبیده. پوهه شوم چې نه ښایې شپیلک ووهم خو پوه نشوم ولې... ومې ویل پریږده په بل فرصت کې به پوښتنه وکړم.

لږ وخت تیر شو خپله د ملګري کوټې څخه د شپیلکي آواز اوچت شو چې هغه هم د «ای ملګرو» سرود وایه. زه هم د هغه شپیلکي سره همغاړې شوم او د هغه بل خط ما ووایه. پدې ډول مو سرود ته تر پایه دوام ورکړ. د پیره‌دار د ســرګروپ غږ پورته شــو: «دا بی غیرته څوک دی چې شپیلکې وهي؟! دلته ستاســې د آبې کور ندی!» دګام اخیســتلو غږ مې تر غوږو شــو چې سلول څخه بهر قدم وهي. د ملګري اول وار د دیوال وهلو په علت پوه شــوم. کله چې دهغه لاســونه تړل شــوي نه وه، کولی یې شــول له سوري څخه بهر وګوري، موقعیت وپیژني او بیا شپیلک ووهي. پوه شوم چې دلته پیره‌داران هڅــه کــوي د بندیانو هر ډول اړیکې یوبل ســره پریکــړي او فرد په ســکوت او چوپتیا کې یوازې وساتي. پدغه تپل شوو شرایطو کې مې احساس وکړ چې شپیلک وهل یو ډول مبارزه ده، باید په هره وســیله چې کیږي د دښمن د غوښــتنې خلاف عمل وکړو، سکوت او چوپتیا ونګوو او پدې ترتیب

د ملګرو اړیکي یوبل سره جوړې کړو، یو بل ته روحیه ورکړو. د پیره‌دارانو د پښو آواز لیرې کیدل مو واوریدل، لږ مو صبر وکړبیا مې شپیلک پیل کړ. دا ځل له بل سلول څخه زما د شپیلک ځواب راکړل شو. ډیره خوشحاله شوم. موږ درې واړو شپیلک وهلو ته ادامه ورکړه. د ماښام ډوډۍ خوړلو وخت کې د سلول دروازه پرانیستله شوه، پیره‌دار کنجی په لاس سلول ته را د ننه شو او د لاسونو کړۍ (دستبند) یې را خلاصې کړې. دروازه یې بنده کړه، نورو کوټو ته ولاړ. په لمړي فرصت کې چې ما خپل لاسونه خلاص ولیدل دیوال ته مې ټکونه ورکړل، پدې ډول مې هغه ته د ملګرتیا پیام ولیږه. هغه هم پدې موکه کې په بېړه انقلابي آهنګ د دیوال په ټکولو پیل کړ. د پښو د غږ اوریدو سره چټک له دیوال څخه لیرې شوم. خواړه یې راوړل. په لوښي کې لږ دلده، دوه ټوټې په اوبو کې خوټیدلي بانجان او د سیلو یوه ډوډۍ وه. نور نو د شپیلک وهلو کسان ډیر شوي وو. د ځمکپوړ له هرې څنډې د شپیلکې آوازونه آوریدل کیدل. پیره‌دارانو ته ستونزمنه وه چې د شپیلکی ځای وپیژني، پدې ډول مو هغوی ته ستونزې او کړاونه پیدا کول. کله چې به یې د شپیلکې کسانو لټون کاوه او سلول ته به روان وه، له هغه سلول څخه به شپیلکې قطع شو او له بل سلول څخه به شپیلکې پورته شو.

د حمام ورځ وه. هر سلول به یې یویو پرانیستـه او هر کس به یې د لسو (۱۰) دقیقو لپاره بهر پریښودل او بیا به بیرته راتلل. بهر به نارینه ملګرو خپل سر او ږیره اصلاح کوله. هغوی باید په پنځه دقیقو کې خپل سر او تن وینځي. بیا هم شورماشور او ګنه ګونه وه او ما ته فرصت په لاس راغی چې د څنګ ملګري سره خبرې وکړم، دغه ملګری د ارمان خلق[۲۹] د ډلې غړی وه. د ډلي د مبارزې ګرنلارې(خط مشـې) په هکله مې پوښتنه وکړه. خبرې مو سره وکړې او د ملګرتیا احساس مو نور هم پیاوړی شو. د خبرو اترو وخت زیات نه وه. زموږ خبرو د پیره‌دارنو توجه جلب کړې وه او هغوی د خبرو غږ پسې ګرځیدل تر څو پیدا کړي چې له کومې کوټې غږ پورته کیږي. ملګري د خطر په بڼه دیوال په زور سره وواهه او ویې ویل: «سبا...» خو ملګری بله ورځ بل زندان ته منتقل شو.

# موږ بریالي کیږو

یوه ورځ زما د څنګ کوټې څخه د ښځې آواز تر غوږو راغی. دا د چوکیدارې ښځکی غږ نه وه. د یوې ملګرې غږ وه. ښه وپوهیدم. زړه مې له خوشالي په ټوپو شو. ځان څخه مې وپوښتل، ایا ممکنه ده ملګرې «شــهین» یا «ملګرې «فران»* وي؟ زما اټکل سـم وه. زما د ســلول څنګ ته یې ملګرې شــهین ته ځای ورکړ او ملګرې رقیه هم د دروازې مخې ته په لمړۍ شــمیره کوټه کې وه. ډیر ژر مې ملګرې شهین سره د دیوال وهلو برنامه پیل کړه او بیا تر هغه وخته چې زموږ سلولونه یو د بل څنګ ته وه همیشه مو دغه برنامه درلوده. زموږ دغه کار هیڅکله په یوه بڼه نه تر سره کیده. پوهیدو چې په څه مینه دیوال ټکوو او په څه ډول غواړو د هر شعر مفهوم ځانته ځانته د دیوال په ټکولو درک کړو.

د ســرود دغه ســطر مو «ای ملګرو» په ځانګړې توګه تر نورو زیات د دیوال په مخ واهه: «د مرګ تر پولې یو ګام هم نه په شا کیږو»!

د هــر ســهار په مهال معمــولاً د دروازې ځنځیر د زنــګ په وهلو خلاصیده. یــوه ټوټه ډوډۍ لږ پنیر ســره د هر ســلول د دروازې په مخ کې ایښــودل کیده. د دروازې په غږ له خوب څخه وېښیدو. د پیره‌دارانو مشــر راته او زموږ لاســونه یې خلاصول (پدې ورځو کې یواځې زموږ لاســونه د شپې له خــوا تړل کیدل او د ورځې بــه آزاد وه.) ما به په لمړي فرصت کې دیوال ته کلک ګوزار ورکاوه چې ملګرې شهین ځان ورزش ته تیار کړي. نه پوهیږم چې کوم آهنګ وه، ویل به مو: باید ورزش وکړو، باید ښــیرازه اوســو، ورزش به مو پیل کاوه. د ملګرې شهین آواز مې د سلول تر څنګ اوریده چې په هنجو، هنجو سا اخلي.

په ځمکپوړ کې د درې کســیزې ډلې په یو ځای کیدو سره د هغه ځای چاپیریال محسوس بدلون

---

* «فران» یو ترکي نوم دی چې ملګرې رقیه دانشګري خپلې کورنۍ کې پدې نوم یادیدله.

پیدا کړی وه. یوه شېبه هم چپ نه پاتې کیدو. په هر حال هڅه مو کوله چې په یو ډول د زندان چپتیا ماته کړو. دا مو خپله دنده ګڼله. بالاخره باید په هر ځای او هره بڼه مبارزه دوام ولري.

یــوه ورځ شورماشــور وه پیــره‌داران یوې خوا ته ولاړ و او په خبرو بوخت و، د شــعر ویلو لپاره مو موکه پیدا کړه. د دروازې خوا ته کښیناستو او د «وان تروې» له شعر څخه مو یوه ټوټه زمزمه کړه.

**داسې شېبې هم شته چې دوران جوړوي**
**داسې کلمات هم چې تر آهنګه زړه راښکونکی وي**
**داسې خلک وایې به هغوی**
**پاک زړه څخه حقیقت زیږدوونکي دي**
**داسې کسان چې وی به هغوی**
**په پاک زړه حقیقت څخه زیږیدلي دي**
**«وان تروې» ته مړه شوې یې؟**
**نه، نه، تر ابده ژوندۍ یې**
**خلک به تا څنګه هیروي؟**

ملګرې رقیه پاتې برخه وویله چې:

**تا په مرګ داسې خپړې ښخې کړې**
**او ستا ټول بدن**
**بې پایه اور وه**
**د بلشویک په شان باید جګړه وکړو**
**په زړه به څه وکړي څرنګه چې زموږ اور**
**د مرمۍ اور دی؟**
**ملګرې که څه هم ته اوس مړه یې**
**مګر ستا په غوږ کې شته چې**
**دغه قانون څرنګه غوړیږي**
**د هرې وینې ځواب وینه ده!**

او ملګرې شهین هغه ته تر پایه ادامه ورکړه:

**«وان تروې» زما ملګرې**
**خبرې د خپل زړه ته سپارم**

**انسان باید سرلوړی وزیږي**
**او باید سرلوړی مړ شي**
**د دښمن په وړاندې سر ټیټ نکړي**
**او د خلکو د آزادي په لار کې يې کیږدي**
**خپله ټوله هستي**
**لکه ستا په شان**
**له کارګر سره!**

وروسته د لنډو شعرونو وار ورسیده: ملګرې شهین داسې وويل:

**د عشق په مسلخ کې پرته له نیکانو بل څه نه وژل کیږي**
**بد ذاته کیدړ صفتان نه وژني**
**که ریښتونی عاشق یاست مرګ نه مه ویریږه**
**که څوک يې ونه وژني خپله مرداریږي**

او ما يې په خواب کې وويل:

**هیڅکله نه مري هغه کس چې زړه يې په عشق ژوندی شي**
**زموږ دوام دتاریخ په جریده کې ثبت دی**

او ملګرې رقیه هم په پای کې د «غبرګولي دریم» د ملګرو (پویان، پیرو نذیري، اسکندر صادقي نژاد) دشهادت ورځې په مناسبت د شعر یوه ټوټه وویله:

**ای دښمنه، ای د انسان قاتله**
**پوه شه چې موږ د هريو په مرګ**
**د مبارزو ملګرو**
**لا پسې تازه کوو**
**خپل هوډ**
**خلکو او ملګرو سره**

نارینه ملګري هر یو د دروازې په څنګ کې ناست وه او غوږونه يې څک کړي چې زموږ غږونه ښه واوري. ملګري حبیب فرزاد[۳] تازه څمکپوړ ته راغلی وه. هغه ډیر پاریدلی (پرشور) څوان وه. زموږ د شعرونو په اوریدو سره په هیجان راغلی وه. غوښتل يې خپله هم شعر ووايي او پیل يې وکړ، زیږ آواز يې په ټولې څمکپوړ خپور شو: «نر باید توره په لاس کې واخلي.....» خو د هغه سلول ته

نــړدې ملګري د هغه مانع شــول: «ته مه وايه ملګريه! مزدوران متوجه کيــږي او بيا نه پريږدي چې ملګــري شــعر ووايي.» او هغه د ملګرو خبرې ومنلې او په خواشــيني يې خپــل غږ قطع کړ. په هغه ورځو کې د ځمکپوړ فضا دغه ډول فضا درلوده. هره ورځ د شــپيلکي آواز د ځمکپوړ په هره ګوښــه کې خپور وه. د آزادي سرود، انترناسيونال او د ضد (Z)آهنګ چې هغه مو د سياهګل په ياد نومولی وه، زمزمه کاوه. ما هم ملګرې رقيه ســره د آذربايجاني آهنګونو ســيالي د شپيلکي له لارې کوله. دا هم د زندان ســاتونکو د فرمان په وړاندې يو ډول ســرغړونه وه چې موږ ته يې يوبل سره د خبرو کولو اجازه نه راکوله. موږ پدې ډول د ملګرتيا تود احســاس يوبل ته رســاوه. کله چې به په ځمکپوړ کې چپتيا واکمنه وه موږ به د «ونســه رموس (venceremos)» ياني «موږ بريالي کيږو» د آهنګ کلمه په دروازه ټکوله. نورو ملګرو هم همداسې کول. دا پدې مانا وه چې موږ تر اوسه ژوندي يو. خو زندان ساتونکي د دغه ديوال ټکولو په راز نه پوهيدل او د دروازې په هر ټکا به راتلل او پوښتنه يې کوله چې څه غواړو. موږ هم هر ځل يو شئ پلمه کاوه او د دروازې ټکول مو توجيه کول.

کارونه مو دومره زيات وه چې وخت ډير کم په لاس راتي. کله چې به چپتيا وه شــعر يا ســرود به مو ويلی نشــو، د ډوډۍ خميرې څخه به مو د ســطرنج دانې جوړولې يا داســې نور شــيان لکه موټی شوی سوک، ټوپک، ماشينداره، بمب، تور کوچنی ماهی، د خاټول ګل، خنجر.... چې د هرې موکې په مهال به مو يو بل ته ډالی کول. له هرې وســيلې نه مو د اړيکې ټينګولو لپاره ګټه اخيســته. ځينې وخت ټېی ته د تګ په وخت کې پيره‌دارانو د فرهنګ او ښــځکيو له ســترګو پټ د سلولونو دروازې پرانيستې پرينښودې او موږ چې به د سلول له مخې تيريدو ملګري به مو ليدل. د هغوی ليدل زموږ لپاره څومره خوشــالي را بخښله. کولی مو شــول يو بل ته پيام وليږدو او موټی شوي سوکان مو يو بل ته ښودل. ملګرې رقيه د دې لپاره چې سلول يې د دروازې په مخ کې وه هميشه د دروازې په مخ کې دريدله پداســې حال چې لاســونه يې په غوسه موټي کړي وه، په تودو شعارونو ملګري چې د دروازې له مخې تيريدل  لا زيات مقاومت او ټينګار ته رابلل.

ښــځکيو هم پدې هکله موږ ځورولو او په مختلفو پلمو يې ټېی ته په ځنډ ځند بېولو. هر ځل بايد لمړی ښځکيو ته موضوع ووايې او هغوی څخه اجازه واخلې چې د سلول دروازه خلاصه کړي که نه ښځکيو هر وار بهانه کوله: «اوس ورله ووايه [چې صبر وکړي، اوس شپنی خواړه خورو...» زما سلول د ځمکپــوړ په پــای کې موقعيت درلود. ټېی ته د تللو په وخت کې بايد د ځمکپوړ اوږده لار ووهم. د سلولونو له مخې چې تيريدم د دروازو هر سوري ته مې کتل. يو ملګري به له سوري څخه لاسونو ته ټکانونه ورکول، بل به سر کښته، پورته خوځاوه....

له دې ټولو سترو او سپېڅلو محبتونو څخه برخه‌من کېدل ما ته خوشالي او سوکالي راکوله او ځان سره مې ویل: د ربړونې درد که هر څومره سخت دی، کېدای شي ژر هېر شي او هغه وخت کېدای شي په سر لوړي سره د خلکو له سپېڅلي محبت څخه، په بند کې د ملګرومحبت یا هغه کسان چې په بهر کې مبارزې ته ادامه ورکوي ځواک تر لاسه شي او د دښمن په وړاندې کرکه لا زیاته شي او په هر حال کې مبارزې ته دوام ورکړم....

# مزدوران په خپل سپکاوي اعتراف کوي

یــوه ورځ «فرهنــګ» زما کوټې ته راغی او د خپل عادت له مخې یې په باټو پیل وکړ. هغه داســې عادت لري، مخکې تر دې چې څوک وغواړي هغه ســره جدي چلند وکړي، هغه ور څخه سرســري تیریږي او خپلو خبرو ته ادامه ورکوي. هغه ورځ یې هم غوښتل راته نصیحت وکړي. د ذلیلې کوچنۍ بورژوایــې له ښــیګڼو څخه یې د عدل او انصاف خبرې کولــې. د خبرو په ځواب کې مې ورته وویل: پوهیږې زه ستا خبرو ته د یوې ټنګې ارزښت هم نه ورکوم، غوره به وي چې نورې خبرې ونکړې!

خو هغه تر دې هم ســپین ســترګی وه چې پدې خبرو وشرمیږي. په بې حیایي یې وخندل او خبره یې په بل خوا واړوله، ګواکې په حیرانتیا یې غوښــتل چې په ســختي یې په ځان ومني، وویل: «ریښتیا تاســې څه ډول خلک یاســت؟ آخر ولې د دومره ربړونو زغم کوې او هیڅ نه وایې؟ څنګه له هیڅ شي نه بیریږي؟ هغه ورځ یې چې ته یې له اوین څخه راوستلې ما ولیدلې. لکه د مړي په شان وې، د یو پیره‌دار په اوږو یې اچولې وې. ما وویل د دې جنۍ د ژوندي پاتې کیدو هیله نشــته ژر مړه کیږي. ښــه وواېه د څه شــي په خاطر حاضره شــوې چې دا ټولې ربړونې وزغمې؟» پرته له دې چې د ځواب انتظــار وکــړي، ادامه ورکړه «والله ما چې د خپلې ځوانۍ له پیل څخه پدې دســتګاه کې کار کړی او ډوډۍ، اوبه او زندګي مې دې دســتګاه په غاړه اخیســتې، که یوه ورځ ستاســې له خوا ونیول شم، یوه څپېړه ناخوړلې هر څه چې له ما وغواړئ وایم یې. اصلاً نه پوهیږم تاســې خپل عقل له لاسه ورکړی، یا څه ډول خلک یاســت؟» وایې به خپل حقارت په ډاګه ویني، خپله خبره یې لنډه کړه او بیا یې په تحســین او درناوي د دوه مبارزو شــهیدانو تر (۱۳۳۲کلونو وروسته) د شهامت او زړه ورتوب یادونه وکړه. هغه د دغو مبارزینو په اعدام کې ګډون درلود او خبرو یې د مرګ په هکله د هغوی د شجاعانه چلند سره تړاو درلود.

نورې ورځې یې هم زموږ د مبارزي د موخې په هکله خبرې کولې هغه غوښتل بحث وکړي او ما هم څو ځله د انقلاب او د خپل سازمان د موخو په اړه هغه سره خبرې وکړې. ځینې وختونه د بحثونو

پــه لړ کې مې خبرې قطع کولې او ځان ســره مې ویلــې. هغه څوک دی چې زه د هغه لپاره د انقلاب خبرې کوم؟ ژوند یې تر هغې کچې زیات د شخصي ګټو په ډېران کې ډوب شوی وه چې د خلاصون امید د ولري. خو هغه بیا هم لاس نه اخیســته او ما به لیدل چې بیا دهغه اپلتو ته ځواب ورکوم: بریا زموږ ده، تاسې ټول به له منځه ځئ....

یو ځل زموږ د بحث په منځ کې ښځکې سلول ته د ننه شوه. هغې هم لږ خبرې وکړې او خپل نظر یــې ووایــه. ما بیا هم ورله دلیل راوړ تر څو د خپلې لارې حقانیت ثابت کړم. ښــځکې تر فرهنګ لږ احمقه وه او ترهغه ژر پوهه شــوه چې زموږ بحثونه بې ګټې دي. له دې کبله یې مخ فرهنګ ته واړوه او ویې ویل: «ښاغلی فرهنګ ته نه پوهیږې عشق یو بل شی دی. دا داسې موضوع نده چې په خبرو د راغلې وي یا د په خبرو له منځه لاړه شــي. عشــق یوازې یو ډول ندی یو زوی ســره مینه کوي، بل مور سره مینه کوي دوی هم یو ډول عاشقان دي. واقعاً عاشقان دي او هیڅ کار یې چاره نشي کولی».

د مازیګر مهال وه، هره ورځ به په دغه وخت د لاســپیکر څخه یو خلخنده ضبط شوی آهنګ په بهر کې د میز له ســره اوریدل کیده او مزدورانو به د آهنګونو په اوریدو، د اورلګیت په قماربازي، د مېوو او نقلو په خوړلو خپل وخت تیراوه. بیا هم فرهنګ زما کوټې ته راغی. یو امرود یې په لاس کې نیولی وه او ټینګار یې کاوه چې هغه ما ته راکړي. دا ډول کارونه یې زیات کول. نارینه ملګرو ته یې هم ځینې شــیان ورل. خو د ښــځینه ملګرو ســلولونو ته زیات راته. غالباً میوه یې د خپل میز له سره ځان ســره راوړله. د کارونو په مانا یې ســم نه پوهیدو. په هر صورت نیم ساعت یې د امرود په راکولو ټینګار وکړ. زه هم نوره ســترې شــوې وم. په غوســه مې وویل: بابا یو ځل مې وویل چې نه غواړم. یو ســړي ته باید څو ځله وویل شــي؟ خو هغه داسې ســپین سترګی وه چې له خپلې خبرې دومره ژر نه لاس پــه ســر کیده، بالاخره امرود یې خپله په تخت کیښــود او ولاړ. له خبــرو او کړو وړو څخه یې ګنس او ســترې شــوې وم. امرود مې په لاسونو راواخیســت او په ډېر نفرت مې ومروړه او ځان مې ملامت وباله، کاشــکې ژر مې اخیســتی وای تر څو ژر په ګور تخته شــوی وای او زما په ســلول کې زیات تم شوی نه وای. واقعاً چې د سپکاوي او سپین سترګي توب یوه مجسمه وه! ځان سره مې سوچ وکړ او هغه ســره مې خپل چلند په پام کې ونیوه. ومې لیدل چې تر اوســه زما زیږ او تند چلند څخه نیولــې تر نرم، معمولي او بې تفاوته چلند پورې د هغه په عمل کې هیڅ آغیزه ونکړه. ســربیره پر ما ټولو نارینه ملګرو، ملګرې شــهین او ملګرې رقیه هم همدا ډول چلند درلود. خو هغه همیشه هڅه کوله چې هماغه شــان په مهرباني! خبرې وکړي او خپلې ښــیګنې زموږ مخې ته کیږدي ژر پوه شوم چې زما چلند هغه ســره، د افسرانو او مســتنطقینو په پرتله توپیر درلود. د دې پر ځای چې هغه سره

په تاوتریخوالي او غوســې خبرې وکړم زیاتره مې په ملنډو او ریشــخند خبرې کولې او دغه دلیل ما ته روښــانه نه وه. ښــایي په ټوله کې د هغه خپل شخصیت د دې کار لامل وه چې دا ډول چلند ورسره وشــي. د ســلول دروازه پرانیستې وه د ملګرې شــهین غږ راتې چې شعر یې وایه. شعر نوی وه چې د فرهنګ په هکله یې ویلی وه:

**شېبه مخکې زندان ساتونکي ما لره**
**له غوسې ډک یو واښکی راووړ**
**د انګورو د سرو دانو تر شا**
**خونړۍ څیره**
**د دښمن خونړۍ څیره!**
**بیا هماغه وخت**
**د هغه چاپلوسې**
**له خائن سړي څخه مې تر غوږه شول**
**زما ماشومې لورکې وخوره**
**واښکی مې په اساني وانه خیست**
**ترڅو مزدور ونه ګڼي زما**
**درد د انګورو د نشتوالی درد ندی**
**۴۹د غوسې دانې ۴۹ د وینو څاڅکي**
**څنګه کولی شم وخورم؟!**
**زه پدغه سره واښکي کې**
**د خپلو عزیزانو وینې وینم**
**د خپلو شهیدانو وینې**
**دغه د شاتو ډالۍ زما لپار زهر دي**
**ډیر، ډیر ترخه حتی له زهرو څخه**
**واښکی مې په غوسې سره منګولو کې ومروړ**
**ځان سره مې د وینو څاڅکي وشمیرل**
**چې د دښمن له واښکي څڅیدل:**

**پنځلس، دوه، درې، دوه او يو***
**درویشت د وینو څاڅکي درويشت د قهر دانې**
**شپږويشت نورې دانې پاتې دي**
**په ډيرې غوسې يې منګولو کې ځبيښم**
**يانې ای کاش دغه بې غيرتانو څخه نور هم وي**
**له هغه پليدانو او بې همتانو څخه!**
**هوکې... حتی د دښمنانو ډالۍ هم**
**کرکه اوغوسه پارونکې دي...!**

* * *

د مزدورانـو پـه منځ کـې، يوازې فرهنګ نه وه چـې د تعجب تر کچې خپله بې حيايې او سـپين سترګيتوب ثابت کړي شي. د زندان رييس، شيخاوندي هم همداسې وو، (هغه د هغو افسرانو له ډلې څخه وه چې تازه اسراييلو څخه راستون شوی وه). په خپله د افسر او ښځکې له خبرو څخه مالوميده چې هغوی هم په خپل منځ کې دښمني لري.

په لمړي ځل چې زه افسـر وليدم، و ئې ويل: «ښـه شـوه چې دلته راغلې، هوسا به اوسې څوک تا سـره کار نلري، ښـه کار د وکړ چې ښځکې د وډبوله.» دا چې ټول مزدوران په خپلو کې دښمني لري هيڅ تعجب مې نه کاوه ځکه پوهيدم اصولاً په هر ځای کې چې شخصي ګټې منځ ته راشي غواړې نه غواړې د منافعو ټکر منځ ته رائي او دښـمني هم اړينه شي. حتی که ظاهراً او په موقتي توګه هماغه شخصي ګټې ومني تر څو دوستي او يووالی منځ ته راشي، بيا هم نشي کولی هميشه دوام وکړي.

په هر حال ما هغه ته ځواب ورنکړ او نه مې غوښـتل هيڅ يو افسـر سـره خبرې وکړم. اصلاً هيڅ اعتنا مې ونکړه. خو هغه هره ورځ زما کوټې ته راته او روغبړ يې کاوه. سـره له دې چې ما يوه کلمه خبره هم ورسره نه کوله او په کرکه مې کتل خو هغه دومره بې حيا وو چې يو شي هم د هغه په چلند کې آغيزه نه کوله او هغه يې په مخ نه راوړه. ټينګار يې کاوه چې زه خبرې وکړم. د دروازې په مخ کې ودريده واقعاً يو ساعت يې خبرې کولې: «زه د ربړونکو ډلې څخه نه يم. يو معمولي افسر يم. د زندان

---

* پنځلس: دسیاهکل شهید ملګري پنځلسمه شمیره نښه. دوه: ملګري جواد سلاحي او خلیل سلمان نژاد. درې: ملګري پويان، اسکندر صادقي نژاد، پيرو نذيري. دوه: ملګري کاظم سلاحي او احمد خرم‌آبادي[۵] يو: ملګری بهروز دهقاني.

ریېس یم د چا په کار کې کار نلرم! پرته د زندانیانو جرم ته په کتو هغوی سره په درناوي چلند کوم.»

بیـا مې په کراتو کراتو ویل: زه ســتا له کارونو خبره یم. تاســې ټــول همدغه ادعا کوئ او یو ډول خبرې کوئ. خو ماته فرق نکوي تاسې ټول یو شان یاست او ټول د خلکو دښمنان! هغه او فرهنګ ځانګــړي موجودات وو. په ټوله مانا بې‌حیا او بې‌شــرمه. نورو مزدورانو خــو لږ تر لږه زما د چلند او رفتار په نســبت خپل رفتار ته بدلون ورکاوه. خو دغه دوه کســانو په هیڅ ډول بدلون نه کاوه. یو ځل مې د دغه دواړو په سر چیغه ووهله: له کوټې بهر شئ، ورک شئ!

هغه دوه ورځې چې ما هغوی شــړلي وو. تر نورو ورځو مې د خوشالۍ ډیر احساس درلود. که څه هم د دې کار په خاطر بیا زما لاسونه او پښې په تخت وتړل شوې. که هر څه وشول خو زه بیا بریالۍ شوې وم. فرهنګ نور زما سلول ته نه راته. شیخاوندي هم (ښایې کوم خاص کار ورله پیښ شوی وه) نور زیات ځمکپوړ ته نه راته. په هماغه ورځ کله چې پیره‌دار د ســهار ډوډۍ خوړلو لپاره زما لاســونه تخت څخه خلاص کړل. د دروازې په لور مې چټک ودانګل او په خوشالي مې لاسونه ملګرې رقیه ته وښــودل. د هغې سلول یې په همدې نږدې ورځو کې بدل کړی وه، کولی مو شول یوبل ووینو. بیا مو له خوشالي ټوپونه ووهل. سهارنی مې وخوړه، بیا یې په تخت وتړلم.

دوه درې ورځې تیرې شــوې. پدې موده کې ناروغه شــوې وم. په هغه ورځو کې هر څوک ناروغه کیدل، څو دانې تابلیت او د ســینې شــربت یې راکوه. زما لپاره درمل فرهنګ راوړل. په بې پروایې هغه سره مخامخ شوم او چیغه مې پرې ونه وهله. همدا خبره د دې لامل شوه چې بیا یې سلول ته تګ راتګ پیل کړ. خو هر څه چې وه څو ورځې د بریالیتوب احساس څخه ډیره خوشاله او سوکاله وم.

# په ربړول شوو تنو کلک او سرلوړي

نور مې لاسونه خلاص ول. کولی مې شول د دروازې سوري څخه بهر وګورم. يو ځل يو نرس د ۹ شـمیر سـلول په مخ کې ولاړ وه. په لټه کې شوم: مګر په هغه سلول کې څوک زنداني دی؟ د ډاکتر یا نرس لیدل د دې نښه وه چې زنداني يې ډېر سخت ربړولی ده... نرس د ملګرې رقیه سلول ته هم ورغی. د هغې د پښو ګوتې يې په چغمغې (فندک) سوزولې وې او نرس غوښتل دهغې په ټپونو درمل ووهي. لږ ځنډ وروسـته نرس ولاړ او زه اوس هم د دروازې د سـوري تر شـا ولاړه وم. د هواکش غږ پورته شو. د مخامخ سلول سوری ته مې وکتل، نورو زندانیانو هم زما په شان د بهر په ننداره اخته و.

د ۹ شـمیرې د سـلول زنداني ملګری (د ګـروه ارمان خلق مبارزینو)څخه يـو تن وه چې په ډېر زحمت د خپل سـلول دروازې څخه بهر ووت. پیرەدار وغوښتل غبرګ کې يې ونیسي خو هغه پیرەدار یوې خوا ته ټیله کړ. ښـکاريده چې ملګری يې سـخت ربړونه کړی وه. دهغه ټوله شا يې سوزولې وه. د يو لاس شا يې هم همدا شان سوزیدلې وه. لاس يې په خوا کې ځوړند کې نیولی وه او د پښو تلي يې هم ټپي ول، په سختې سره يې کولی شول په لاره لاړ شي. پښه يې په مځکه څخوله، په غرور، سرلوړي او متانت سـره د يو غښـتلي انقلابي په شان په پراخه ټنډه ښـودله چې د بدن درد ته هیڅ اهمیت نه ورکوي. ګوډ ګوډ د ټټی په لوري روان وه. او دهغه ټولو ټپونو او د جنایتونو د نښـو په لیدو سـره چې د يو غښـتلي انقلابي په بدن ښـکاریدې ګنسه شوم. ملګری زما د دید له ساحې څخه لرې شو. بیرته وګرځیدم، ځان مې د سلول په دروازې محکم وواهه لاسونه مې موټی کړل او په دیوال مې وار کړل. ټـول بدن مې منقبض شـوی وه، کرکې مې په زړه د اور لمبې بلې کړې وې. احسـاس مې کاوه چې د انتقام له هیلو ډک دی. د کرکې بغض مې سـتونی خپه کړی وه. پرته له دې چې وغوارم د غوسـې او کرکې اوښـکې مې له سـترګو جاري شې. په غوسه مې تر شونډو لاندې ځان سره وویل: آخر ولي دغه ذلیله جنایتکاره موجودات د دې ډول جنایتونو سـر ته رسـولو اجازه لري؟ د هواکش غږ د دې لپاره شـروع کیږي تر څو د ملګرو د پښـو غږ پدې شور ماشور کې ورک شي! او د زندانیانو پام ځانته

جلب نکړي. له دغه صحنو څخه مو زيات ليدل او هر ځل مو د ربړول شــوو، ســرلوړو او درديدلو پښــو په ليدلو لا زيات قوت ترلاســه کاوه او کرکه مو زياتيده. ملګرى اصغر عرب هريســي، دښمن ســره د خپلې بې پايه کرکې په درلودلو ســره، يو له دغو سرســختو مبارزينو څخه وه. هغه يو ځوان او آګاه کارګر وه چې د خپل حيرانوونکي مقاومت له کبله يې د ټولو درناوي، حتى د دښمن احترام هم ځانته جلب کړى وه. زه په هغه ځاى کې د هغه درېړونو شاهده وم او په ياد يې لرم چې څه ډول يې د ربړونې او متروکو لاندې حتى چيغه هم نه وهله، د قمچينو ګوزارونه په ډير وحشت سره سرته رسيدل خو هغه چُپ او ساکت وه او په ياد مې دي چې مزدورانو د هغه په وړاندې څومره د حقارت احساس کاوه او د بې وســئ له مخې يې ويل: «ګوا کې متروکې په تخت لګيږي نه د اصغر په بدن!» بيا يې هم يوه شــېبه له خپل قهرجن چلند څخه لاس نه اخيسته او دښمن هم هغه څخه پرته له تاوتريخوالي او غوسې نور څه نه ليدل او څه يې نه اوريدل. دغه بې پايه غوسه او کرکه د طبقاتي غوسې يوه جلوه وه چې يو عمر يې په خپل زړه کې روزلې وه. مزدورانو ټوله موده د هغه لاســونه او پښې تخت سره تړلي ول او کله به يې چې له تخت څخه خلاصوه، هر مزدور چې به يې په مخ کې ولاړ وه، سمدستي به يې په داسې غوسه ناکې لغته واهه چې خپله پرې پوهيده. له دې کبله کله چې به ټټې ته روان وه پښې به يــې پــه ځنځير تړلې وې او دوه مزدورانو به له دواړو خواؤ نيولى وه. په پورتنيو کوټو کې د هر زنداني لپاره يو چوکيدار وه. خو د هغه د غوســه‌ناک او قهرجن چلند په خاطر دوه چوکيدارانو د هغه ســاتنه کوله. دا ول د هغه نر زمري، د خلکو د زړه‌ور اتل بچى کړه وړه د دښــمن د مزدورانو په وړاندې چې ټول يې هک‌پک کړي ول.

بوه ورځ ښــځکې هغه د بل زندانى په عوض اخيســتى وه او پو ښــتنه يې کړې وه «پلانيه حالت د څرنګه ده؟» ملګري چې هيڅ وخت د دښــمن مزدور ته اجازه نه ورکوله هغه ســره په محبت خبرې وکړي په ډيره غوسه يې چيغه کړې وه: «په تايې څه خاينې پلورل شوي مزدورې!».

نــور نــو ټول مزدوران د ځان او د خپلو ســتمکارو او لوټمارو اربابانو پــه وړاندې د هغه له کرکې او غوســې خبــر شــوي ول، چا جرئت نــه درلود چې د هغه څنګ ته نږدې شــي. يو وار د ســاواک مــزدور «فهيمــي» هغه ته ويلي وه: «بابا ولــې دا ډول ترينګلې څيره ځانته غوره کوې، دلته تا ســره څــوک کارنلري دا تــر ربړونې ډير وخت وروســته وه لــږ دې د ترينګلي تندي غوټــې پرانيزه دغه ټــول تاوتريخوالى څه مانا لري؟» ملګري عرب په ترکي غليظه لهجه په غوســې ســره ويلي وه: «زه همداشــان يــم، اصلاً زما څيره همدا ډول ده!» کله چې فهيمــي ډير ټينګار کړى وه، ملګري وچولى تريو کړ او مزدور دښــمن ته قواره شــو، په قهر يې ويلي وه: «راځه همداســې ښــه ده؟!» فهيمي چې

د هغه د ملنډو په وړاندې ځان بې وسې او مات لیدلی وه، نور یې څه ویلي نه وه او ترینه تللی وه.

ملګــري باور درلود: «دښــمن غټ او کوچنی نلري. ټول دښــمنان دي او یو مبــارز پرولتر خپلو طبقاتي دښمنانو سره یوازې په مرمۍ خبرې کوي».

د تجربــې له مخې مې موندلــې وه چې د یو مبارز لپاره هیڅ درد، کړاو او عذاب تر دې ناوړه ندی چې د دښــمن په وړاندي د تسـلیم کیدو او ماتې احسـاس وکړي. له همدې کبلـه د ځینې زندانیانو ضعف او کمزوري څخه ځوریدم. د بیلګې په توګه یوه ورځ د څلورم سـلول زنداني پر له پسې دروازه ټکولـه او چوکیـدار ته یې ویل: «ووایه چې ما ته سـګرت راکړي» له نورو سـلولونو څخه هم همدا غږ پورته وه د پیره‌دارانو مشــر راغی په غوســه یې وویل: «مګر دا ستاســې د آبې کور دی د هغوی همیشګي کلام نه خیر سګرت نشته.» په خپل سلول کې مې قدم واهه له دې موضوع څخه نا هوسا وم. د یو کیوبایي چریک ملګري «کامپلو» په یاد ولویدم چې په ځنګل کې د هر تازه راســتون شــوي د مقاومت د ازمایښــت لپاره یې داســې خواړه ورکول چې د پشي غوښې څخه تیار شوي وه او هغوی پرته له کرکې او اکراه هغه خوړل، تر څو وښایې حاضر دي چې پدې لار کې د هر ډول ستونزو زغم کوي. دا د ازمایښــت یو ډول وه چې کار ترې اخیســتل کیده. ځان ســره مې ویل چې ولې زندانیان نشــي کولی د سګرت نه څښــکلو زغم ولري او د دښمن منت په ځان ومني؟ البته پوهیدم چې ټول زندانیان چریکان نه وو، زیاتره یوازې انقلابي دوستان ول چې د کتاب یا د جزوه لوستلو یا همداسې نورو کارونو په جرم نیول شــوي ول. فرهنګ د دې لپاره زندان ته راته چې زندانیانو ســګرت روښانه کړي او پدې ډول یې غوښــتل هغوی تشــکر کولو ته اړباسي. دغه صحنه مې چې مجسم کوله ګنس کیدلم. آخر ولې خپل غرور د دښمن په وړاندې تر پښو لاندې کوي؟!

هوډ مې وکړ تر کوم ځایه چې کولی شم د دې کارونو مخه ونیسم. خو څه ډول؟ فکر ته مې راغله هره ورځ پدې پلمه چې بهر کې مې ســګرت څکول، له فرهنګ څخه ســګرت وغواړم او پدې ډول هغه زنداني دوستانو ته ورکړم. سر له سبا مې پدې کار پیل وکړ.

# د خلکو زندان ساتونکي یا د خلکو دښمنان

له ورځو یوه ورځ، بیا هم د ښـځکي چیغې او شـور ماشـور جوړ شو. له خپل ځایه پورته شوم او له سـوري څخه مې بهر وکتل. ښـځکی د ملګري حبیب فرزاد د سلول مخې ته ولاړه وه. ډېره غوسه او عصباني ښـکاریده. په چاپلوسـي یې بریدمن سره خبرې کولې په ماښیجنه (آزرده خاطر) او عصباني لهجه یې وویل: «دا عجیبه سپین سترګي موجودات دي، دغه هلک ما ته وایې ته خلک نه یې! له یو پلوه خپله وایې هر څوک چې زحمت وباسي خلک دی، کله چې وایم زه هم سهار نه تر شپې زحمت کاږم، نو زه هم خلک یم، وایې چې نه ته خلک نه یې!».

د ملګـري حبیـب غږ مې واورید چې د هغې په ځواب کې یې وویل: «هوکې ته خلک نه یې، ته د خلکو دښـمنه یې. یوازې زیار ایسـتل د دې دلیل ندی چې ته د خلکو جز اوسـې. مهمه دا ده چې د چا لپاره او په کومه لار کې زیار باسـې. تا خپله خپل ځان د خلکو د دښـمن په واک کې ورکړی دی او د ظالمانه موخو د سـرته رسـولو لپاره زحمت باسـې، تا په داسې کتار کې ځای نیولی چې د خلکو په وړاندې مخامخ ولاړه یې، نه د هغوی په څنګ کې. ته نشې کولی خلک اوسې. ته د خلکو دښمنه یې!».

پیښـه پدې ډول وه، مخکې تر دې ښـځکۍ ملګري حبیب سره بحث کړی وه او له هغه څخه یې پوښتي وه چې: «ستاسې منظور له خلک څخه څه شی دی چې په دومره محبت او درناوي یې یادونه کوئ، خلک څوک دي...».

ملګري ویلي وه: «ټول زیارکښـان خلک دي.» ښځکی چې مخکې لیدلي وه ملګري په څه ډول د خلکو درناوی په مینې سـره یادوي او وایې د خلکو د سـعادت او له بدبختي او زبیښـاک څخه د خلاصون په لار کې دغه ټولې ربړونې او دردونه مني، دهغوی د نیک مرغي لپاره مبارزه کوي. هیله یې کړې وه چې هغه هم د خلکو په کتار کې وشـمیرل شـي او د دا رنګه زړه‌ورو افرادو، چې د مرګ تر پولې د خلکو ارمان ته وفادار پاتې کیږي دا هم د احترام وړ وګرځي. دا په واقع کې د ښـځکۍ بې

پایه ځان غوښتنه او حماقت وه چې ملګرو څخه د دا ډول غوښتنه ولري. له همدې کبله یې ټینګار کاوه چې هغه هم سهار څخه تر ماښامه پدې اداره کې خدمت کوي نو دا هم خلک ده!!

د هماغــې ورځې په مازیګر د «ونســه رموس» د ضربې غږ د ملګري حبیب ســلول څخه پورته شو. بډوډو (ګرده) یې تکلیف پیداکړی وه، هر ساعت ټټی ته روان وه، پرله پسې یې د سلول دروازه ټکوله. ټټی ته زیات تلل د ناوړه خواړو او عصبي دردونو مسئله وه. په متروکوو د وهلو غږ او تر سختو ربړونو لاندې د مبارزینو چیغې د زنداني ملګرو په معدې او کولمو بده اغیزه درلوده. له همدې کبله ټټـی تـه په ځنډ تلل د زیاتو دردونو موجب کیده. ملګري حبیب فــرزاد ته د هغه د بډوډو د ناراحتي له کبله اجازه ورکړل شــوې وه چې بې نوبته ټټی ته لاړ شــي خو هر وار د دروازې ټکول، د مزدورانو خندا او پیغورونو سره مل کیدله.

په هر حال دروازه یې پرانیســتله. ملګري پداســې حال چې کوټ (بالاپوش) یې په اوږه اچولی وه بهر راغی. د ســوکانو او لغتو غږ پورته شــو، د پیره‌دارانو مشر ښــکنځلې کولې چې کوټ د ولې کوږ اغوســتی دی او پښــې ولې په مځکه زیاتې څخوې.... شور ماشــور زیات وه، او خبري په ښه توګه نه تشخیص کیدې. اټکل کیدی شو چې څه پیښ شویدي. ښځکی پیره‌دار ته ویلي وه په هره پلمه چې کیږي حبیب د ســهارنۍ پیښــې په تړاو وځوروي او هغه هم بهانه پیدا کړې وه او حبیب یې په سوټې واهه. یو ســاعت تیر شــو د شــپې ډوډۍ خوړلو وخت وه، بیا د ملګري حبیب کوټې څخه غالمغال پورتــه شــو. پیره‌دار خبر راوړ چې حبیب خواړه نه خوري، غــواړي د خواړو پرلت (پرلت) وکړي. د ښځکی غږ مې واورید چې ویل یې: «ته مجبور یې غذا وخورې، امکان نلري زه تا پریږدم چې پرلت وکړې، زنداني باید فرمان منوونکی وي، زنداني حق نلري په خپل زړه چلند وکړي.» د ملګري حبیب اعتراض آمیزه او قهرجن غږ مې واورید خو ســلول یې زما سلول څخه لرې وه خبرې مې تشخیص کولی نشــوې. یوه شېبه چپتیا شوه. امیني، د ملګري مستنطق راغی، ټول یې یوې خوا ته کړل سلول ته ننوت. اوریدل مې چې ملګری په اعتراض سره خبرې کوي. وروسته مې د امیني خبرې واوریدې چې پیره‌دارانو ته سپارښت کوي، هغه سره کار مه لرئ او ویل یې آخر ولې هغه سره بحث کوئ؟.

# نورې ورځې په سلول کې

پدې فکر کې وم چې په سـلول کې مې وخت په بيکاري تير نشـي. او په ورته وخت کې مبارز ته نه ښايي خپل ارمان څخه جلا او بې اړيکې وي. په انفرادي سلول کې ما ځانته برنامه جوړه کړې وه. نورو هم همدا ډول برنامې درلودې: ورزش، د شـعر ويل او د ديوال په وهلو سـره د سلول تر څنګ زنداني ملګرو سـره خبرې کول. خميرې څخه تشـله يا مردکي جوړول او بيا په ديوال ويشتل چې د نښې ويشتلو يو ډول تمرين ګڼل کيده. پدغه وختو کې ممکنه وه د هواکش آواز پورته شي تر څو په ديوال باندې د تشلې لګيدلو غږ د پيره‌دار غوږ ته ونه رسيږي. کله چې هواکش خاموش وه د مځکې په مخ مو تشـله بازي کوله چې دا هم يو ډول نښـه ويشـتل وه. سـر بيره پر دې ټولو د يوې ځانګړې موضوع په هکله سـوچ کاوه، د خميرې په مخ نقاشـي کول يا له هغې څخه مجسمه جوړول، د ديوال په مخ شعرونو پسې ګرځيدل يا پخپله په ديوال د شعر ليکل....

د سـلولونو هوا ډيره پړسـيدلې وه. ښـځکې د خپل هميشـګي خصلت له مخې دلته هم ځان د ځمکپـوړ (زيرزميني) ريښـه ګڼله. د زندانيانو او همدارنګه د خپلـو همکارانو په وړاندې د قدرت ښـودلو په خاطر يې امر کړی وه چې په ورځ کې د سلول دروازې ديو ساعت لپاره نيمکښه پريږدي. د دې په څنګ کې هغې غوښتل چې زندانيان هغه د واک او قدرت څښتنه وپيژني او ترې منندويه اوسي. په هر حال د دروازو نيمکښه پريښودل د خبرو کولو لپاره يوه ښه موکه منځ ته راوړی وه.

* * *

ځمکپوړ نيمه تياره وه او زما سـترګې هم کمزورې وې. په سترګو مې پرته له مخامخ سلول څخه، هغه هم په ډير زحمت بل ځای نه ليده. په مخامخ سـلول کې غيرسياسي زنداني ځای درلود چې زړه يې غوښتل ژر تر ژره آزاد شي. له دې کبله يې هڅه کوله چې اشتباه ونکړي د سلول په منځ کې ناست وه د دروازې مخـې تـه نه راته. نور ملګري به د سـلول دروازې مخ کې دريدل يوبل سـره يې خبرې کولې. پيره‌دارانو ويلي وه ورو خبرې کوئ چې فرهنګ يې وانه اوري. د ځينو ملګرو چې سلول يې

تر نورو لیرې وه، د دې لپاره چې غږ یې وانه اوریدل شـي، خپلې خبرې یې د دروازې په مخ کلمه په کلمه یوبل ته انځورولې.

پـه همـدې ورځو کې وه چې ملګرې رقیه د خپلې شـکنجې او ګرویږنو ماجـرا ماته بیان کړه. د حـوزې مزدورانـو ملګرې د خپل ورور په کور کې ونیولـه او بیا یې تر ډېر وخته ربړونو لاندې نیولې وه. په متروکې وهل، تر فشـار لاندې د ګوتو نیول، په انبور د غوښـو مروړل، په نوراني برقي چراغ د سـترګو ځورول، د پښـو د ګوتو سوځول دا هغه ربړونې وې چې وحشي مزدورانو د ملګرې په هکله کارولې وې.

سـربیره پر دې دغه جنایتکارانو، دغه بې غیرته پلورل شـوو مزدورانو د ربړونو په ټوله موده کې ملګرې بربنډه کړې وه او برقي ډنډه یې د هغې په بدن منښله او پدې وخت کې به یې په بیشرمې سره یو شـمیر چوکیداران د ربړون‌ځای په مخ کې ودرول او د کوټې دروازه یې نیمکښـه پرانیستله تر څو پدې حال کې د ملګرې تماشا وکړي او پدې ډول جسمي ربړونه، روحي ربړونې سره یوځای کړي. ملګرې له دې دواړو ربړونو څخه سـرلوړې ووتله (د «پیروزي» د شـعر په پاړکي کې: څوک چې تر ربړونو لاندې سرسختانه مقاومت کوي، خپله ملګرې ویلی: د هغې خپل تصویر دی)*

د بې حیا او بیشـرمه دښـمن او مامورینو بیشـرمي او هرزګي پای او برید نلري. د حوزې د چټلو مزدورانو د ملګرې شهین توکلي د نیولو په وخت کې همدا ډول بې حیایې له ځانه ښوولې وه. هغوی د کور او حوزې تر منځ واټن کې پداسې حال چې د ملګرې لاسونه او پښې تړلې وې او پخپله مست او نېشـه ول، د شـرابو بوتلونه یې په لاسـو کې نیولي وو** د موټر په منځ کې یې ملګرې سـره ډېر سـپک او بدرنګه اعمال تر سـره کړي وه. په هر حال دښمن وروسـته تر هغې چې له ربړونو څخه ناهیلی شـوی وه په فریب او چلوټو یې لاس پورې کړ. موضوع پدې ډول وه. ملګرې یې وروسـته تر ډېرو وحشـیانه ربړونو، یـوې کوټې کې اچوي او یو پیره‌دار یې په سـر پرېږدي چې په حقیقت کې د ګرویږنـې مأمـور وه او د پیره‌دار جامې یې په تن کـړې وې. هغه په خبرو پیل کوي او د ملګرې د سـختو ربړونو په خاطر ځان ډېر غمجن او خواشـینی ښـایي، د خپل ژوند وضعیت څخه په ګیلو او

---

* دغه پاړکی د کتاب د همدې څبرکي په پای کې راغلی دی.

** دښمن ددی لپاره چه دخلکو فکرونه بلی خواته واړوی، مونږ دمخدره توکو په روږدیتوپ او کږون (انحراف) تورنوی.

کیســو پیل کوي دا چې په کم معاش نشــي کولی د خپلو بچیانو او ښځې ګېډه مړه کړي، ربړونکو ته ښــکنځلې کوي. او داســې نور غولوونکې کړه وړه هم په لار اچوي. د بیلګې په توګه کله چې د پښو غږ اوری ژر تر ژره ملګرې څخه لیرې کیږي یا خپل غږ ټیټوي او په پسپسکي خبرې کوي. په هر حــال په پای کې د ملګرې رقیــه باور ځانته جلبوي او د ملګرې د ربړونو په یادولو ســره دغه ګیدړ صفته خائن د دوه ځاځکو اوښکو په تویولو سره د ملګرې باور بشپړوي. ملګرې رقیه په ټولی سادګئ ســره باور کړی وه. هر ملګری یا تر ربړونې لاندې مري یا خبرې کوي او خائن کیږي. له دې کبله کله چې د باور وړ او ښــه ملګري ژوندي ویني، هک پک پاتی کږي. او دغه وخت د مزدوران هڅه کوي د اپلتوله لارې چې ګواکې هغوی کولی شي د دستګاه ګانو په واسطه د زندانیانو فکر او مغز تر لاســه کړي باور وکړي. مخکې هم د پوهنځي یو اســتاد د دې دستګاؤ په هکله خبرې کړې وې. نور نو شک ورله نه پاتې کیده چې مزدوران ریښتیا وایي. هغې چې په زور تر ربړونې لاندې د ټیمي کور آدرس ورکړی نه وه، ځان ســره فکر کوي چې دغه مهربان چوکیدار څخه مرســته وغواړي او خپلو ملګرو ته پیام واستوي چې کور تخلیه کړي. تر څو دښمن ونشي کولی له دغه جادویې دستګاؤ څخه ګټــه پورته کړي او خپلې موخې ته ورســیږي. د دې فکر تر څنــګ د کور آدرس پیره‌دار ته ورکوي. پیــره‌دار تــر لږ عذر او زاریو مني چې د هغې پیام ورســوي! خو له نیکه مرغه ملګرو هغه وخت کور تخلیه کړی وه او د دښمن چلوټه بې پایلې پاتې کیږي.

ملګرې رقیه په خپکان ما څخه وپوښــتل: «ســتا له نظره دا خیانت دی؟» ما وویل نه، دا د دښمن په وړاندې ســادګي او انقلابې هوښــیاري څخه کار نه اخیســتل دي. خو هغه لــه دې کار څخه ډیره غمجنه وه.

* * *

کار ته سم حسابي او عملي فکر لږ کیده. ملګري محمد تقي زاده د لاسونو د اتکړیو خلاصول په نري سېم چې ځینې وخت جارو څخه لویږي او په سلول کې پاتې کیږي موږ ته زده کول. زندان څخه فرار کول زیاتره د هیلې جنبه درلوده نه عملي جنبه. داســې خبرې مطرح کیدې چې حتی د هغو په هکله فکر کول هم ناسم وو. مثلاً دا چې ممکنه ده دغه ساختمان ته بمب واچول شي او د پیره‌دارانو وضعیت ګډوډ شــي او موږ له دې موکې ګټه واخلو او فرار وکړو. ما په تئوري کې د تفکر دغه طرز رد کاوه. او ویل مې دا ډول فکر کول د بهرني عامل آغیزه د داخلي عامل تر آغیزې لوړ ګڼل دي او هغه ته زیات ارزښت ورکول دي. موږ باید د بهرني اتکا پرته، خپل داخلي ځواک څخه مرسته وغواړو او طرحــه جوړه کــړو. خو موږ عملاً پدې هکله جدي هڅه نه کوله پــه واقع کې له چریکي روحیې

څخــه برخمــن نه وو. که څه هم ما د ملګرې ماریګلا[۶] خبــرې منلې او تل یې په یاد کې وم. هغه د سازمانونو نظامي کارونه نفې کوي، وایې: «تاسې کولی شئ داسې کسان تربیه کړئ چې کلونه، کلونه په زندان کې پاتې شي او په ټول طاقت د زندان ژوند زغم کړي خو هیڅکله به د دې وس پیدا نکړئ چې داسې فرد تربیه کړئ چې د حساب شوی نقشې له مخې زندان څخه فرار وکړي.» په تئوري کې پوهیدم په زندان کې د یو چریک دنده دا ده چې تل د فرار په فکر کې اوسي او د هغه په عملي لارو چارو فکر وکړي. ما خپله فکر کاوه که زه دغه کار ونکړم بیساري بې صداقتي سره مخامخ شوې یم. خو دا چې په دغه لار کې مې کار سرته نه رسوه، مانا یې دا وه چې د یوې تکیه ځای په لټه کې وم.

په یاد مې دي یوه ورځ ښځکی د ملګرې شهین سلول ته بیولې وم (دوه درې وارې یې زموږ د هر یو په اړه دغه کار کړی وه) د ډوډۍ یوه ټوټه مې په څنګ کې نیولې وه، پرته له دې چې متوجه شــم ټوټه ټوټه مې له هغې شکوله او خوړله مې. ملګري شهین په شوخي وویل: «ملګری څه ډول ډوډۍ خورې، ودنشــي د زندان تل ټوټه ټوټه کړي او تیښتــه وکړی!» ومې ویل: اوس نه، تیښتــه باید حتمي وي خو دلته نه، عمومي زندان څخه! ښــځکی وویل: «دا ډول بیځایه ارمان مه کوئ. په دومره زیاتو پولیســانو او پیره‌دارانو کې امکان نلري څوک وکولی شي تیښته وکړي.» موضوع زما لپاره همدا شان وه. پرته له دې چې خپله د دې امکان جوړولو په لټه کې شــم یو جوړ شــوي امکان پسې ګرځیدم. په هر صورت یو چریک باید په هر ډول شرایطو کې هڅه وکړي د محیط هر امکان څخه ګټه واخلي او د تیښتې لار پیدا کړي. د هغه ځای محیط راته مجهول وه. نه پوهیدم پیره‌داران چیرې دي،څو کسه دي؟ او پیره یې کله بدلیږي؟ او.....

په هر حال ورځې په همدې شــان تیریدلې. پدې کې شــک نشته چې په یو تړلي او محدود محیط کــې فکــر هم محدود وي. زما لپاره ژوند پدغه محیط کې هغه شــان پر مخ روان وه چې شــعر ووایم، مجسمه جوړه کړم او پدې فکر اوسوم چې فرهنګ ته په څه ډول لاس واچوم. کله ناکله د دې امکان هم وه، چې غیر سازماني ملګرو سره د خپل سازمان د خط مشې په هکله جدي خبرې وکړم. پداسې حال چې په هغه اوړي کې تاریخ د جوړیدو په حال کې وه او رنګا رنګ واقعات پیښیــدل په بهر کې یې د هر ملګري فکر ځانته اړولی وه او هر یو د دې ناوړه پیښو د حل لارې موندلو په لټه کې ول او د غورځنــګ د پرمختګ لپاره یې هڅې کولې. زه له ټولو ځایو بې خبره وم. کله به ښــځکی خبرونه راوړل. موخــه به یې دا وه چې دغه خبرونه زما پــه روحیې ناوړه اغیزه پریږدي. مثلاً د «ارمان خلق» ملګرو د اعدام خبر ښځکی راکړی وه.

* * *

د ۵۰ کال د مني وروستنۍ ورځې وې چې ښـځکې سـهار او مازیګر ځانګړو مامورینو سره بهر تلله او په سـاعتونو ځمکپوړ کې نه ښـکاریده، وروسـته متوجه شـوو چې ګواکې دغه تری تم کیدل د دښـمن لپـاره د ملګري «قبادي»[۷] د کور پیدا کولو سـره تړاو درلود. ځکـه تر دغه تری تم کیدلو وروسـته پرته له ځنډه هغې ښـځکې ما ته د ملګري قبادي په کور کې د نښتې خبر راکړ. پدې اړه یې په ډیر ویاړ او خوشـالي ویل: «زموږ په ډزو کې کور په کنډواله بدل شـو او درې چریکان چې هلته اوسیدل مړه شول!»

ښځکې د ملګرو د قهرمانانه مقاومت او جګړې په هکله څه نه ویل، خو موږ پوهیدو کله چې په جګړې او نښتې کې درې چریکان وژل کیږي، ښکاره ده چې څه حماسه یې باید زیږولې وي. هغې فکر کاوه چې دا ډول خبرونه موږ پریشانه او ناهیلې کوي. حال دا چې نه پوهیده دغه موضوع پخپله د دښـمن په ضد زموږ د ځلانده او ویاړلې مبارزې د دوام زیری دی او همدغه شـهادتونه، مبارزې او زړه ورتیـاوې دي چې موږ لا پسـې هوډمن کوي تر څو خپلـې بې امانه او نه پخلا کیدونکې مبارزې ته په زندان کې ادامه ورکړو.

* * *

د مني په پای کې په سـلولونو کې هوا ډیره سـړه شوې وه. د شـپې له خوا په کمپلو کې غونج منج بیده کیدو او د یخ له لاسه مو خوب نه وه. احساس مو کاوه چې د یخ له لاسه مو سرونه کنګل کیږي. د زندان کوټ مو د بړسـتنې په ځای په سـر اچوه او لستوڼي مو سره غوټه کول، خنده وونکی حالت مو غوره کاوه خو لږ تودیدلو.

پـه هر حال هر ملګري په هغه ځای کې ځانته ځانته سـتونزې درلـودې. د بیلګې په توګه خواړه، ځینو د ګیډې د زخم یا د کولمو ناروغي درلوده، کولی یې نشول د زندان ناوړه خواړه وخوري، زیاترو یوازې په وچې ډوډۍ بسنه کوله.

* * *

تازه نوي زندانیان یې راوړي وو او زه موکې پسې ګرځیدم چې هغوی سره خبرې وکړم. د یو سلول دروازه پرانیستې وه. خوله مې د دروازې په سوري کینښوده، له ملګري مې وپوښتل: تازه خبره څه ده؟

په خوشـالۍ یې ځواب راکـړ: «چریکانو د «فرید» چورلکه ویشـتلې او هغه مړ شـوی دی.» په بیساري خوشالي مې وغوښتل چې خبره بیا تکرار کړي او هغه تکرار کړه. له خوشالي په سلول کې وڅرخیدم او بیا د سوري خوا ته راغلم او ومې پوښتل نورې څه خبرې؟

ملګري وویل: «د مهرنوش په هکله د اوریدلي؟ هغه د خلکو د فدایي چریکانو د سـازمان غړې

وه. په یوې نښته کې شهیده شوه. خو مزدورانو سره په داسې میړانه وجنګیده چې اوس یې خبر په هر ځای کې انګازې خپرې دې. سربیره پر دې توانیدلې وه چې مزدوران بوخت وساتي او یو له ملګرو ځان وباسي...»[۸] زه د دې خبر په اوریدلو ډیره خوشاله شوم. کولی مې شول اتله چریکه جنۍ مجسم کړم چې څه ډول یې پــه یوائې تن د دومره ډیرو مزدورانو په وړاندې په بې پروایې ســره جنګیدله. آخر د هغې د زړه ورتوب ملاتړی خلکو سره د هغې مینه، او د خپل ارمان په ربښتینولي او بریالیتوب ټینګ ایمان وه. په زړه کې مې د دغې زړه ورې فدایي چریکې د بی پایه مینې او محبت احساس کاوه او ځان سره مې د هغې په وینې سوګند یاد کړ چې د تل لپاره مبارزه او نه پخلا کیدونکې پاتې شم.

* * *

د غرمې مهال وه. ښــځکی زما د ســلول په مخ کې ولاړې وې او د دویمې (۲) اطلاعاتي ادارې د ریېس ډګر وال امیر اصلاني پیښــې (تقلید) په لار اچولې... داســې یې ښکاره کوله غواړي یو سلول ته ننوځي چې هلته یو چریک زنداني دی. لمړی په ډیر احتیاط له بهر څخه ســلول ته په ځیر ګوري او بیا په چټکې سره په شا کیږي. لږ شېبه دریږي زړه ته تسل ورکوي چې د ننه شي خو بیا هم نشــي کولی. هماغه لمړنی حرکت تکراروي، په بې زړه توب ســره یو افسر څخه چې څنګ کې یې ولاړ دی پوښــتنه کوي: «لاســونه او پښې یې تړلي دي؟» افسر یې ډاډه من کوي او هغه بیا هڅه کوي چې سلول ته د ننه کیدو په وخت کې افسرانو څخه واټن منځ ته را نشي، سلول ته ننوځي.

نه پوهیږم هغوی دغه حرکت د کوم زړه ور مبارز سلول ته د ننه کیدو په وخت سرته رسولی وه چې اوس خپله مزدورانو ورباندې ملنډې وهلي او ښځکیو په هټ هټ خندل.

ما هم د هغوی حماقت ته خندل چې زما په مخ کې د خپل ریېس پیښې کوي او هم د هغه ریېس ډار پــه خندا اخیســتې وم، ځان ســره مې ویل: وګــوره اتل ملګری په څه زړه ورتیــا او بې با کي دغه مزدورانو ســره مخامخ کیږي. وګوره چې روزګار دغه مزدوران په څه ډول دهلاکت او نابودي کندې ته لیږدوي او د مزدورانو دغه ریېس له هر څه بیریږي، حتی د لاس او پښــې تړلي زنداني څخه هم ویره لري.

* * *

ملګرې رقیه ښــځکی ســره دعوا کړې وه او هغوې د ملګرې لاســونه او پښې تړلې وې. ملګری نابدل یې هم د بلې ادارې سلول څخه ځمکپوړ ته راوستی وه. مامورین ډیر سخت په غوسه ښکاریدل د هغه لاسونه او پښې یې تخت سره وتړلې. هغه په مخکنې زندان کې د زندان ریېس په کوتک وهلی وه او شورماشور یې په لار اچولی وه. نورو زندانیانو د خپلو سلولونو دروازې په لغتو ډبولې او شعارونه

يې ورکړي و. تُرکي زندانيانو هم چېغې وهلې وې، ويلي يې و: «ياشا اُختای، يا شا!»*

د سهار مهال و، د ملګري نابدل لاسونه يې خلاص کړل. زموږ د سلول دروازې پرانيستې وې. د دروازې په څنګ کې ولاړه وم او د هغه په سلول مې سترګې نښلولې وې. ملګری د دروازې مخې ته راغی. زموږ دواړو سترګې نږدې ليدې (نزديک بين) وې او نه مو شوی کولی د شونډو په ښورولو يو بل ســره خبرې وکړو. د هغه لاســونه مې وليدل چې پورته يې ونيول او موټی يې کړل او کلمات می د آهنګ په بڼه اوريدل چې ويل يې: «د بلشــويک په شــان بايد وجنګيږو...» د پيره‌دار د پښو د آواز په نږدې کيدو سره، ملګری يوې څنډې ته شو. پيره‌دار زما د سلول دروازې ته نه کتلې او زه هماغه شان د دروازې مخې ته ولاړه وم. ملګري ورزش کاوه.

* * *

يــوه ورځ ملګري په خوشــالي ما ته وويل: «په بهر کې يوه بلــه ډله فعاليت کوي چې مذهبي دي. خو ماترياليسم تاريخي مني». يو بل ملګري د دې ډلې په اړه وويل: «هغوی هم د وسله والی مبارزی د خط مشــې له مخې فعاليت کوي». د دغه زيري په اوريدو ســره ډيره خوشــاله شوم. دغې موضوع نه يواځې زموږ د تګ لارې په ســموالي ټينګار کاوه همدارنګه موږ ته يې هيله راکوله چې نور مبارز دوستان هم لرو، کولی شو يوموټی د خپل وينې څکونکي دښمن په وړاندې ودريږو.

* * *

لمړی شــماره ســلول چې د دروازې په څنګ کې يې قرار درلود، انتقال شــوې وم او د بهر غږونه مې ښه اوريدل. يوه ورځ د ښځکی او پيره‌دار تر منځ د لوښو د وينځلو په سر شخړه روانه وه. ښځکی په آمرانه لهجه ويل: «ستا دنده دا ده، هر څه چې وايم اطاعت يې وکړې، واخله دغه لوښي ووينځه!» پيــره‌دار ويــل: «زما دنده پيره‌داري ده نه د لوښــو وينځل!» او له دې کاره يې ســرغړونه کوله. د پيره دار له دې چلند څخه ډيره خوشاله وم او د ښځکی له آمرانه چيغو څخه مې د کرکې احساس کاوه.

د راتلونکي ايده آلي نړۍ په هکله مې فکر کاوه. د کمونيســم ښــکلې نړۍ چې هلته د تحکم او اطاعت کولو خبره نشته او د زبيښناک ګرو طبقو هيڅ پيلامه او څرک نه پاتې ګيږي. د دې موضوع پــه زړه کول او همدارنګه ليدل مې چې زه هم کولی شــم د دې ډول نــړۍ د جوړولو په خاطر برخه

---

* «اختای» د ملګري نابدل مســتعار نوم وه او پدې نوم يې شــعرونه ويل. د شــعر مانا دا ده: ژوندی دوي اختای!

اخلم، ډیر شوق او لیوالتیا مې ټول وجود پسې آخیستی وه او په قهقه مې خندل. غږ مې سلول څخه بهر ووت، ښـځکی په تعجب سـره آواز راوکړ چې: «څه کار کوې، شعر وایې؟» ځواب مې ورکړ: هو شعر وایم!...

* * *

د لړم میاشـتې وروستۍ ورځې وې چې پرته له ما، ملګرې شهین ملګرې رقیه او احمد ریاضي[۹] څخه چې ویل یې غواړو آزاد یې کړو. نور ټول ملګري یې د اوین زندان ته بیولي ول. ځمکپوړ (زیر زمیني)تشـه وه. هوکړه شـوې وه چې موږ هم اوین ته یوســې. بالاخره څو ورځې وروسته اوین څخه څو تنه راغلل. زموږ سـترګې یې وتړلې امبولانس ډوله موټر کې چې بهر ترینه نه لیدل کیده د اوین زندان ته بوتلو.

## بریا

**ورځې پر له پسې تیریږي**

**او موږ د خپلې انقلابي روښانه راتلونکې سوچ کوو**

**دغه ځای د ټول هیواد د حوزي لنډ مهالی زندان دی**

**موږ هر یو د زیرزمینۍ په ۱۲ قبرونو کې بندیان**

**دلته شپه او ورځ یو شان ده**

**او زموږ د سلول کم نوره څراغونه**

**موږ د ورځې ساعتونه د خواړو د ډول له مخې پیژنو**

**که د زندان د لوېي ادې په آمر چې موږ ورله د ښایسته نڅا کوونکې ښځکۍ نوم ورکړی**

**که زموږ په سلولونو کې یو کوچنی سوری هم خلاص وي**

**له دې سوري څخه د انقلاب تند او تاوده پیامونه لیږدوو چې:**

**«باید د بلشویک په شان وجنګیږو. زموږ د زړونو اور لکه د ګولۍ اور.»**

**او یا په خندا سره یوبل ته د بریا زیری ورکوو**

**او زموږ د سلول سوري چې د مزدورانو یوازینی ځار ځایونه دي**

**د هغوی حرکتونو ته ګورو**

**هرکله چې یو ملګری زموږ د سلول له مخې تیریږي**

**له غوسې او کرکې موټې شوي لاسونو ته په هوا کې ټکانونه کوو**
**یانې مړه د وي مزدوران، مړه د وي جلادان**
**یووالی، مبارزه، بریا**
**هغه شعار دی چې د لاس په درې علامو ځرګندوو**
**دښمن د خپل خیال له مخې موږ چوپتیا ته اړ باسي**
**خو موږ ځپانده ځپې یو ارام نلرو**
**په هره بڼه که د دیوال ټکول هم وي**
**یا په ویرجنو نغمو یا په ځو اشارو، خپل پیامونه یوبل ته رسوو**
**او دښمن په بې عقلي سره ګمان کوي د چوپتیا الهه موږ ځخه غوښتي چې**
**دهغوی ږیرو باندې وخاندو**
**زړه ځخه پورته شوی شپیلک چوپتیا ماتوي**
**د آزادي ترانه یا انترناسیونال یا د سیاهکل خاطرات غوږونو ته رسوي.**
**او دا پخپله د دې ښکارندویې کوي، ښاغلی بوډا استوار چې نوم یې فرهنګ**
**دی**
**او یا د پیرهدارانو مشر چې له غوسې خوټیږي**
**«دغه بې غیرته ځوک دی چې اشپیلاق وهي**
**دا خو ستا د آبۍکور ندی»**
**په بیړې سره کلي د دروازې په قفل کې وځرخوي**
**پدی هیله چې خپل قدرت وښایې**
**خو آی مزدوره په ړندو سترګو یې لولې**
**او هرکله یې چې د راز خبرې غوږ ته رسیږي**
**د پشوګانو په شان ورو ورو را نږدې کیږي**
**پدې هیله چې موږ ناخبره (غافلګیر) ونیسي**
**خو آی مزدوره دا ځل مو بیا هم په ړندو سترګو کتلي**
**چریکان تر دې زیات هوښیار دي کوم چې ته فکر کوې، احمقه!**
**یو ظریف مګر پیاوړی غږ په فضا کې تاویږي**
**ښاغلیه  بلې اوبه راوړئ**
**لږ صبر وکړه تش جام نشته**

او یا په مېړني او قهرجن آواز چې
ښاغلیه بلې ټټی ته ځم
لږ صبر وکړه ډوډی خورو
او نڅاګره ښځکی چې د قدرت عاشقه ده انګولي (زوزه کشیدن)
څو واری ټټی، قانون د مات کړ
خاندو، تر دې زیاتې ملنډې امکان نلري، ټټی ته د تګ لپاره قانون
د دغه طبعي انساني اړتیا لپاره!
د ورځې درې ځله ټټی، درې ځله خواړه، درې ځله سګرټ
په اونی کې یو ځل حمام او د نارینه ؤ لپاره د سر او ږیرې اصلاح کول
دا یو قانون دی، مالومه نده، دغه مسخره قانون د شورا له مجلسېنو
او سنا څخه تیر شوی او که نه!

* * *

موږ خپلی ورځې پدې ډول تیروو
خو زموږ هیڅ یو حتی یوه لحظه هم
ستم او ستمکارانو سره جوړ جاړی نه کوو
همدا ده چې کله کله په لاسونو کې اتکړی او په پښو زولنې لرو
کله په اصطلاح محبت څخه د غوږې مړی
کلتور را زده کوي
تر ټولو د خندا وړ مذبوحانه هلې ځلې د دې لپاره چې
د هغه کم سیاله سړي په وړاندې د پښیماني لیک وړاندې کړو
آفرین پدې باطل خیال
کوم لاس دی چې د دښمن لاس ته لاس ورکړي؟
کومه ژبه ده چې د دښمن درواغجنه غوړه مالي په کلکه رد نکړي
ښاغلی سروان یا سرهنګ د خپل خیال سره سم د مهرباني له مخې
د ځمکپوړ په هدیره کې سر راوړاندې کړي
څنګه یاست؟ ښه یو. چټي هڅه کوي چې زموږ د تندي غوټې خلاصې کړي
یا زموږ شونډې په خندا خلاصې کړي
د سپیتانه دغه محل کې اجازه نه ورکوو، لکه د مار چیچلي په شان له ډیرې

**غوسې په ځان تاوېږي**
**څومره چټې خيال دی چې ځان قدرت بولي**
**نڅا ګره ښځکې يادونه کوي، د سرهنګ د راتګ وخت کې په پښو ودرېږئ**
**ځواب اوري، هغه ستا لپاره سرهنګ دی**
**خو هغه څوک زموږ لپاره مشر او د درناوي وړ دی چې**
**کارګر دی او لاسونه يې تڼاکې دي**
**بزګر دی چې په ظلم يې ملا ماته شوې**

* * *

**ورځې همدا شان پر له پسې تيرېږي**
**د شپې د تړلو دروازو شاته اتکړي په لاسونو کې**
**د څه لپاره سوچ کوو؟**
**د څپانده تير وخت، د اوسني بې حرکته وخت يا د راتلونکي انقلاب لپاره**
**زموږ فکرونه د وخت درې ګونو پړاونو سره تړلي دي**
**هغه څه چې زموږ وجود ته ګرمي رابخښي**
**د بريا هيله ده**
**کله د خپلې ډوډۍ خميرې څخه انځورونه جوړوو**
**که موکه په لاس راشي، يوبل ته يې ليږدوو**
**دغه کوچنۍ ډالۍ په مختلفو ناچيزه بڼو کې**
**زموږ په زړه کې د شته اور څرګندوی کوي**
**تور کوچنی کب يا غوڅونکی خنجر**
**موټی شوي لاسونه يا مات شوي ځنځيرونه**
**د آزادي کوتره يا لکۍ لرونکی ستوری**
**د پليدو ديو سيرتانو د ښېرو انځورونه**
**يا په خميرې باندې د «ونسه رموس»* ليکنه**

---

* ونسه رموس يوه اسپانيايي کلمه ده «موږ بريالي کيږو» مانا لري، چې ملګري چه ګوارا هميشه دخپل ليک په پای کې ليکله.

**سوسن، په دوامداره توګه د مرتجعینو په غوږو کې د ناهیلۍ دغه آیاتونه لوستل**
**«توتکیو، توتکیو زموږ په کور کې درد او غم دی»**
**او «زموږ زړونه د وینو ډکې کاسې دي»**
**خو دغه د ملګري تود غږ دی چې:**
**«زموږ خلک په وینو کې ډوب دي»**
**او په کرکې سره، د هرې وینې ځواب وینه**

* * *

**تیلفون زنګ وهي، لسمه شمیره پورته راولئ!**
**یا دولسمې شمیرې څخه یو کس**
**ملګری د تحقیق لپاره بیایې**
**زموږ په سینه کې زړونه درځیږي. چې څه به وپوښتي؟**
**څوک یې نیولی دی؟**
**هر ځل ډاکتر ګورې یا ترس وینې**
**پوه شه چې یو مبارز یې د هغوی په اصطلاح لاش و پاش کړی دی**

* * *

**کله نا کله د سرتیرو د موزو غږ هیله درکوي**
**که لاسونه له اتکړیو او پښې له زولنو ازادې ولرې**
**په لیوالتیا چې له سورئ څخه د بهر ننداره کوې**
**حلقه به ګوش غلامان وینې**
**چې په مجسمو بدل شوي**
**هرومرو د مزدورانو بادار د تحقیق لپاره راغلی**
**هوکې د زندان رییس دی!**
**دلته بل ځای نشته. اوس ملګري**
**یوبل پسې په تړلو لاسونو او تړلو سترګو**
**شپه او ورځ نور زنداني کوي**
**او موږ له روزان څخه د کتلو وروستنی انتظار کوو**
**زموږ سترګې یو په بل لګیږي. زموږ سترګې یوبل سره غوټه کیږي**
**په دغه کتو کې خبرې پرتې دي**

**یانې ملګریه. دښمن چې دغه د وینو ډنډ جوړ کړی پخپله په کې ډوبیږي.**
**امپریالیزم خپل ګورکن په خپلې ګېډې کې روزي**

* * *

**کله په شپې کې یو ځل یا هره شپه**
**د قمچینو غبرونه اورې چې په بې رحمې سره واریږي**
**یوه خوا مرګ د وي پر تا ای مزدوره چیغې**
**بله خوا ووایه ووایه نارې**
**او چیغې نه وایم**
**وهه خاینه، ما وسیزه، په لاسونو او پښو مې میخونه ټک وهه.**
**تورګدهل (سیاهچال) کې مې واچوه، د مار طعمه مې کړه**
**هر څه چې غواړې ویې کړه**
**خو زه خپله ژبه د خلکو په ضد نه کاروم**
**نورې چیغې هم وحشیانه پورته کیږي**
**په ګولیو د سوری سوری کوم!**
**ملګری خاندي، تر دې کومه نیکبختي**
**د خلکو په لار کې مرګ، د حق او آزادي لار**
**دښمن تر پخوا ډیر بې وسې بیا هم روحي پټکې کوي**
**کورنۍ د تیت و پرک کوم او اوه پیړۍ د بیچاره کوم**
**ملګری خاندي: د حیرانتیا ځای ندی خاینه، د دې دستګاه کار ظلم دی**
**دښمن د ملګري په ارزښت پوه شوی او پداسې حال چې له غوسې یې ځګ په خوله چیغې وهي:**
**ملګری به د د سترګو په وړاندې ټوټه ټوټه کړم**
**ملګری خاندي: ملګری مې هم تر خلکو جار**
**دا ځل یې ملګری بربنډ کړی او په ناوړه عمل لاس پورې کوي**
**ریېس امر کوي، په همدې حال کې یې انځور واخلئ**
**پداسې حال چې د ملګري وروستۍ سلګۍ دي وایې**
**تاسې د خپل جنایت سند پخپله برابروئ؟**
**چیغې چپ کیږي. نور نو ملګری بیهوشه دی**

**د ځنګ په دیوال د ټکهار څو غبرونه اوریدل کیږي**
**وینئ یاست هو، د ربړونې غبر اورې؟**
**د وینو څکونکي جلاد په منګلو کې مبارز پروت دی**
**او په شک سره پوښتي ایا مورږ ماته خوړلې؟**
**ځواب: نه، ملګري اوس هم د جګړې په حال کې دي**
**او وي به مبارزین چې وجنګیږي**
**دا مهمه نده چې مورږ وژل کیږو**
**حتی دا هم مهمه نده که د مبارزینو یوه ډله له منځه ځي**
**مهمه دا ده که وسله د یو ملګري له لاسه لویږي**
**چې بل لاس وي هغه وسله پورته کړي**
**او دا نه چې یو لاس بلکه زرګونه لاسونه وسلې اخلي**
**انقلاب لکه د ځپانده سیلاب په شان په لاره لویدلی**
**په ځپو ځپو د زمان د کنډو کپر په لور جریان لري**
**او هیڅ خنډ یې په وړاندې مقاومت نشي کولی**
**خلک به راپاڅیږي، بری زموږ په برخه دی**

او په ترنم سره یې وایې:

**سـهار راځـي، سـهار راځـي تیـاره لـه منځـه ځـي**
**یوه شـپـه هم نــه ویدیــږم چې دخلکو وینې عبث شـي**
**هغه سرونه چې جـاریــږي خومره اورونه چې بــلیږي**
**خو په پـای کې زما ملــګریه نړی‌له ظلم څخه خلاصیږي**
**نړی‌ له خوب څخه را بیداریږي کیږي**

د امنیتي حوزې زندان رقیه دانشګري

د ۵۰ کال دوبی

# د دریم څپرکي توضیحات

۱- دکتر تقي اراني: په ایران کې د کمونیست کوند له رهبرانو څخه وه چې د رضاشاه د دیکتاتوري په وروستیو شیبو کې د زهرو په پیچکاري زندان کې شهید کړی شو.د هغه د زړورتیا کېسې د مبارزینو لپاره ځواک بخښونکې وې، چې د هغه د «ماتریالیسم دیالکتیک» اثر څخه د ایران مبارزینو همیشه ګټه اخیستله.

۲ – د خلکو د ارمان ډله: دا د کمونیستي ډلګیو څخه یوه ډله ده چې د خلکو د فدایي چریکانو د فعالیتونو سره په یو وخت کې په مستقله توګه وسله واله مبارزه پیل کړه او عملیات یې هم سرته ورسول. د هغوی د مرکزیت پنځه غړي (همایون کتیرایي، هوشنګ ترګل، بهرام طاهر زاده، ناصر کریمي، ناصر مدني ) د سختو ربړونو په وړاندې تر زړه ور مقاومت وروسته، د ۵۰ کال د مهر په میاشت کې تیر باران شو.

۳ – حبیب فرزاد: د خلکو د فدایي چریکانو د سازمان غړی دی چې د ۵۰ کال دوبي کې ونیول شو او په لس (۱۰) کاله بند زنداني شو.

۴ – خلیل سلمان نژاد: د خلکو د فدایي چریکانو د سازمان غړی و. هغه د کوکتل مولوتوف د جوړولو په وخت د چاودنې له کبله د بدن ټول غړي په اور سوځیدلي وه، په داسې حال کې چې تر چاودنې وروسته یې هم خپله مبارزه پاله روحیه ساتلې وه شهید شو.

۵ – ۱) احمد خرم آبادي: د پوځ یو له زړه ورو افسرانو او د خلکو د فدایي چریکانو د سازمان له سمپاتیزانو څخه وه. د ۵۰ کال پسرلي کې ملګري کاظم سلاحي سره یو ځای تیرباران شو.

ملګری احمد خرم آبادي د دندې افسر وه نه د پوځ افسر.

۲) کاظم سلاحي: د خلکو د فدایي چریکانو د سازمان غړی وو. د ۴۹ کال د دي په میاشت کې دښمن سره د یوې نښتې په ترځ کې وروسته تر هغې چې د دښمن یو مزدور یې د خپلې یواځنۍ دفاعي وسلې چاقو په واسطه له پښو وغورځاوه، ونیول شو او د دوه میاشتو په اوږدو کې تر ډیرو سختو ربړونو لاندې راغی او په پای کې د ۵۰ کال د اردیبهشت په میاشت کې تیر باران شو.

۶ – کارلوس ماریګلا: د برازیل د انقلابي جنګیالیو څخه وه چې ۴۰ کاله یې د امپریالیزم په وړاندې جګړه وکړه او د عمر په ۵۴ کلنۍ کې دښمن سره د یوې نښتې په ترځ کې په شهادت ورسید. د «چریک شهري» کتاب چې د برازیلي انقلابیونو د ښاري چریکي جګړې د تجربو ټولګه ده د هغه

اثر دی.

۷ – چنګیز قبادي: د خلکو د فدايي چريکانو د سازمان د کليوالي عملياتو د تدارکاتو د ښاري چريکانو د ټيم قومندان وه. هغه يو ځل د ۵۰ کال پسرلي کې د کليو د پېژندنې عملياتو په ځنګ کې مامورينو سره تر نښتې وروسته د فدايي عمل په اجرا کولو سره په تېښته بريالی شو. د ۵۰ کال د مهر په مياشت کې د دښمنانو له خوا د ټيمي کور د محاصرې په مهال دوه ملګرو (سيد نوزادي او سالمي) سره يو ځای تر زړه ورې جګړې وروسته په دښمن خپلې آخيرنۍ ګولۍ واورولې، د چاودونکو توکو په چاودنې يې خپل وياړلي ژوند ته د پای ټکی کېښود.

۸ – مهرنوش ابراهيمي: د چنګيز قبادي مېرمن او د مورچل ملګرې، د کليوالي عملياتو د تدارکاتي ټيم غړې وه. هغه هم د کليو پېژندنې په مهال ونيول شوه. خو د زړه ورو عملياتو د سرته رسولو پايله کې په تېښته بريالۍ شوه. هغې د ۵۰ کال په مهر کې د ټيمي کور د تخليه کولو په وخت ځان محاصره کې وموند، د دښمن په وړاندې د وسلو او مهماتو تر کارولو وروسته په مېړانې سره شهيده شوه.

۹ – احمد رياضي: يو له هغه سمپاتيزانو څخه و، چې دښمن د هغه له وجود څخه د خلکو د فدايي چريکانو د سازمان غړي مناف فلکي په نيولو کې ګټه واخيستله.

# په اوین کې ژوند ته کتنه

زه یې په اوین کې امبلانس څخه کښته کړلم او هماغه شان یې پټې سترګې سالون ته بوتلم. څه موده یې په سالون کې وساتلم. د سترګو کونج څخه مې کولی شول کسان وګورم چې په چوکیو ناست دي. بیا یې موږ هر یو (زه، ملګرې شهین او ملګرې رقیه) کوټې ته بوتلو. کله چې یې سترګې راته خلاصې کړې، مصطفوي، فهیمي، تهراني، حسین‌زاده او ځوان مې ولیدل چې ټول زما په لیدلو وخندیدل. وایې بـه د یـوې موضوع په یاد لویدلي دي. په خود ماني توګه یې وویل: «دا څرنګه تحقیق دی چې تا ځواب ورکړی؟ تا په هر څه ملنډې وهلي دي، دغه پاڼې د دې لامل شوې چې موږ ټولو وخندلې».

بیـا یې وویل: «اوس کاغذ درکـوم چې هر څه په مفصله توګه ولیکـې». پاڼې یې راوړې چې پرې لیکل شـوي ول: «د دې لارې د غوره کولو انګیزه او همدارنګه هغه ټول فعالیتونه چې تر اوسـه د سـرته رسـولي په دې پاڼه کې ولیکه». ټینګار یـې وکړ چې زیات ولیکم. پوهیـدم کله چې زنداني د امنیتي حوزې له تحقیق وروسـته اوین ته لیږدوي، د دې لپاره وګوري هغه مطالب یې چې په حوزې کې ویلي او د تحقیق پاڼې ډکې کړي سمې د ي که نه؟ په اوین کې هم پاڼې ورکوي او هماغه پوښتنې تکراروي. که زنداني په حوزه کې دروغ ویلي وي او د دغه دوه پاڼو په تحقیق کې تناقض وپیژندل شي نو په دې ډول یې د تحقیق د صحت ازموینه سـر ته رسـولې، دغه کار د ټولو هغه کسـانو په اړه سرته رسیږي چې په حوزه کې یې تحقیق ورکړی وي،ما هم په لنډه توګه هغه څه چې د حوزې د تحقیق په پاڼه کې لیکلي ول پدې پاڼه کې هم ولیکل.

مزدورانـو په ډیرې بیشـرمي سـره ویلې: «د بهروز په وژلو ډیر افسـوس کـوو. ځکه چې د هغه اطلاعات ډیر هراړخیزه ول او کولای یې شـول موږ سـره ډیره مرسـته وکړي» قاتل حسـین‌زاده په افسوس سره وویل: «ډیر شیان یې ځان سره یوړل...».

د حوزې په زندان کې مې ښـځکی څخه اوریدلي ول چې خائن شـاه هره ورځ سـاواک او حوزې سـره تیلفوني اړیکې نیسـي د تحقیق او ربړونو د وضعیت د پایلو پوښـتنه کوي. د ملګري بهروز د

مرګ له خبرتیا وروسته يې ويلي و: «دې موضوع څخه خواشينی يم کولای مو شول هغه څخه زيات اطلاعات تر لاسه کړي وای».

* * *

دوه ورځــې يوازې وم. په دريمــه ورځ مونږ درياړو ته په يوې کوټه کې ځای راکړل شــو. څومره ستره خوشالي! په انفرادي سلولونو کې زمونږ د هر يو لپاره حتی دغه فکر چې مونږ يوه ورځ يوبل سره يو ځای اووســو هم خوندور و اوس مو چې دلته په لمړي ځل يوبل ســره له نږدې وليدل له خوشالي نه پوهيدو څه کار وکړو. يوبل مو په غېږ کې نول او د خوشــالئ اوښــکې مو پاکولی. خوشالي تر دې کچې وه مونږ نيم ســاعت پرته له دې چې خبرې وکړای شــو خندلې. ملګرې رقيه د بريا شــعر چې خپله يې په زندان کې ويلی و ټوټه ټوټه وايه. دغه شعر زمونږ شريک خاطرات ژوندي کول او ډير زړه راښــکونکی و يوبل ته مو دومره خبرې درلودې چې دوه شــپې ورځې بيده نشــو. د خپلو نيولو لامل او دا چې په دغه موده کې مو د دښــمن له کړو وړو څخه څه تجارب تر لاســه کړي ول، درواغ چې دښمن ويلي ول، هغه خبرې چې ښځکی د جدايې احساس پيداکولو لپاره مونږ هر يو ته کړې وې... هغه مطالب ول چې يوبل ته مو ويلې.

* * *

د هغه کوټې موقعيت چې مونږ په کې اوســيدو دا رنګه و: انګړ څخه درې يا څلور ګامه اوږد او پلن مربع شکلي سالون ته لار رسيده. کينې لوري ته لويه کوټه وه چې د کار د کوټې په نوم يادیدله او په هغه ځای کې جوان، د رياست مقام درلود. د هغه په څنګ کې ۵ په ۲ يا ۳ متره پلنه لار وه چې د دوه کوټو دروازې د هغه په مخ پرانيستل کيدې، له دغه کوټو څخه د تحقيق لپاره کار اخيستل کيده. د دغه دهليز په پای کې بل دهليز ته چې ۳ يا ۴ متره پلن و، لار وتلې وه، د ټېې دروازه هم هلته وتلې وه. په دغه دهليز کې څوکی ايښــودل شــوې وې چې بنديان يې هلته کښينول او تحقيق به يې ترې کاوه. هغه کوټه چې مونږ په کې اوســيدو د انګړ دروازې ته مخامخ وه. له کړکی چې د کتلې ګنې ونې ښــکاريدې، د کارغانو تر اوازه پرته چې د ننښــتر ونو له ښــاخ څخه بل ښــاخ ته الوتل نور هيڅ نه اوريدل کيدل، کله ناکله به د سپيانو غوغو هم پورته کيده او بيا وروسته چوپيدل چې دا په خپله د چاپيريال د دروندوالي لامل کيدل.

همدغــه چاپيريال دی چې مزدوران ورڅخه د ســاختګي اعدام لپاره ګټه اخلي. د اعدام دغه راز چلند يو ډول روحي ربړونه ده چې تر اوسه د ځينو ملګرو په اړه سرته رسيدلي دي او سرته رسيږي: ســهار وختي پدې عنوان چې غواړي يو زنداني تيرباران کړي، د هغه ســترګې پټوي او ونې ســره يې تړي. د اعدام ډله جوړوي او تشــريفات ســرته رسوي. لمــړی د اعدام ډلکــی د زنداني په مخ کې




(د اوین د ساختمانونو تقریبي نقشه او هغه کوټه چې موږ په کې اوسیدو)

ســمبالوي: بيا د اعدام حکم لولي چې: «ته... (د زنداني بشــپړ ځانګړتياوې) په دغه تور... د قانون د... مادې له مخې په اعدام محکوم شوې يې اوس ستا په اړه د اعدام حکم سرته رسيږي». بيا د اعدام ډلې ته د تيارســئ فرمان ورکوي خو سمدستي مخکې تر هغه چې د اور فرمان صادر کړي، يو مزدور پــه بېړه ځان رســوي او په چيغو چيغو وايي: «لاس ونيســئ، همدا اوس امــر راغی چې اوس يې مه اعداموئ» دښمن پدې چلوټې غواړي په اصطلاح زنداني باندې د مرګ مزه وڅکي، د اعدام د شېبو ويره او وحشــت حس کړي او په پايله کې خپله روحيه له لاســه ورکړي، اراده يې کمزورې شي او په مرګ باندې د تهديد له کبله په خبرو راشي.

په کوټه کې يې زموږ لپاره درې تختونه له توشــکو او بالختونو ســره ايښودي ول. دا ځل ساواکيان د امنيتي حوزې برخلاف څومره ښه او هوښيار خلک ول؟! او موږ سره يې په ډېر ادب او درناوي! چلند کاوه. حسين‌زاده، جوان، تهراني او دوه درې کسه نور چې په نومونو يې پوهه نشوم، يو دوه کرته يې زموږ کوټې ته سر د ننه کړ. خو زياتره مصطفوي او هوشنګ فهيمي زموږ کوټې ته راتلل. فهيمي چې ښځينه نرۍ غږ لري، هڅه کوله خوندور صميميت منځ ته راوړي او مصطفوي هم په بېشرمه حماقت سره هره ورځ نوې کرتۍ او شيک پطلون اغوسته او کوټې ته راته. غوښتل يې ځانته رومانتيکي حالت غوره کړي بېشکه ځان سره يې څه حساب او کتاب درلوده: بالاخره دا خو نجونې دي!

د غذا له پلوه که څه هم نوعيت يې د حوزې په پرتله ښه نه و خو د مقدار له پلوه کافي ول. د سبا ناري په هکله مېلمســتيا توده وه! هر ســهار يې موږ ته مربا او کوچ يا هګۍ او پنير د درې کســانو له استحقاق څخه زيات راکول. د ورځې په هر وخت کې يې چای راوړه. هر ساعت به سرتېري دروازه ټکوله چې چای څښو او کنه.اريانوونکی چلند و. راډيو يې هم موږ ته راکړې وه د اونۍ څو کتابونه، «زردهای سرخ» او د مصطفی رحيمي د «نګاه» کتاب.

د راډيو په هکله شکمن ولو چې په هغې کې يې د غږ د ثبتولو دستګاه ايښودي وي. يو سيم هم د کوټې د ديوال له څنډې څخه تير شوی او د جوان تر کوټې غځيدلی و، زموږ پام يې ځانته جلب کړی و. په هغه مو لاس واهه غوښتل مو وپوهيږو د څه لپاره غځيدلی دی. کوښښ مو کاوه ټېی ته د تګ په وخت کې د هغه اوږدوالی اندازه کړو او ووينو چې نورو کوټو ته هم غځيدلی دی کنه. په هر حال د سيم او راډيو د وجود په خاطر مو نه غوښتل دښمن زموږ په خبرو پوه شي نو ډيرې ورو خبرې مو کولې يا مو د مځکې په مخ ليکل او په څنګ کې مو د فهيمي او مصطفوي خبرو ته ډېر پام کاوه چې وکولی شو د هغوی د خبرو څخه وپوهيږو زموږ خبرې يې اوريدلي دي کنه.

پــدې ځای کې يو مزدور د ملګرې رقيه څخــه د تحقيق لپاره راته او د «ټي ان ټي» (چاوديدونکي

مواد) جوړولو په اړه يې پوښتنې کولې. دغه مزدور ځان د کيميا کارپوه معرفي کاوه او ويل يې په دغه ځانګه کې د تحقيق لپاره دلته راغلی يم. په ريښـتيا سره دغه مزدوران څومره بې شرمه دي. ايا واقعاً حماقت يې تر دې کچې دی چې فکر کوي ښايي دغه راز خبرې يې د منلو وړ دي؟

مصطفـوي د هغـه محصل! په هکله خبـرې کولې چـې د چاوديدونکو توکو په اړه زيات شـيان پيژنـي او شـکمن کور ته د تللو په وخت کې هغه لمړي کتار کـې تر ټولو په مخ روان وي که چيرې چاوديدونکي توکي په کار اچول شوي وي خنثی يې کړي.

د لينـدی (قوس) مياشـتې پـه لمړی ورځ کله مې چـې د کوټې کړکۍ څخه د بهـر ننداره کوله، مـزدوران مـې وليدل چې ګاډي يې کتار درولي وې. د اريا ګاډی او بنز... او په دوه پوځي واګونو کې وسـايل ځای په ځای شـوي ول، داسې ښـکاريدل چې اذوقه او مهمات به وي، څو سرتيري ځنګ په ځنګ هلته ناسـت ول. هغه جاسـوس بچی، د چاوديدونکو توکو کار پوه چې اصلاً مستنطق نه و! يوازې يو «سـاده محصل» و! (کله چې به مو غوښـتل د هغه په اړه خبرې وکړو دغه جمله مو د هغه په اړه کاروله) هم هلته له څو مزدورانو سـره چې معمولي جامې يې اغوسـتې وې په ګاډو کې سـپاره شـول او ولاړل. لمړی مو فکر وکړ چې د يو کور د محاصرې لپاره ځي. خو په ښـار کې د يو کور د محاصره کولو لپاره د پټاوي (اسـتتار) جامو څه مفهوم درلود؟ ځنګل ته تلل، يا يې د يو سـاده مانور لپاره دغه ټغر (بساط) اوار کړی و؟

موږ درېواړو تر هغه ځايه چې ليدلی مو شـول په هغو سـترګې نښلولې وې، په همدې فکر کې وو چې په يو سـرتېري د يو خبېور سـاوا کي تحکم اميزه چېغه پورته شـوه او له هغه سـره يې دعوا شوه چې ګاډی د ولې ښـه وينځلی ندی، زموږ فکرونه وشـکول. پدې ځای کې ټټی ته د تګ لپاره څوک مزاحم نه و او هر وخت چې مو غوښتل تللی شولو. دغې موضوع له دې لحاظه اهميت درلود او ښه و چـې ملګـري د تحقيق لپاره په دهليز کې کښيناسـتل. کله به چې ملګري په دهليز کې ول، زموږ لپاره ارزښتنا که وختونه ول. درېواړه يو يو د ټټی په پلمه له کوټې وتلو او ملګرو سره مو روغبړ کاوه، موټې شـوي لاسـونه مو هغوی ته ښودل او شعارونه مو ورکول، په هر صورت مو د خپلې همبستګۍ يادونه کوله. پدې وختونو کې زموږ درېواړو وجود له شور او هيجان څخه ډک و، زموږ لپاره خوشالي بخښـونکې او د هغو لپاره چې د تحقيق پاڼې يې ليکلې ارزښـتنا که شـېبې وې. يادونه مو کوله چې: د خلکو د ازموينې په جلسـه کې ناسـت ياست بايد په دې ازموينه کې ومنل شئ. ځينو ته مو ويل د خلکو په ازموينه کې نوښت (تجديد) مانا نلري مواظب اوسه چې هرومرو د منلو وړ نمرې واخلې.

پداسـې چاپېريال کې چې دښـمن په خپل ټول ځواک کوښښ کوي په فرد کې د تنهايي احساس

پیدا کړي او هغه سـره همیشـه د خیانت خبرې کوي او یا له مختلفو لارو هڅه کوي ملګري یوبل ته بدبین او بې باوره کړي، د رینښتینو مبارزینو د خوشاله څېرو لیدل او د هغوی سلام ورکول د دې ښـکارندویې کوي چې خلکو سـره دهغوي ترون همدا ډول ټینګ دی اوس هم یو بل سره ملګري دي. سرې ته بیساری ګرمې او شور بخښي. موږ پدې دهلیز کې زیات رښتیني مبارزین لیدل. د دغو مبارزینو چلند دومره له ویاړه ډک وه چې دښمن د خپلې همیشګي غوښتنې سره سره ونشو کړای د هغوی تحسین او ستاینه ونکړي. مصطفوي ویل: «نور نو حساب موږ سره دی هر وخت چې وګورو دوه کسـان د خلکو کلمه په دومره شـوق او مینې په خولې راوړي باید پوه شـو چې د خلکو د فدایې چریکانو د سازمان غړي دي» هغوی د ملګرو تحقیق ورکولو وروسته ډیر زیات غوسه کیدل. ملګرو د هغوی د دې ډول پوښـتنو په ځواب کې چې د کوم ځای تبعه یاسـت، څه شـغل لرې... په پاڼو کې لیـکل: زه د ایـران د خلکو تبعه یم. زه د خلکو فدایې چریک یم. دا زما شـغل دی... زه د خلکو په خاطر مبارزه کوم. بری د خلکو دی.

* * *

نارینه ملګري په انفرادي سلول کې ول. خو د یوې مودې لپاره، د دیرشو یا پنځه دیرشو کسانو په شاوخوا کې چې د سازمان پخواني غړي ول یو د بل څنګ کې کتار کړي ول. ملګری مسعود احمد زاده، حمید توکلي، سـعید آریان[۱]، عباس مفتاحي، اسـداله مفتاحي[۲]، علیرضا نابدل او یو شـمیر مجاهد ملګري له هغې ډلې څخه ول، ملګری مناف[۳] یې په انفرادي سـلول کې د ایران د خلکو د ازادیبخش سازمان یو ملګري سره اچولی و.

* * *

پدې ځای کې د چوکیدارانو په ځای، پیره‌داران او د سرتیرو دلګۍ مشران ګمارل شوي ول. د دې لپاره چې زموږ د انقلابي کارونو په اړه دهغوي چلند وګورو، ما به ویل: پوهیږئ، د دغه ځای جلادانو زما ورور وژلی دی؟ کوم سـرتیري یا دلګۍ مشر زما دغه خبرې د جوان او ساواکیانو غوږ ته رسولې وې. له اوین څخه زموږ د راتګ دوه ورځې وروسـته جوان زه خپلې کوټې ته وغوښـتم او ویې پوښتل ولې د دغه خبرې کړیدي؟ و مې ویل: د دې لپاره چې واقعیت مې ویلای وي. اوس چې ستاسې له نظره جلاد کیدل ویاړ شمیرل کیږي، نو د دې خبرې وینا څه ستونزه لري؟!

جـوان قـواره بدله کړه او په تهدید امیزه لهجه یې وویل: «خپلو خبره ته متوجه اوسـه، دا حوزه نه ده، سرتیري موږ ته وفادار دي، ستاسې د کوچني حرکت ګزارش موږ ته رارسیږي، ښه ده، هر څوک پوهیږي چې بهروز دهقاني د ساواک او حوزې مامورینو وژلی دی. دا خو ویلو ته اړتیا نلري!».

شــاباس د وي پدې بیشــرمي او سپین سترګي توب! د هغه دغه خبرو زما په زړه اور بل ګړ: او زما په زړه کې چې د خلکو بې پایه کرکه او غوسه پرته وه نوره هم ورزیاته کړه! پریږده چې همداسې وي، خلک چیغې وهي: وویریږئ زموږ له قهر او غوسې، د هیلو سور درمن اور اخیستی!

* * *

د حسیني ښځه چې ۳۵ ــ۳۶ کلنه وه کله نا کله به په څادري کې زموږ څنګ ته راتلله په درناوي او د ځان په کوچني ښــوولو به موږ ســره مخامخ کیدله. یو ځل ما سره د عینکو اخیستلو لپاره ښار ته راغله. د مازیګر په وخت چې هوا ورو ورو تیاره کیدله، د پرده لرونکي موټر د شــا په برخه کې چې د بهر څخه یې لید لوری نه درلود سپاره شولو. یو لنډ قدی ببر سری دلګی مشر هم موږ سره و. هغه مې ښه وپلټه چې وګورم وسله لري او که نه؟ څه مې ونه لیدل. مقصد د سترګو معالج داکتر خرمي و له هغه ځایه چې د واټ موقعیت مې نشو پیژندلای پوهه نشوم چې په کوم ځای کې موقعیت لري. د ســترګو کمزوري او سربیره په هغه د شپې تیاره د دې لامل شوه چې پنځه ګامه مخکې لار ونه وینم. کله چې موټر څخه کښته شوم او شاوخوا مې وکتل پرته له سیورو مې بل څه ونه لیدل وړاندې وروسته ښوریدل، د چراغونو وړانګې مې تر سترګو کیدې نور څه مې نه لیدل. په هغه شپه مو ۲۰ متره لار پلي ووهله د واټ له یوې څنډې بلې څنډې ته راغلو. زه په دغه ټوله موده کې د تیښتې په فکر کې وم خو هر څومره مې چې شــاوخوا کتل څه شی مې تشــخیص کولای نشول، د بیلګې په توګه په څو قدمي کې مې عادي ســړی ولاړ دی او که کوم پیره‌دار یا په څو قدمي کې کوڅه شــته او که نه؟ له همدې خاطره مې د تیښتې فکر څخه لاس واخیست.

* * *

له مزدورانو مې پوښــتل ایا زموږ محکمه به نارینه ملګرو ســره یو ځای جوړیږي او که نه؟ هغوی ویل: «که دغه کار وکړو تاســو به د ځینو هلکانو د بدبختې لامل شــئ. ځکه چې هغوي هم بالغ دي، غواړي په محکمه کې ښه رفتار او چلند ولري، ستاسو په اړه به خجالت وباسي او د خپل حماقت له مخې به قاضیان مجبور کړي چې د اعدام حکم ورته صادر کړي!».

له همدې ځایه ده چې موږ د آریامهري محکمې د عدالت په مفهوم له نږدې څخه اشنا شولو چې اعدام او محکومیت د چا اتهام ســره هیڅ اړیکه نلري. د هر زنداني په دوســیه کې پاڼې وجود لري چې د ســاواک نظریات په هغې کې لیکل شــویدي او د محکمې قاضیان د محکومیت ډول او موده د هغوی د نظر مطابق تنظیموي. د محکومیت حدود او موده د ســاواک د نظرې له مخې مشــخص کیــږي په محکمه کــې د چلند څرنګوالی او د محکومیت موده یوازــې په هماغه حدودو کې ټاکل

کیـږي. البته ځینې وختونه پـه محکمه کې د مبارز د چلند څرنګوالی د سـاواک وړاندیز په خلاف وي. د چلند دغه څرنګوالی په دوسیه کې منعکس کیږي او ساواک ته بیرته لیږدول کیږي تر څو د ساواک له خوا نوي نظریات ولیکل شي. د نوي نظریاتو له مخې په محکمه کې د مبارز محکومیت له سـره ټـاکل کیږي. په ځینو مواردو کې د سـاواک نوي نظریات د محکمې پـه فیصله کې ډیرې اغیزې کړي دي مثلاً درې کلن محکومیت یې په لس کلن، پنځه لس کلن، په ابد او ابد محکومیت په اعدام بدل شوي دي. د اعدام د حکم په هکله د مبارز رفتار او د برخورد څرنګوالی پدې رأی کې اغیزه نلري. معمولاً د اعدام حکم مخکې له مخکې صادر شوی وي.

مـزدوران زموږ د روحیې د سـنجش لپاره یادونه کوي چې که پـه محکمه کې معمولي دفاع وکړو او د خپلـې ایدئولوژي او هغـه ربړونې چې مو لیدلې دي څه ونه وایو، له یو دوه کالو بند څخه زیات نه محکومیږو. او بیا پوښتنه کوي: «ښه! اوس حاضر یاست په محکمه کې ارام رفتار ولرئ اوله دغه ډول شعارونو څخه ډډه وکړئ تر څو موږ پریږدو ستاسې او د هلکانو محکمه یوځای جوړه شي؟» دا سمه ده کله چې د یو مزدور سروکار یوې انقلابي روحیې سره وي او د مرګې طرف رښتیني مبارزین وي او د انقـلاب مصالح یې په ټول وجود کې نغښـتې وي او هغوی نـه د ځان بلکه یوازې او یوازې د انقلاب د پرمختګ او بریا لپاره فکر کوي، د دښـمن رنګارنګ ټولې چلوټې بابیزه کیږي. په هغه ورځ مصطفـوي زمـوږ د ډارولو په خاطـر د اعدام خبرې کولې او ملګرو په ډیره مینه شـهادت ته د رسیدو په هیله خبرې کولې! او ویل یې په دغه وخت کې د دښمن بې وسي او بیچارګي تماشایې وه.

# ستره کتنه
# ملګري مسعود سره کتنه

هغه ورځ ټاکل شوې وه چې ملګری مسعود زما خوا ته راولي. مور، دریواړه د دروازې تر شا ولاړ ولو او د ملاقات لپاره مو لحظه شماري کوله. بیساری لیوالتیا او هیجان مو درلود. بالاخره دروازه خلاصه شوه او ملګری یې راووست او دریواړو په ډیره مینه د خوشالۍ لاسونه سره ورکړل. د ملګري په څیره کې بې پایه خوشالي له ژور او پرتمین ټینګښت سره یو ځای ښکاریده. د لاس ورکولو په وخت کې متوجه شوم ملګري خپل لاس دروند شـــانته پورته کوي، ډیره خواشـــینې شوم او پوښتنه مې ترې وکړه دا چې دومره موده له ربړونې څخه تیره شوې اوس هم ستا لاس درد کوي؟ یو کوچنی ټکان یې لاس ته ورکړل او ویې ویل نه څه نشته! په ځمکه کښیناست او مور، په ډیر ویاړ تر هغه چاپیره کښیناستو. ملګرې رقیه خبرې پیل کړې پداســـې حال کې چې غږ یې لړزیده او په ځان یې فشـــار راوور، چې ونه ژاړي، د خپل تحقیق جریان یې تشریح کړ او په پای کې هماغه پوښتنه یې چې له ما څخه کړې وه، ملګري مسعود څخه هم وکړه: «أیا ستا په نظر زما دغه کار خیانت و؟» ملګري مسعود خپل سر ته ټکان ورکړ او ویې ویل: «نه د دې کار نوم ته خیانت نشو ویلای» ته به وا یې ماجرا یې یاد ته راغلې ده، په څېره کې یې غرور او خوشالي یو ځای ښکاره شوه او ویې پوښتل: «د ملګري مجید* جریان د اوریدلی؟» مصطفوي غوښتل مانع شي چې هغه څه ونه وایې. خو ما هغه ته توجه ونکړه په هیجان ســـره مې وپوښـــتل: جریان څه وه؟ او هغه ماجرا شرح کړه چې: «ملګری مجید د ساواک مامورینو د «ازاد سرو» خائن[۵] په مرسته نیسي پداسې حال چې پښـــې یې په ماشـــینداري وویشتلې، دوه مامورینو سره یې د موټر شا کې کښینوي آزاد سرو او یو مامور د ډریور په څنګ کې کښېني. ملګری مجید چې په لاسي بم مسلح و مامورینو د بدني پلټنې په وخت کې د هغه بم ته متوجه شوي نه ول او یوازې وسله یې ترې اخیستې وه سیانور (یو ډول زهري

* منظور ملګری مجید احمدزاده دی

مواد) په خپله خوله کې اچوي د بم کلی راکاږي او هغه د موټر مخې ته اچوي. آزاد سرو خائن بم را اخلي غــواړي چــې بهر يې واچوي خو بم يې په لاس کې چوي ډريور مري، ملگری مجيد او دوه ســاواکيان هم ټپي کيږي. موټر چې له کاره لويدلی وه، پياده کيږي د بيسيم په واسطه خبر ورکوي چې بل موټر تر لاسه کړي. خو پدې وخت کې د حوزې د ګزمې موټر تيريږي، ګوري چې دغه کسانو سره ماشينداري په لاس کې دي د چريکانو ګمان پرې کوي او د ګوليو ګوزارونه پرې کوي او ډير سخت يې ټپي کوي».

پدغه ټوله موده کې چې ملګري مسعود په سړه سينه د جريان نکل کاوه، مصطفوي له ډيرې غوسې او حــرص څخــه په ځان تاويده خو خبرې يې نه کولې. په پای کــې د دې لپاره چې د زړه بړاس وکاږي په ناراحتي ســره يې وويل: «دا يوه پيښه (اتفاق) وه!» موږ د خوشالی له مخې خنديدلو. ملګری مسعود پرته له دې چې د مصطفوي خيال وساتي خپلو خبرو ته ادامه ورکړه: «آزاد سرو لمړنی خائن و چې په خپلې سزا ورسيده».

دومره خبرې مو په زړه کې وې چې نه پوهيدو کومه يوه مطرح کړو. يوه شــيبه چپ شــو. ملګری د خپل عادت له مخې لږ خبرې کولې څه يې نه ويل، ملګرې شهين اعتراض وکړ: «ملګريه پوهيږې چې ســتا هره خبره موږ ته څومره ارزښــت لري، ولې خبرې نه کوې؟» او هغه وخندل. زما په ذهن کې يوه موضوع وه هغه دا چې وړاندې په ســلول کې يو له زنداني مبارزينو زموږ د ســازمان د جوړښت په هکله ما څخه پوښتنه کړې وه او زه په څه نه پوهيدم ځان سره مې فکر وکړ، پريړده چې دغه پوښتنه وکړم او ومې پوښــتل: ملګريه! تر کوم ځايه چې دښــمن زموږ د سازمان د جوړښت په هکله پوهيږي موږ ته لږ څه ووايه. مصطفوي احمقانه وخندل او په ملنډو يې د دښمن کلمه تکرار کړه. ملګري چې لږ خبرې وکړې، د خبرو په منځ کې پوه شــوم چې زړه يې نه غواړي پدې هکله ډيرې خبرې وکړي. موضوع مې بدله کړه. نور نو د مصطفوي حوصله پای ته رسيدلې وه. رنګ يې سور شو او ويې ويل: «حتی تاسې زما په وړاندې د خپل سازمان د مصالحو په هکله خبرې کوئ؟» بيا يې وغوښتل چې ملګری بوزي. دومره عشــق او محبت مو د خپل اتل ملګري په هکله احســاس کاوه چې حد يې نه درلود. زموږ وجود شور، هيجان او خوشــالي څخه ډک پک و. د ملګرې شــهين صفا او صميميت د ملګري په هکله چې څو شيبې مخکې مو ليدلی وه، دې حد ته ورسيد چې بې اختياره يې سر ورته په غيږ کې ونيو. موږ په دغه وخت کې د ملګرتيا د ســپيڅلي او هيجان څخه د ډکې مينې او محبت د جلوې شــاهدان ولو. دا ډول جلوه يې کوله چې ځان څخه مې وپوښتل پرته له رښتينو انقلابينو بل څوک کيدای شي دا ډول ستر او پرتمين عشــق څخه به برخمن وي؟ دا لمړنی او وروســتنی وار و چې موږ خپل اتل او نه هيريدونکي ملګري سره مخامخ شولو.

# ملګرو سره نورې کتنې

یو وار ملګري سعید اریان او ملګري حمید توکلي سره د کتنې موکه په لاس راغله. که څه هم موږ ونشــو کړای هغوی سره چندان خبرې وکړو. رذیل حسیني په کوټه کې و او زموږ په خبرو یې نیوکه کوله. هغه بدمرغو هیله درلوده کله چې ملګري یوبل سره ووینې بغارې او کوکارې به ووهي. هغوی زموږ له شــوره ډک ټینګ مقاومت ســره بخیلي کوله. دغه کتنې زیاتره په دې دلیل وې چې د ورور ولي او خورتوب، د ښــځې او مېړه توب احساســات د ملګرو شهین، حمید او سعید وپاروي او دهغو روحیه کمزورې کړي. خو دغه درې اتلو انقلابیانو دا ډول رزمي او چریکي چلند درلود چې مزدوران ډېر ژر له خپل کاره پښیمانه شول. ملګرو په دغه کتنه کې هغه څه چې په خیال کې نه نیول، هغه د کورنۍ اړیکو نشــتوالی و. اخر د ملګرتیا په ټینګښــت او خوښي کې کومه اړیکه پرته ده؟ دغه درې ملګري په لمړۍ ســر کې یو د بل ملګري ول. یوبل ته یې شــعرونه ویل او مرکه یې د پرګنو په هکله وه چې مینه یې ورسره درلودله.

مزدورانو د ملګرې شهین او ملګري سعید، د دغه دوه همرزمو او همسنګرو په اړه هڅه کوله چې هغوی د خپلو بچیانو، دهغوی د ماشومانه لوبواو دخپل کوچني زوی په یاد کې واچوي د احساستو او عواطفو په پارولو د هغوی روحیه کمزورې کړي او له انقلاب څخه یې په شا کړي. خو دغه ربښتیني انقلابیــون، د دې پــر ځای چې یوائــې د خپل ځوی او یوائې د یو صمد لپــاره فکر وکړي. تر هغه زیات ســپیڅلي ول کوم چې د نړۍ په میلیونونه بې‌برخې ماشــومان په ژیړ رنګ او ټکیدلو هډوکو په کارخانــو کې د ظالمانه حکمتونو او لاس‌پوڅو رژیمونو تر حاکمیت لاندې په شــاقه کارونو بوخت دي فکر کوي، له هغې ډلې په ایران کې چې د ظالم پهلوي رژیم ترحکومت لاندې له هماغه لمړیو شیبو له هر ډول استثمار او سپکاوي سره مخامخ دي، هغوی د نړۍ د ټولو ماشومانو ملګري ول او د استثمارګرانو له منګلو څخه یې د ټولو د خلاصون احساس کاوه. هغوی خپله واقعي مینه او محبت هغو ماشومانو په اړه احساسوله کوم چې محبت څخه محروم ول. په همدې کتنه کې ملګري سعید د

یوې بیوزلې زیارکښې کورنۍ یادونه وکړه کومه چې دواړو پیژندله ملګرې شهین ته وویل: «رضا نشي کولای بچیان ولري، پخپله پوهیږي بچیان یې له لوږې او بې درملنې څخه مري...».

خپل کشــر ورور (محمد) سره مې هم یو وار ملاقات درلود. مخکې تر کتنې مصطفوي سپارښتنه وکــړه دا چــې محمد روحــي ناراحتي پیدا کــړې د دې لپاره چې روحیه یې لږ په ځای شــي غواړم تا وګوري. د همدې روحي وضعې په خاطر هغه ســره معمولي خبرې وکړه لږ تر لږه د هغه لپاره شــعر او شاعري ونکړې.

زه د خپلــو نیولو نه یو کال راپدې خوا محمد څخه جلا شــوې وم، نــه پوهیدم هغه د خپل فکري رشد په کوم پړاو کې ځای لري. ایا د سازمان غړی شویدی که نه؟ په هر حال هغه یې سازمان سره د اړیکې په تړاو نیولی و. دښمن غوښتل د هغه وجود څخه د هغه آغیزو د ختنې کولو لپاره ګټه واخلي کوم چې ملګري بهروز یې د شهادت په وخت کې تر ربړونو لاندې پر ځای پریښودلې وه، د دې لپاره یې برنامه جوړه کړې وه چې په یو ډول یې مصاحبه په تلویزیون کې خپره کړي او ګټه ترې واخلي.

په تیر ژوند کې، مورې ملګري بهروز سره چې د انقلابي خصوصیاتو څښتن وه ډیره مینه درلوده او هغه راباندې بې اندازې ګران و. زمورې خوشــالي به هغه وخت وه کله چې به ملګری بهروز مورې ســره و. په یاد مې دي کله چې به مې په مخصوصه توګه دهغه دروازه ټکول واوریدل، خوشــالي به زمورې په څیره کې خوره شوه، په یو خیز به په ډیرې مینې د دروازې خوا ته په منډه شولو. ملګری بهروز هغه کس و چې زمورې ټولې مادي او معنوي اړتیاوې یې پوره کولې. هغه د انقلاب لار، د پرګنو د خلاصون لار چې په پیړیو پیړیو یې د اسارت په بند کې سترګې پرانیستلې مورې ته زده کول چې باید څرنګه دغه لار په ټینګ ایمان پای ته ورسوو او په هره موکه کې یې په مارکسیسم د باور درلودلو خبرې کولې. او هغه به زمورې د یوې کوچنۍ پوښتنې په ځواب کې په ساده ژبه ویل، په ډیر شوق او حوصلې به یې په مختلفو مسایلو بحث کاوه. د ملګري هیڅ حرکت او هیڅ خبره د هغه د ژوند له مقدسې موخې پرته بل څه نه ول. باورمند و چې کیدای شــي حتی خپلې نالوستې او سپین سرې مور ته هم د مارکسیسم تعلیــم ورزده کړي. همدا دلیل و هرکله به چې موکه په لاس ورغله دغه کار به یې کاوه. څومره زیات ترکي متلونو سره آشنا و چې په هغو کې دیالکتیکي قوانین په ساده بڼه بیان شوي ول. چې پخپله ډیر مهم شــعارونه ول: «بولانماسا، دورولماز» یانې «تر څو نسکورول (انقلاب) صورت ونه نیسي، رڼا په لاس نــه راځي». دغه مثال: «ال چک مې ین، ال چکمز، ګرک جان چکه دردی»، دا هغه شــعار وه چې هغه همیشه ویل. د هغه مفهوم په پښتو ژبې کې داسې دی: «رښتینی لاروی هیڅکله خپله تګ لاره نه پریږدي، ستونزې باید د ځان په بیه ومني...».

د ملګري بهروز وجود له سـر نه تر پښـو زمورږ لپاره مجسم عشـق او ايمان و، عشق د ټولې نړۍ محرومو پرګنو سـره او ايمان د هغوی د انقلابونو په برياليتوب. دغه ټولو سـيپتونو (وصف ها) سره څنګه امکان لري چې مورږ دې د هغه عاشـقان نه اوسـو؟ او ساواک د خلکو ضد خپلې موخې ته د رسيدلو لپاره غوښتل د محمد د دغه ضعف او کمزورې څخه ګټه پورته کړي.

هغه يې په انفرادي سـلول کې يوازې اچولی و او د سـلول په څنګ کې يې د ربړونې ضبط شوی غـږ خپـراوه او ويلې يـې وه چې بهروز ته ربړونه ورکوو. ځينې ورځې سـهار وختې يې د سـلول تر څنګ د ګوليو ډزې کولې او ويل به يې څو کسـان مو تيرباران کړل. يا يې نيمه شـپه له خوبه پاڅول او د جسـمي ربړونـې وعده يـې ورکوله. د محمد په اړه دغه روحي او کله جسـمي ربړونو او دا چې پوهيدلی وو بهروز وژل شوی دی، يو ډول ګنګستوب او داسې حالت چې ونشي کولی خپل حواس راټول کړي او سـمې کلمې په خوله راوړي ناوړه روحي حالت منځ ته راوړی و. خبرو يې سـر او پای نه درلود. سـترګې يې پټولې او په ځان يې فشـار راوړ چې د حواسـو تمرکز پيدا کړي، خو کولای يې نشـول. په عجيبه ډول يې په دښـمن بـاور نه کاوه. کله يې چې زه وليدم لمـړی يې باور نه کاوه چې زه يې خور يم. فکر يې کړی و ښـايې دلته هم چلوټه په منځ کې وي او دا چې زما حال ښـه ندی نه ښـايې ژر اعتماد وکړم. کله يې چې ما سره په خبرو کې نشو کولی د حواسو تمرکز پيدا کړي، خبرې يـې ګډې وډې او بې مفهومه کيدې. فهيمې ته يې وويل: «پوهيږم کله چې ما دې ځای څخه يوسـې ربړوې مې خو پروا نه کوي. پريږده چې خپلې خبرې وکړم». د شـاه انځور د ديوال په مخ ځوړند و. هغه ته يې اشـاره وکړه سـاده او صفا يې وويل: «پوهيږې زما حسابي خبره دا ده، زه هغه ته وفاداره نه يم هغه زما دښمن دی...».

پـه دغـه ټوله موده کې چې زمورږ په کوټه کې وه، د کلماتو د ادا کولو په وخت کې دومره سـادګي او بيسـاري صداقت په خبرو او حرکاتو کې ليدل کيده چې مورږ يې په سـختي سـره تر تأثير لاندې راوسـتې ولو د دې خبرې په عمق او ژورتوب ښـه پوهيدم زه هغه ته وفاداره نه يم پوهيدم که چيرې هغه سياسي مطالعات درلودای او د خپلو سپيځلو احساساتو په بيانولو وسمن وی، دا رنګه پاک او بې غشه احساسات به يې تر دې زيات په تيز فهمه (رسا) جملو کې بيان کړې وای.

محمد په دولس کلنۍ کې، د لمړی دورې ښـونځيو تر زده کړې وروسته د زرګري او مکانيکي په مختلفو کارځايونو کې کار کړی او بيا وروسـته د شـپې ليسـه کې تر نهم ټولګي درس لوستی و او د نيولو په وخت کې ماهر مکانيک کارګر و چې له عملي نظره يې لاسته راوړنې درلودې. هغه مې ښه پيژانده او د دښـمن په وړاندې د هغې په بې پايه کرکې او نفرت خبره وم. هغه وخت مې چې د هغه

چلند د خطايې په هکله واوريده آريانه نشوم: د نيولو په لمړيو ورځو کې يوه شپه خطايې هغه په نيمه شــپه کې له خوبه پاځوي، تر څو پدې ډول هغه ته ازار ورکړي او د شــپې په همغه وخت هغه څخه تحقيق وکړي، محمد د هغه په مخ ټوپ اچوي او پښــه يې داســې په غاښونو چيچي چې نور مزدوران دهغه مرستې ته رادانګي او د محمد له منګولو يې خلاصوي. هغه ورځ پداسې حال کې چې مورې هر يو هڅه کوله داســې جملې وکاروو چې روحيه يې پياوړې کړو، هغه څخه جلا شــو بيا مو د قصر په زندان کې واوريدل وروسته تر هغه چې حالت يې لږ ښه شوی و بيا يې ازاروي او ارام يې نه پريږدي. او يو ځل يې هم عمومي زندان ته بيولی و او د يوې مياشتې لپاره يې په انفرادي سلول کې ساتلی و، هغه په محکمه کې په څلور کلونو بند محکوم شو.

* * *

د شــلو ورځو شــاوخوا کې په اوين کې پاتې شولو. د ليندۍ د مياشتې ديارلسم يا څوارلسم و چې د ايران د آزادی بخښــونکي سازمان غړي ونيول شول او د ځای د کوچنيوالي په خاطر يې مورې د قصر زندان ته واســتولو. هميشه به همداسې وو. دغې پيښــې بايد مرسته کړې وای تر څو هغه کسان چې زياته موده يې په ســلول کې تيره کړې وي، عمومي زندان ته منتقل شــي. يا يې وضعه روښــانه شي. ځينې وختونه هغه کسان چې لږ جرم لري د ځای د کموالي له کبله آزاديږي.

* * *

مخکې تر هغې چې مورې د قصر زندان ته بوزي، حسيني له درې پاڼو کاغذ سره کوټې ته راغی او ويــي ويــل: «د دې ځای د وضعيت په هکله خپل نظر وليکئ ايا په دغه څو ورځو کې چې دلته وئ، پدې ځای کې له چلند څخه راضي ياســت که نه». مــورې درېواړو يوبل ته وکتل چې: دا څه چلوټه ده څه مانا او څه مقصد لري؟ ډير ژر د هغه پذيرايې په علت چې مخکې مو شــرح کړ وپوهيدو. اوس غــواړي وګــوري د هغوی دغه چلند تر کومې کچې په مورې اغيزه کړې او زمورې نظر يې د ســاواک په اړه څومره بدل کړی دی؟!

ملګرې شهين پاڼه واخيسته او په شيطاني سترګو يې ورته وکتل او بيا يې وليکل: «مورې پدې ځای کې له تاسو څخه هيڅ غير منتظره چلند ندی ليدلی!» ما او ملګرې رقيه هم په لږ توپير سره همدغه مفهــوم وليکه. (مورې له دښــمن څخه د هر ډول چلند انتظار درلــود. په هر وخت کې د چای ورکول او نورې پذيرايې ګانې د محبت په خاطر نه وې، بلکه داســې چلند و چې د خاص قصد لپاره ســر ته رسيده.)

* * *

مخکــې تر هغه چې موږ د قصر زندان ته یوســي. د قزل قلعه زنــدان ته يې بوتلو او له هغه ځایه د اطلاعاتــو اداري تــه ولاړو چې انځورونه واخلي او ګوتې مو ولګوي. پــه هغه ځای کې يې چې ګوتې لګولې، کوټه له نارینه زندانیانو چې ســراو وضع يې خوره وره او ګډه وډه وه ډکه وه. د ســګرټو لوړې ټوله فضا ککړه کړې وه. ټیټ قدي زوړ سړي چې د ماش پلو کاسه يې په لاس کې وه په مهرباني او آریانتیا يې موږ ته وکتل. زړه يې غوښــتل محبت يې ښــکاره کړی واي، کاســه يې زموږ په څنګ کې کېښــوده او ټینګار يې وکــړ چې د هغې غذا څخه يې وخورو. یو کمکــي هلک چې عمر يې دولس دیارلس کلونو ته رسیده هم په ژیړه ځیره او کړوپه ملا او ټکیدلي بدن په هماغه محبت او ورته والي پداسې حال چې زموږ مخې ته يې خندا کوله خپله غذا يې موږ ته ډالۍ کړه.

پــه هغــه موقعیت کې د دغو صحنو لیــدل، زموږ لپاره ډیرې جالبې او نــه هیریدونکې وې. هغه صمیمیــت او له دوســتي ډکې ځیرې مو د زړه په تل کې وکښــلې چې هیڅکلــه د هغوی پریمانه او سپیڅلی محبت له یاده ونه باسو.

# د څلورم څپرکی توضیحات

۱- سعید آریان: د شهین توکلي میرمن او همرزم د خلکو د فدایي چریکانو د سازمان غړی وه چې د ټیمي کور د بدلولو په وخت کې د وسلی نشتوالي له کبله ونیول شوه او د ۵۰ کال په ژمي کې تیرباران شوه.

۲- اسداله مفتاحي: د خلکو د فدایي چریکانو د سازمان غړی چې د ۵۰ کال په دوبي کې ونیول شو او د هماغه کال په ژمي خپل همرزم ورور عباس مفتاحي او نورو څلورو اتلو چریکانو سره یو ځای تیرباران شول.

۳- عبدالمناف فلکي تبریزي: د تبریز د مرکزي څانګې د خلکو د فدایي چریکانو د سازمان غړی و چې د ۵۰ کال په دوبي کې ونیول شو او د هماغه کال د اسفند په میاشت کې نورو لسو جنګیالیو سره یو ځای تیرباران شو.

د ملګري مناف فلکي په اړه لازمه ده د هغه ځانګړو شرایطو په هکله چې هغه ورسره په زندان کې مخامخ شوی و، لږ وضاحت ورکړم. ملګری مناف سربیره پر هغه ربړونو چې د دښمن له خوا ورباندې وتپل شوې. یو بد تعبیر یا شایعه چې د دښمن مزدورانو هم هغه ته لمن وهله او په چټکتیا زندان کې خپره شوه، د خپلو ملګرو له خوا هم ستونزمنو شرایطو سره مخامخ شو.خبر داسې خپور شو چې مناف خیانت کړیدی. له دې کبله یې د زندان په انګړ کې یوبل سره د ازادانه خبرو اترو امکان نه درلود او د موضوع د روښوالي لپاره شرایط سم نه ول تر څو مالومه شي چې په واقعیت کې مناف څخه څه عمل سرته رسیدلی دی چې په هکله یې دا ډول خبرې کیږي. ځینې ملګري به چې کله په اتفاقي توګه هغه سره مخامخ شول د «خائن» کلمې په ویلو یا په قهرجنوسترګو د هغه له څنګه تیریدل. ښکاره ده چې د دا ډول شرا یطو زغم د یو مبارز زنداني لپاره ډیر سخت دی.

واقعیت هماغه وه چې مناف تر ربړونې لاندې د خپل ملاقات هوکړه ملګري احمد زاده سره ویلې وه. خو دا سمه ده چې په هغه وخت کې د ربړونې په هکله یو ذهني تصویر وجود درلود او له یو انقلابي څخه دا تمه وه چې په هیڅ ډول دښمن ته راز په ډاګه نکړي او که نه خائن به وشمیرل شي خو واقعیت دا دی چې په هغه موقع کې داسې ملګري هم ول چې د ربړونې د زغملو وس یې لـه لاسه ورکړی وه، پرته له دې چې په خیانت تورن شي خبرې کړې وې. خو ولې د مناف په اړه داسې وویل شول!؟ په سازمان کې د ملګري مسعود اهمیت ته په نه کتو سره چې احتمالآ د ضعف

بار يې د مناف په اوږو اچولی و. په ځانګړې توګه د ځينو ملګرو بې تجربګي او مسايلو ته سرسري کتل او له بلې خوا د دښمن هڅې چې له دغه تشې څخه د مناف د روحيې کمزوري کولو لپاره ناوړه ګټه اخيستل هم پدې موضوع کې نقش درلوده. خو ملګري مناف له دې سره سره چې دغه سختو شرايطو سره مخامخ شوی و، خپل عظمت په ډاګه کړ، هماغه شان خپلې کارګرې طبقې ته، هغه طبقې ته چې خپله ورڅخه پورته شوی و مؤمن پاتې شو (مناف د ۱۲ کلونو په موده کې د حکم آباد په زېمجنو زيرزمينيو کې قالينبافي کړې وه، په همدغه چاپيريال کې صمد او بهروز ورسره بلد شول). هغه د دښمن په وړاندې سر ټيټ نکړ او خپلې وينې يې د کارګرې طبقې او د نورو زيارکښانو د خلاصون په لار کې کوم چې د زبيښاک، ظلم او ستم تر قيد لاندې ژوند کوي قربان کړلې. يو له هغه ملګرو څخه چې يو څه موده يې مناف سره په يو سلول کې ژوند کاوه او يوځای په يوې محکمې کې محاکمه کيدل (ملګری محمد تقي سيد احمدي ) اخيراً په پل تاک کې د يوې وينا په ترڅ توضيح کړه چې ملګري مناف په محکمه کې پداسې انقلابي قاطعيت سره د خپل پرولتاريايي ارمان څخه دفاع وکړه چې په واقع کې يې د اعدام لپاره هيڅ شی باقي پرينښودل.

۴ – د ايران د خلکو آزادي بخښونکی سازمان: د دغه سازمان د مرکزيت غړو په لمړي سر کې د حزب توده انقلابي سازمان غړيتوب درلود چې وروسته د هغوی د نظرونو په رد کولو سره له دغه سازمان څخه انشعاب وکړ او د ايران د خلکو آزادي بخښونکی سازمان د بنسټ ډېره کيښوده. دغه سازمان په ايران کې د وسله والې مبارزې له پيل سره سم د وسله والې خط مشې له مخې مبارزه پيل کړه. خو تر دوه وسله والو عملياتو وروسته په خپلې خط مشې کې له سره کتنه وکړه او وسله يې پريښوده. د هغوی ډيری غړي د ۱۳۵۰ کال د اذر په مياشت کې د حزب توده د انقلابي سازمان له خوا افشا او ونيول شول. د هغوی د مرکزيت له غړو څخه يو تن (سيروس نهاوندي ) له زندان څخه وتښتيد او بيا ځلي يې همدغه سازمان د وسله والې مبارزې په خط مشې سمبال کړ چې همدا اوس خپلو فعاليونو ته دوام ورکوي.

د پنځم څپرکي د دويمې شميرې توضيحاتو ته مراجعه وکړئ.

۵ – آزاد سرو: هغه کس چې د مجيد احمد زاده د نيولو لامل وګرځيد او پخپله هم د هماغه نيولو په وخت کې د مجيد په لاس ووژل شو.

# په زندان کې د سوکاله شرایطو منځ ته راوړل د مبارزینو لپاره بله توطئه

د قصــر زندان ته ورســیدلو. د زندان لــه لویې دروازې چې ننوتو، دوه لوی دالانونه (ســالونها) مو ولیدل چې د راشــه درشــه کســانو (ملاقاتیانو) کارونه یې سرته رســول. د قصر د زندان په انګړ کې سربیره د ښځو په زندان اته (۸) نور ترړلي زندانونه هم د عادي او سیاسي مجرمینو لپاره شتون لري. دریمه او څلورمه شــمیره د سیاســیونو لپاره ځانګړي شــوي. یو روغتون، حمام، پخلنځای او مسجد چــې ظاهراً مســجد دی خــو زندانیانو څخه ډک دی او یوه صنعتي کارګاه پــه هغې کې ځای لري. د ښځو زندان چې په وروستی برخه کې ځای لري ورسیدلو. د دروازې په مخ کې یو ډګروال په احمقانه غرور له یو افســر او څو تنه پیره‌دارانو ســره ولاړ ول. هغوی د زندان رییس، د پیره‌دارانو قومندان او د زندان ســاتونکي ول. په اوین کې یې د خپل خیال له مخې زموږ د ډارولو په خاطر ویلي ول چې د قصر زندان له فاسدو او شریرو ښځو ډک دی او دومره ناوړه چاپیریال دی چې د یو عادي فرد لپاره هم د زغم وړ ندی. موږ ته یې له کړاونو څخه ډک د سخت ژوند وعده راکړې وه. کله چې د زندان له دروازې ننوتو نسبتاً لوی انګړ مو ولید چې ښځې هلته ګرځیدلې. څه موده یې د زندان په دفتر کې ټال کړلو، موږ هغه ښځو ته چې د کړکیو شا ته ولاړې وې او موږ ته یې کتل د سر په ښورولو سلام وایه. دا لمړنی پیژندګلونه وه او موږ وروســته پوه شــولو چې هغه د ساواک د مامورینو د وینا برخلاف ډیره مهرباني او نیکې ښځې وې. د فاسد کلمه په واقعي مانا پخپله هغوی سره جوړیږي نه دغه ښځو سره چې د ډیرې ناچارې او ټولنیزو ســتونزو او بدبختیو له کبله چې موږ یې شــاهدان یو پښې یې زندان ته راکښــول شــوې دي. په وروستیو پاڼو کې به د هغوی د خبرو او بدبختیو په هکله لږ څه ولیکل شي، که څه هم ډیر کم خلک به وي چې دغه ډول پریمانه بیلګو سره آشنایې ونلري.

زندان دوه پوړیزه جوړښــت درلود چې پورتنی پوړ یې د یوې لوی دروازې په واســطه پرته له ټاکلو ســاعتونو ترړل کیدله. په کښــتني پــوړ کې عادي مجرمین اوســیدل. د رییس کوټــه، د زندان دفتر،

روغتیایي خونه د هغه په څنګ کې د سیاسي جنوکیو کوټه هم په لاندیني پوړ کې وه.

مستوره احمدزاده او د هغې درې دوستان چې سازمان سره په اړیکه کې نیول شوې وې او همدارنګه یوه جنۍ چې جرم یې د یو ټوک (جزوه) درلودل و، پدې زندان کې لمړنۍ سیاسي نجونې وې. کله چې موږ هلته لاړو، هغوی آزادې شوې وې او نورو کسانو یې ځای نیولی و. په کوټه کې څلور کسه د یوې اته کسیزه ډلې (څلور نجونې او څلور هلکان د سیاسي محافلو سره له اړیکو پرته یواځې د سیاهکل غورځنګ او د ملګري پویان او ملګري پیرو نذیري دښمن سره د قهرمانانه جګړې تر آغیزې لاندې په دیوالونو باندې د شعارونو په لیکلو جرئت کړی و او همدارنګه عاطفه جعفري[۱] او شارون لابرکینګ امریکایې جنۍ چې د هغه کال ورځپاڼوکې یې پدې هکله لیکنې کولې او دوه نور کسان چې د محکومیت موده یې لنډه وه په هغه ځای کې ول.

د دغه جنکو په لیدو مې چې سیاسي تورنې وې ډیره خوشالي احساس کړه. څو ورځې وروسته د زندان وضعیت په ریښتیاني توګه موږ په لومه کې ونیولو، د هغه ځای محیط داسې چاپیریال نه و چې ټول د خوشالي موجب وای. خواړه او کار تر یوې کچې اشتراکي و، خو چندان صمیمیت او همغږي یې په منځ کې نه لیدل کیدله په کوټه کې دوه لوی دوه پوړیزه تختونه، یو میز په منځ کې، دوه څوکۍ او د اشغال سطل چې د څوکۍ کار ترې اخیستل کیده اینښودل شوي ول تقریباً ټوله کوټه یې ډکه کړې وه. نه مو شوای کولی پرته له شور څخه یو شی له یوې څنډې بلې څنډې ته ټیل وهو او د کوټې له یوې خوا بلې خوا ته لاړ شو.

د کتاب له پلوه یواځې دوه درې ټوکه ناسخ التواریخ ډوله کتابونه هلته ول. هیڅ شي ټاکلی نظم نه درلود. اړینه وه چې د کوټې په وضعیت کې بدلون راشي.زه او ملګرې شهین توکلي او رقیه دانشګري په ډیر کم توپیر سره احساساتي کسان وو چې یواځې مو شور او هیجان زیات درلود. نه مو تجربه درلوده او نه مو د تجزیې او تحلیل قدرت درلود او نه مو د ستونزو لپاره د حل لار. موږ پدې خوش باوره ولو څوک چې زندان ته راځي، باید لږ تر لږه زموږ په کچه اوسي او دغه طرز تفکر زموږ په وجود کې ډیر زیات انتظارمنځ ته راوړی وه چې پوره کیدای نشو. د کوټې محیط زیاتې نیمګړتیاوې درلودې. د مختلفو افرادو وجود له مختلفو تمایلاتو سره، تړلی محیط چې جبراً باید په هغه کې شپې او ورځې یو د بل په څنګ کې تیرې کړو. سربیره پر دې محدود لید لوری، د مسایلو ناکافي پیژندګلوي هر څه چې ول زموږ د رشد او په سمه لار د تګ لامل کیدل او هر ځل مسایلو سره مخامخ کیدلو زموږ لید لوري ته پراختیا ورکوله. زموږ راتګ څخه یوه میاشت وروسته د اته کسیزې ډلې څخه څلور نجونې ولاړې. ژوند همداشان په لار روان وو، موږ هڅه کوله هغه ته سم جهت

ورکړو، ایمان مو درلود چې هر مبارز باید په هر ډول شــرایطو کــې خپلې مبارزې ته دوام ورکړي او مبارز پاتې شي.

د قصر په زندان کې آرام او سوکاله ژوند ته په کتو سره، ډېر ژر متوجه شولو چې دښمن د انقلابي روحیې د وژلو لپاره یوازې یو روش او یو تاکتیک څخه کار نه اخلي. د یوانقلابي لپاره د تور ســوري (ســیاه چال) شــرایط ستونزمن ندي. بلکه برعکس په یوې تودې او ارامې کوټې کې ژوند کول هم د تور ګڼهل تر شرایطو بد او سخت دی، حتی تر هغه ناوړه آغیزې لري. له همدې ځایه ده چې انسان ورو ورو په راحت طلبي او له تحرک پرته ژوند ســره روږدی کیږي. دښــمن زموږ په هکله له همدې روش ۲۳۶ څخه ګټه اخیسته.

پــه هغې کوټه کې چې موږ ژونــد کاوه، لویه کوټه وه، په کړکیو یې د لمر وړانګې لګیدې یو لاس وینځی (دســت شوی)، ښایسته او لوی لوی تختونه، پســتې او نرمې توشکې او بالښتونه چې ځینې دغه نرم او ګرم وسایل موږ د خپل پلار په کور کې هم نه درلودل. په زندان کې د ننه د خرڅلاؤ لپاره ځایونه وو چې ځینې خوراکي مواد لکه شودې، هګۍ، مستې، پیاز... یې خرڅول. د روغتیا له پلوه په اونۍ کې یو وار حمام ته تللو. دا د تږلتیا او راحت طلبې یوه نیمګړې بیلګه وه چې زندان څخه بهر د کوچنۍ بورژوازي قشر لپاره تیاریږي او هغوی د تن پروري او راحت غوښتنې خوا ته بیایې او پاملرنه یې له اصلي ډېرو مسایلو څخه بلې خوا ته اړوي. موږ ښه پوهیدو چې راحته ژوند سره عادت اخیستل راحت غوښــتنه منځ ته راوړي چې خطرناکه ده. له دې پلوه تر هغه ځایه چې شــونې وه هڅه مو کوله د ځــان لپاره منظمه برنامه جوړه کړو چې د راحت غوښــتنې اجــازه رانکړي. که څه هم په کوټه کې ځینو کســانو باور درلود چې د دې کارونو سرته رسول اړین ندي او په ضروري مواقعو کې فرد کولی شــي د ایمان په زور ســخت شرایط وزغمي خو زیاتو ملګرو د هغه تجربو له مخې چې تر لاسه کړې وې ښووله چې دا ډول عقیدې سمې ندي او ویل یې مرفه شرایط یوه توطئه ده چې دښمن زموږ لپاره جوړه کړې، موږ باید په پوهاوي هغه سره مخامخ شو او ګول ونخرو.

# امریکایي لابرکینګ موږ سره یو ځای په بندکې

پدې ځای کې د شارون لابرکینګ، امریکایي جنی چې په اصطلاح د جاسوسي په جرم نیول شوې او زنداني شوې وه او ورځپاڼو یې په هکله غږ او غوږ په لار اچولی و خبرې کوم.

هغه نسبتاً د کمې سیاسي پوهې لرونکې جنی وه. د یو ایراني محصل چې د کنفدراسیون غړی و کوژدنه وه، دا چې پخپله ایران ته راتللی نشــو، هغه یې خپلې کورنۍ ته اســتولې وه. هغې باید د ایران د مختلفو سیمو انځورونه تیار کړي وای. اتفاقاً شارون پداسې موکه کې ایران ته رسیدلې وه چې د رژیم تبلیغاتي دستګاه په بې وسې سره هڅه کوله د داسې کسانو له وجود څخه د هغو نوو راتلونکو انقلابي څپو دمخنوي لپاره ګټه واخلي کوم چې د خلکو ضد رژیم هوسایې یې له منځه وړله.

شــارون زمــوږ له راتګ څخه مخکــې، د دې لپاره چې هغې ته محکمه جوړه شــي، دوه ځله د نه خوړلــو پرلــت کړی و. دریم ځل یې د محکمې په پریکــړې د اعتراض په عنوان، چې پرته له مدرکه او دلیل څخه په شــپږ میاشــتو بند محکومه کړه، پرلت کړی وو. غوښتل یې چې آزاده شي. د ارادې خاونده او صادقه وه. د لږې سیاســي پوهې درلودلو ســره سره د دښمن په چلوټو نه غولیده. محکمه کې یې هغې ته په ډېر ټینګار سره ویلي وو چې د شاه لپاره پښیماني لیک ولیکي خو هغې په غوڅه توګه دغه غوښتنه رد کړې وه. په ایران کې د امریکا سفیر هم هغې ته همدا وړاندیز کړی و. د زندان رییس هم پدې هکله ډېر ټینګار کاوه. خو شارون پدې موضوع ډېره عصباني کیدله. ویل یې هیڅکله دا کار نه کوم. بالاخره مقاومت یې د دې لامل شو چې هغوی خپلې غوښتنې په ټیټه کچه بیان کړي.

له هغې یې وغوښتل چې د خپلې وضع څرنګوالی سفیر ته ولیکي او د آزادي غوښتنه وکړي. سره له دې چې شارون ته ژوند په زندان کې ستونزمن وه، غوښتل یې ژر آزاده شي او امریکا ته ستنه شي، خو بیا یې هم دغه غوښــتنه رد کړه او ویې ویل: «زه خپله آزادي له بلې لارې لاس ته راوړم». همدا دلیل و چې د نه خوړلو په وچ پرلت یې لاس پورې کړ (د اوبو نه څښلو پرلت چې یوازې د درې ورځو لپاره د ژوندي پاتې کیدو امکان لري). دا ځل د مخکني پرلت برعکس، څوک یې پوښتنې ته رانغلل

نه ډاکتر او نه يې بل چا پوښــتنه وکړه. د ســاتونکو مشر چې له ډېرې ناپوهي يې تصور کيده د مغزي تکامل له مخې وروســته پاتېوالی لري کله ناکله به پرته له دې چې د هغې بيهوشــي ته توجه وکړي په دوسيه کې ګزارش ليکه....

مور (د کوټې ملګرو ) هر يو په وار ســره د هغې په ســر ولاړ وو او د شپې به مو پيره کوله، دريمه ورځ وه چــې حالــت يې ډېر خراب وه او د مړينې امکان وجود درلود. مور پدې فکر کاوه چې په کوم علت هغې ته توجه نه کوي په داســې حال کې چې د يوې بهرنی جنۍ مړينه په زندان کې د دســتګاه لپاره منفي تبليغ ګڼل کيږي. يوبل سره مو خبرې وکړې او مشوره مو وکړه چې په هر صورت کيږي بايــد خپلې ټولې هلې ځلې په کار واچوو، د ســاتونکو مشــر او د رييس ځنــګ ته ورغلو چې هغوې هــرو مرو يوې چارې ته اړباســو. يو له ملګــرو څخه د رييس په ميز ورځپاڼه وليدله چې د شــارون انځــور ورباندې چاپ شــوی وو، په دې ورځو کې مور ته ورځپاڼــې نه راکول کيدې او رييس ظاهراً بې توجهي کړې وه او پريښــودلې يې وه چې زمور ملګري ورځپاڼه ولولي: «امريکايې جنۍ شــارون لابرکينګ په... تاريخ د جاسوسي په جرم نيول شوې وه او په محکمه کې په شپږ مياشتو بند محکومه شــوې وه، د پښــيماني پاڼه يې... ته وليکله چې تر بخښــنې لاندې راغله.» آفرين په دې بې شرمي او ســپين ســترګيتوب! آخر تر دې کچې غټ دروغ! شــارون ته مو اوبه يوړې. دښمن خپله چټله موخه عملي کړه او نور نو پرلت ته دوام ورکول بې ګټې وه. شــارون حيرانه او هک و پک پاتې وه... آخر څرنګه امکان لري...!؟

# د شاه فاشيستي رژيم په محكموكې زموږ بريدونه

مخكې تر هغه چې د محكمې جريانات كوم چې زموږ لپاره جوړ شــوي و تشــريح كړم، لازمه ده هغه شــرايط چې په هغو كې د خلكو فدايي چريكان محاكمه كيدل، روښــانه كړم. هغه فشــارونه او ځانگړي خواشــينوونكي چلندونه چې زموږ د سازمان ملگرو ســره په فرمايشي څارنواليو كې سرته رســيدل، په محكمه كې د هغوى د هيڅ ډول اړيكو او د تهاجمي متن جوړولو مخنيوى ندى شــوى او حتــى موږ چې پخپله د جرياناتو په متن كې ځاى درلود، كولاى مو نشــول په محكمه كې د خپلو ملگرو ويناوو ته لاسرسى ولرو. له دې ټولو سره سره ما او نورو زنداني ملگرو وكولاى شول پدې اړه يوڅه خواره واره مطالب راټول كړو.

زما ملگري چې د سازمان د مركزيت په ليكو كې شامل ول، د ۵۰ كال د بهمن او اسفند په مياشتو كې محاكمې ته راكښول شول. هغوى دغه قضايي جلسې د محاكمې په توگه نه منلې او محكمه يې د دې لپاره چې تورونو ته يې رسيدگي وشي او دغه تورونه رد يا ومنل شي نه پوهيدل. د چريک ملگرو لپاره د محكمې بهير يو نمايش او له ملنډو ډک و، شاه پورې تړلي رژيم د دې لپاره چې په واقعيتونو برغولــى كيــږدي او خپلو جنايتكارانه كړنو ته قانوني بڼه وركــړي، له همدې كبله ملگرو پرته له دې چې د محكمې صلاحيت او عدم صلاحيت ته توجه وكړي په قضايي جلسو كې ويناوې كولې. زموږ ملگرو د امپرياليزم د چوپړانو په وړاندې ځان څخه د دفاع اړتيا نه ليدله. ځكه كله چې يو كس ځان څخه د دفاع په خاطر د بل په وړاندې راپورته كيږي بايد د هغوي په منځ كې مشترک معيارونه حاكم وي. كله چې د خلكو او زبيښاكگرو په منځ كې هيڅ ډول معيار او مشترک ارزښت وجود ونلري نو د خلكو قانون او دهغوى قانون يو شان ندى. امكان لري هغوى موږ د خپل قانون له مخې محاكمه كــړي خــو موږ يې قانون ته اهميت نه وركوو. هغه قانون چې حتــى پخپله دوى ته هم د يوې ځېړې شوې پاڼې شباهت لري او هيڅكله نه اجرا كيږي. زموږ او د دښمن تر منځ نه پخلا كيدونكې جگړه

ځای لري. هغه جګړه چې په پای کې د دښمن په نابودي پای ته رسیږي او علت یې دادی چې زموږ جګړه د دښــمنانو په وړاندې د انقلابي خلکو جګړه ده او دا ښــکاره ده چې د دې ډول جګړې پای د ضد انقلاب او د خلکو د دښمنانو نابودي ده.

د دغې انقلابي اندیشــې پر بنســټ، موږ په محکمه کې هم د خپلې همیشــګې تګلارې له مخې د دفــاع پــه ځای په ورندونو (تهاجماتو) لاس پورې کاوه. پــدې ډول دا لمړی ځل وه چې د هیواد په معاصر تاریخ کې دښمن سره د مقابلې په خاطر په محکمو کې د نوي نوښت (بداعت) ډېره کېښودل شوه. دغه نوې نوښت جوړښت د خلکو د لارې مبارزینو ته د محکمې په جلساتو کې د موضع نیولو نوې لارې مشــخص کړې. د دې کړنلارې له مخې زموږ ملګرو د وارد شــوو تورونو په مقابل کې د ځان دفاع نه کوله د محکمې د محترم ریېس! او څارنوال د اظهاراتو ردولو ته توجه نه کوله، بلکه زموږ ملګــرو د خپلــې ایدئولوژیکي موضع او د خلکو مواضعو څخه په دښــمن یرغل کاوه او له چریکي بریدونو څخه یې نوي بریدونه په دښــمن پیل کړل او په ســرلوړي ســره یې پداســې حال کې چې د دښمن مزدوران د هغوی له افشا کوونکو او تودو بیانونو څخه ډېر ناراحته او عصباني شوي ول او په ځان پیچ و تاو کیدل، په هماغه ارتجاعي محکمو کې یې محکوم کړل. همدا وو چې د شاه رژیم په خپلو محکمو کې، د چریکانو له خوا محاکمه او محکوم شول. محکوم په نابودي، د خلکو د ځواک پواســطه په تدریجي نابــودي. حتمي نابودي چې تاریخ هغوی ته ټاکلــې ده. زموږ ملګرو په محکمه کې په یو غږ چیغه پورته کړله چې: ای مزدور دښمنه، تاریخ ستاسې د مرګ حکم صادر کړی دی او موږ د خلکو فدایې چریکانو د دې حکم اجرا کول پیل کړیدي. ستاسې شتون همدا اوس د شړیدلو او مرګ په حال کې دی. هره ورځ چې تیریږي ستاســې د وجود یوه ټوټه د نابودي په لور ځي. ته ای دښمنه، ته د ننه خپل منځ څخه شړیږې او موږ خپلو ټولو ځواکمنو خلکو سره یو ځای دغې حتمي نابودي ته چټکتیا ورکوو. تاســې ای د امپریالیزم جیره خوړو! د خس او خاشــاکو په شان یاست چې د هر ســیلاو په بهیر کې له بیخه ایســتل کیږئ، تاسې د دې تاریخي حتمي مرګ مخکښان یاست او ستاسې اربابان به تاسو پسې د نابودي نړۍ ته استول کیږي.

چریکي تهاجماتو پدې ډول څپانده فضا منځ ته راوړې وه چې د شاه فرمایشي محکمو پرله پسې غونــډې کولې او په مقابل کــې زموږ ملګرو ډله ډله په محکمو کې خپلو اعتراضونو ته ادامه ورکوله. هغه ســرتیري کوم چې ملګرو ســره محکمې ته تلل د هغوی له خوا به کله ناکله خواره واره خبرونه بهرته وتل.

لاس تــه راغلــي اطلاعات چې د ملګــرو د محاکماتو بهیــر انځوروئ، لاندینــی تصویر په لاس

راکوي:

د خلکو ۲۱ فدايي چريکانو د نوي انقلابي او رزمجويانه روحيې په کارولو سره، محکمې په لړزه راوستې وې او مزدوران يې سخت په ويره کې اچولي ول. ملګرو د محکمې په لمړنی جلسه کې پرته له دې چې له ملندو ډکو تشريفاتو او د رژيم زيړ رنګه جامو کې ځرويګانو* (مترسکان) ته توجه وکړي، د سازمان امنيت ځو تنو چټلو مزدورانو چې د خلکو د انقلاب سپکاوی کاوه، دغه مزدورانو سره په سخت آخ و ډب پيل وکړ او ملګري احمد زاده شخصاً مزدور حسين‌زاده ته سخت غوږ تاوی ورکړه. په لمړنی جلسه کې د ملګرو د ځانګړي چلند په خاطر، په راتلونکو نورو جلسو کې يې هغوی په پنځه کسيزه ډلګيو کې محکمې ته بيول او له بهر سره يې د هغوی د هر ډول تماس مخه نيوله. فدايي ډلګيو به په داسې حال کې چې خپلې پښې به يې په منظمه توګه په مځکه دربولې او د خلکو د فدايي چريکانو ترانه يې په لوړ آواز ويلې او محکمې ته به ننوتل پرته له دې چې ښاغلو! د محکمې مدافع وکيلانو نمايشي فيشن او سينګار ته او پريمانه دوسيو ته چې په ميز ډېرې پرتې وې توجه وکړي په چوکيو کښيناستل. په محکمه کې د دوديز رواج له مخې کله چې د محکمې غړي محکمې ته د ننه کيږي په محکمه کې بايد ناست کسان ودريږي، زموږ ملګرو به پرته له دې چې دغه تشريفاتو ته توجه وکړي په خپلو ځايو به ناست ول او د مبارزاتي مسايلوپه هکله يې يوبل سره خبرې اترې کولې. د ملګرو دغه بې تفاوتي د محکمې غړو لپاره د زغم وړ نه وه. له دې کبله يې سرتيرو ته آمر کاوه چې ملګري دريدلو ته اړ باسي. بيا هم ملګرو مقاومت کاوه او سرتيري مجبوريدل چې هغوی له چوکيو سره له ځايه پورته کړي. د رژيم محترم! قاضي ته د ملګرو دغه ډول درناوی! کول وه.

کله چې قاضي د ساواک د جزاء غوښتنې تنظيم شوې دعوا لوستله ملګرو به هماغه شان خپلو خبرو اترو ته دوام ورکاوه، کله چې به د محکمې منشي هغوی ځخه وغوښتل خپل تابعيت او شغل ځرګند کړي، ملګرو به خلکو ته د درناوي په خاطر له ځايه پورته شول او ويل يې چې موږ د ايران د خلکو تبعه يو او انقلابي حرفه مو شغل دی. موږ د خلکو فدايي چريکان يو، د خلکو د لارې فدايان، دا ده زموږ حرفه او زموږ ټوله شتمني او موجوديت.

د محکمې منشي او د چريکانو تر منځ دغه پوښتنې او ځوابونه پرله پسې يو رنګ تکراريدلې.

---

* ځروی: هغه شی چې د انسان يا يو بل شي په بڼه په پاليزونو يا کروندو کې د ځناورو او مرغانو د ويرولو لپار ايښودل کيږي. (ژباړن)

او کلــه چــې په اصطلاح د آخرنئ دفاع وخت راورســید، ملګرو به په یوه چیغــه نارې پورته کړې ای مزدورانو! تاســې څوک یاست چې مورِ ستاســې په وړاندې د خپل ځان او خپلو کارونو دفاع وکړو، په همدې وخت کې به یې په خپلو ایدئولوژیکي تهاجماتو پیل وکړ، څرګنده شــویده چې ملګري احمد زاده پرته له لیکل شــوې پاڼې دوه ســاعته د منځنئ اســیا او ایران د اوضاع په هکله او پدې ســیمه کــې د امپریالیــزم د حاکمیت څیره په روښــانه توګه تحلیل او وڅیړله، د ایــران رژیم او د دې رژیم امپریالیســت اربابان یې په ســختي ســره محکوم کړل. نورو ملګرو هم ورته چلند درلود. خو د شاه فاشیستي رژیم له دې ویرې چې د ملګرو ایدئولوژیکي تهاجمات او د سور اور په شان تند شعارونه له زندان څخه بهر درز ونکړي، له ډیر زیات پولیســي کنترول څخه کار اخیست. تر څو خلک د خپلو آګاه او مخکښــو بچیانو له نظریاتو او روښــانه افکارو څخه محروم وســاتي. ناخبره له دې چې دغه انقلابي اندیشــې له زندان څخه بهر د نورو ملګرو په واســطه په پراخه پیمانه منعکس کیږي او دغه خنډونه د دې وس نه لري چې زمورِ خلک له روانو واقعیتونو څخه لیرې وساتي.

پدی ډول زمورِ د ملګرو محکمې پای ته ورسیدلې او د خلکو ۲۱ فدایي چریکان په اعدام محکوم شول. زیاتره ملګري مخکې له اعدام څخه تر ربړونو لاندې په شهادت ورسیدل، د شاه رژیم یو ځل بیا د ملګرو د ټینګ ایمان په وړاندې خپله کمزوري او بې وســي د وژلو او ربړولو له لارې ثبوت ته ورسوله.

زمــورِ محکمــه هم د ۵۰ کال په دلوه کې د نورو ملګــرو د محاکمې په څنګ کې جوړیدله. پدې محکمه کې زه، ملګرې شــهین توکلي او ملګرې رقیه دانشــګري د کوچني جرم د تورنو کســانو د ډلې په ســر کې، د لمړي ردیف تورن تر عنوان لاندې محاکمه کیدلو. زمورِ لپاره نظامي محکمې د ملنډو حالت درلود او دهغوی تشریفاتو ته مو په جدي سترګه نه کتل خو په هر حال محکمه زمورِ د مبارزاتو یو پړاو وو باید هغه موله سره تیر کړی وای. مورِ هیڅ یو د محکمې پایلې ته توجه نه درلوده د رأی د لیږد، بنې او د محکومیت د مودې په فکر کې نه وو، اعدام، په شاقه کارونو اوږدمهاله زندان او.... نه مورِ هغه ته اهمیت ورکاوه او نه اصولاً دهغه په فکر کې ولو. محکمې د خپلو تشــریفاتو له مخې خپل عادي بهیر په مخ بیوه. د څارنوالي پړاو لکه د دوسیې جوړول، د جزا غوښتلو تنظیمول، د وکیل د ټاکلو جلســه، د دوسیې لوستلو جلسه، د محکمې او قضا جلسې، دا ټول هغه کارونه ول چې په میخانیکي توګه د رژیم د کوک شوو نانځکو له خوا سرته رسیدل او د محکمې له سره کتنه (تجدید نظر) کې هم همدغه پړاوونه تکراریدل. دغه ټول مراسم په پوځي څارنوالي کې تیاریدل.

مورِ پوځي څارنوالي ته په ورتګ ډیر خوشــاله ولو. ځکه مورِ کولی شــول ســر بیره په هغه کسانو

چې موږ سـره یوځای محاکمه کیدل، نور ملګري هم پـه هغه ځانګړي موټر کې چې زندانیان وړي او د پوځي څارنوالي د اداري په دهلیزونو کې لیدلی شول. موږ ټولو په ورین تندي او انقلابي روحیې موټې شوي لاسونه یوبل ته ښوول او که موکه په لاس راتله شعارونه مو هم ورکول او یا دا چې په ټولیزه توګه مو د خلکو د فدایې چریکانو ترانه ویله. په ملګرو کې د دغه ډول شور و شوق په لیدو سره، په ښـکاره توګه مو د دښـمن په څیرو کې بې وسي او ستړیا لیدله، هر چا کولی شول ووینې چې دښمن نشـي کولی د دغه با ایمانه او ریښـتینو مبارزینو په وړاندې مقابله وکړي او زموږ د انقلابي ځواک د بهیر په مخ کې خنډ شي. مګر دغه ترهورتیا، دغه ټولو نیولو، ربړونو او شهادتونو، دغه ټول تیرباران کولو وکولای شول د مبارزاتود پراخیدو او غښتلتیا مخه ونیسي؟ مګر همدا اوس د لاس‌پوڅي رژیم زندانونـه مبارزینو څخه ډک شـوي ندي؟ پرته له شـک څخه د رژیم منـع کوونکې کړنې لنډ مهاله آغیزې منځ ته راوړي خو په ټوله کې، زموږ د خلکو غورځنګ د پراختیا او غوړیدو په حال کې دی. په هغه کتنو کې چې د محاکماتو په بهیر کې تر لاسـه کیدل، زه هغه ملګرو سـره اشـنا شوم چې تر اوسه مې لیدلي نه ول، تاسې پوهیږئ دا زما لپاره لویه نیکبختي وه. یوه ورځ د محاکمې په بهیر کې د قضا په دالان کې ملګري احمدي سـره چې د تبریز په پوهنتون کې محصل و او په تبریز کې یې زموږ د سازمان د یوې څانګې غړیتوب درلود مخامخ شوم. هغه د لږ عمر خاوند و، په ډیرې خوشالۍ یې ملګرو سـره په خندا خبرې کولې او ټول به یې په خندا راوسـتل. له هغه مې وپوښتل: ملګریه! دا سـتا اخیرنۍ محکمه وه؟ ویې ویل: «هو». پوښتنه مې وکړه محکومیت د څومره شو؟ په غرور سره یې په خندا کې وویل: «اعدام» په رښـتیا سـره د دې ډول ځلانده څېرو موجودیت د ایران په انقلاب کې خلکو ته څومره شور او هیجان په برخه کوي او ټول د دښمن د توطئو او چلوټو په وړاندې ټینګار ته هڅوي. ملګری احمدي هغه څوک و چې حتی د جزا غوښـتنې له نظره هم د هغه په دوسـیه کې کـوم مهـم تور یا اتهام موجود نه و. خو د هغه تازه روحیې او په محکمه کې زړورو تهاجماتو دښـمن ډیـر غوسـه کړی و، له دې کبله یې په وړندو سـترګو د دې لپاره چې هغه مـړاوی او کنګل کړي او تهاجمي روحیه یې وټکوي د اعدام حکم صادر کړ. خو د معمول له مخې یې پوچ خیال کړی و. دغو پریکـړو د هغـه او نورو چریکانو په ورحیه کوم چې په اعدام محکـوم کیدل، هیڅ آغیزه نه درلوده. دښمن د ناچارۍ له مخې د دې لپاره چې شاه آریامهر! د هغوی په اړه یوه درجه تخفیف اعلام کړي، محکومیت یې په حبس ابد بدل کړ.

بل ملګری مې چې په محکمه کې ولید، هغه ملګری عبداله چې افسـر و، د خپل ځلانده ایمان او زیاتې غوسـې او غچ اخیسـتلو په خاطر دښمن سره د مقابلې او مبارزې لپاره زده کړه کوله. هغه د

ســازمان د مینه‌والو غړی و او تر اوسه د تشکیلاتو غړی شوی نه و. ملګری عبداله د ملګري صمد بهرنګي یو له شــاګردانو او مینه‌والو څخه و. ملګري صمد هغه ته لیکونه لیکل. دغه لیکونو د هغه د انقلابي شــخصیت په جوړونه کې ســتره آغیزه درلوده. په دغه لیکنو کې ملګري صمد د راتلونکو دنــدو او د خلکــو په وړاندې د تعهد په هکله خبــرې کولې. په یو لیک کې یې هغه ته لیکلي و چې: «کلــه یې چې ځانته مجســم کړم ښــایي که ته هم پــه راتلونکي کې د نورو زرګونــو ځوانانو غوندې د امپریالیســتي منحط فرهنګ دوکه شې او د دې پر ځای چې تر ستم لاندې هیوادوالو د آزادي په لار کې خپل ژوند وقف کړې، مادي ژوند او د کوچنۍ بورژوازي ســاتېریو او میلو چړچو ته مخ واړوې. ډېــر قهرجن کیږم». ملګرې رقیه چې هغه ســره یو ځای محاکمه کیدلــه، د ملګري صمد په هکله ویل چې ملګري څومره په صفا او کلیوالې ســادګي سره په ډیرې غوسې او خپلې ترکي لهجې چې د محکمې د غړو تر ملنډو لاندې نیول کیده، ویلي ول: «د محکمې رییس او نور هیڅ نه پوهیږي، د کارګرانو د سوکالي خبرې کوي» او بیا یې سینه ووهله او ادامه یې ورکړه چې: «زه یو کارګر یم په ډیر زحمت کار کوم د خپل تحصیل لګښــت او د کورنۍ لګښت تر لاسه کوم، ډیر ښه پوهیږم چې تاسې څومره ناپوه یاســت او دروغ وایي». کله مې چې د ملګري عبداله د ماجرا غوچ دریځ په محکمه کې واورید بې اختیاره د ملګري صمد په یاد کې ولویدم او هغه ته مې چیغه کړه ملګری صمد! ستا هیله تحقق ته ورسیدله او اوس ته یوازې «عبداله» نه بلکه تا سره په زرګونو ځوانان تیار دي ماشینداري په لاس کې واخلي او ټول زبیښــاکګر له منځه یوســي. هغه ماشینداري چې د ویترین شاته پرتې دي او تــا هیلــه درلوده چې «لطیف*» ته د ورته ځوانانو لاس ته ولویږي. انقلاب پر مخ ځي او چندان لیرې نه ده چې ټول لطیفان به ماشــینداري په لاس ولري. د محاکمو له جلســو څخه په یوه جلسه کې چې زما لپاره جوړه شوې وه، قاضي په ډېر سپین سترګیتوب د سازمان یو مینه‌وال ته چې ما سره یو ځای محاکمه کیده او لمړۍ محکمه کې په یو کال زندان محکوم شوی و، وویل: «ځرنګه چې تا د قضا په ناســته کې اشرف دهقاني ســره خبرې کولې، یو کال بل ستا په محکومیت ور اضافه شو!» پدې ډول هغه ته دوه کلونه زندان وټاکل شــو. د مزدورانو دغــه راز تصمیم نیول زیاتره د ملګري د تعرضي او پاروونکې روحیې څپلو لپاره ول. خو هیڅ آغیزه یې زموږ په ځوان ملګري نه درلوده.

دا وې د فدایي جنګیالیو په مقابل کې د دغو حقیرو او بې وســه مزدورانو وروستۍ هلې ځلې. زما

---

* لطیف د هغه کیســې (څلور ویشــت ســاعته په خوب او ویښه کې) د اتل نوم دی چې ملګري صمد بهرنګي لیکلی.

د محکمې بهیر دغه ډول کتنو سره ادامه درلوده او هره ورځ به د وطن نوو انقلابي ځیرو سره اشنا کیدلم.

په محکمه کې هغه تورونو ته په اشارې سره چې عنوان کړي يې وې، خپل تهجمات پیل کړل. ما زیاتره خپل تهاجمات د اذربایجان د کلیوالو د ژوند او د مځکو د اصلاحاتو د تحلیل او ارزونې په اړه تنظیم کړې. ځکه پدې هکله مې ډیر مستقیم تجارب درلودل او په دې ډول مې هغوی په خپلې محکمې کې محاکمې ته راکش کړل. ملګرو شهین توکلي او رقیه دانشګري هم د انقلابي مواضعو څخه په محکمه کې خپلو تهاجماتو ته دوام ورکاوه او دښمن يې لا زیات رسوا کاوه. ملګرې شهین توکلي د نیولو په وخت کې د رژیم د مامورینو بیشرمانه او پوچ چلند چې هغې سره يې کړی و افشاء کړل او د خلکو په چوپړ کې يې په سختي سره محکوم کړل. که څه هم هغه رژیم چې په سر کې يې خائن شاه ځای لري او پخپله په پوره مانا اخلاقي منحرف سړی وی، له دې پرته بل څه انتظار درلودای شي، خو سره له دې نه مو شو کولای د رژیم د فاشیستي چلند محکومولو څخه په اساني ډډه وکړو. هغه ظالمانه واقعیتونه چې د ایران په خلکو او دهغوی په مخکښانو سرته رسیږي، باید د نړۍ د مترقي محافلو له لارې په پراخه توګه د عامه افکارو په وړاندې افشاء شي. نړۍ دنده لري دغه فساد، انحطاط او د جنایتونو په وړاندې اعتراض وکړي. دا د یویشتمې پیړۍ د بشریت په لمن تور داغ دی. موږ د خلکو فدایان یو له خپل هر څه نه تیر شوي یو او د خلکو د بریا تر پایه نه کښینو. خو نړۍ ته نه ښايي دغه بهیر چې په ایران کې روان دی پټه خوله پاتې شي.

# د غوسه ناکو او پریکنده زندانیانو اعتراضونه د زندان مسئولان تسلیمیدو ته اړباسي

په محکمه کې مو د ملګرو له چلند څخه خبر تر لاسه کړ چې له هغه ټولګې څخه د دغه مطلب پوهیدل دي دا چې زنداني کولای شي کتاب یا ورځپاڼه ولري. موږ په زندان کې کله ناکله تر ډېر ټینګار وروسته ورځپاڼې اخیستلې او موږ غوښتل هره ورځپاڼه ولرو، په دې هکله مو هره ورځ د زندان د ساتونکو افسر سره لفظي شخړه (بګو مګو) درلوده. یو ځل ملګرې شهین چې د همدې موضوع په خاطر یې اعتراض کاوه، د زندان د رییس له نظره دغه ژبه بې ادبي وانګیرل شوه او هغه یې انفرادي سلول ته ولیږدوله. دغه کار زیاتره د سپکاوي اړخ درلود. البته ویې نشو کړای چې هغه یو ساعت هم په سلول کې وساتي. موږ د کوټې ټولو کسانو یو ځای په چیغو او شورماشور لاس پورې کړ. تر دې کچې غوسه شوي وو چې د لارې دروازې مو وکښلې. په هیڅ ډول یې نشو کولی زموږ د غوسې مخه ونیسي. له ناچاره یې ملګرې سلول څخه بهر راوستله. موږ ټولو د هغې په لور منډې کړې او د دې لپاره چې خپل یووالی او ملاتړ د زندان رییس او د زندان د ساتونکو افسر او نورو ته وښایو هغه مو په داسې احساس غېږ کې ونیوله چې ته وا په کلونو هغې څخه لیرې وو، کوټې ته مو راوستله.

وروسته تر دې پوه شولو چې د ورځپاڼې اخیستلو لپاره باید پیاوړی ګام پورته کړو. د پوځ څارنوالۍ ته مو لیک واستوه او ورپه زړه مو کړل که چیرې زموږ دغه غوښتنې، هره ورځ د ورځپاڼو اخیستل، پای وازانو څخه د کتابونو تر لاسه کول، د زندان کتابتون څخه کتابونو اخیستل او یو موجه راډیو رانیول... ونه منل شي د نه خوړلو په پرلت لاس پورې کوو. د پوځ څارنوالۍ په ټاکلي وخت زموږ لیک ته ځواب رانکړ اوموږ په هماغه ورځ په پرلت لاس پورې کړ پدې هکله د دښمن مزدوران هم چې هر وخت غواړي د زنداني مبارز د اعتراض غږ او د مقاومت روحیه وځپي، په نصیحت کولو پیل کوي. د زندان رییس وویل ما پخپله پدې اړه جدي ګام اخیستی دی او ټینګار یې کاوه چې موږ پرلت ته پای ورکړو. او ویل یې کارونه همیشه په مسالمت آمیزه توګه ښه په مخ ځي. پداسې حال چې موږ

خپله په دې ډول اعتراض راضي نه ولو. ملګرو ویل دا یو بورژوازي اعتراض دی. وروسته تر دې نه ښايي له دغه روش څخه کار واخلو. پریکړه مو کړې وه کله چې زموږ پرلت ته ځواب رانکړي، پخپله موږ پرلت ماتوو او بیا د یوې طرحه شوې نقشې له مخې څوکسان به د رییس کوټې ته ننوځي او هغه به تر وهلو او ټکولو لاندې نیسي او څو کسان نور به د کوټې شیشې ماتوي.

تر پرلت درې ورځې وروســته، لیک راورســید چې د کتاب او ورځپاڼې په ورکولو راضي دي خو د راډیــو ورکول یې راتلونکي وخت ته ځنډول. د دې پایلې له مخې مو پرلت مات کړ. د یوې میاشــتې په شــاوخوا کې وضعیت زموږ په خوښــه تیریده. خو وروســته د نا څرګند علت له مخې یې د زندان کتابتون وتړه او د پایوازانو په کتاب راوړلو یې هم یو څه بندیز ولګاوه. پوهیدلو چې دا هم د زندانیانو د ازارولو لپاره د دښمن یو ډول تاکتیک دی. دښمن هیله درلوده که وکولای شي دا کار تر هغې کچې تکرار کړي تر څو زنداني له پښو واچوي اوهغه له اعتراض کولو ستړی کړي. د کار نوبت پدې ډول دی: د زنداني اعتراض، د زندان د مســئولینو تسلیمیدل، د زندان د مسئولینو ناغیرې (کار شکني )، د زنداني اعتراض....، دښــمن غواړي زنداني دې ته اړباسي چې آرام او له اعتراض څخه بې خیاله د زندان په ګوښه کې کښیني.

پوهیږو چې دښــمن د خلکو د قهر او غوســې ځپلو لپاره دوه لارو څخه کار اخلي. لمړی درجه کوښــښ کوي په ډیر ناوړه او وحشیانه چلند هغه چوپ کړي، خو کله چې قهر او غوسه ډیرې لوړې څوکې ته ورســیږي د مســالمت له دروازې راوځي او امتیاز ورکوي. د ۵۰ کال په غوبي میاشــت کې د چیت نړۍ د کارګرانو په وړاندې تاوتریخوالی او په ۴۸ کال کې د واحد شــرکت د ټکټونو د قیمت لوړیدو په خاطر د خلکو د لوړې کچې اعتراضونو په وړاندې سازشــکول د دې خبرې ښکاره بیلګې دي. د دښمن دغه کړنه د زندانیانو په هکله هم صدق کوي. هغوی تر هغه ځایه چې وس کې یې وي د زندانیانو غوښــتنو ته توجه نه کوي خو کله چې زندانیان مصمم او قهرجن ووینې امتیاز ورکوي. د بیلګې په توګه ډګروال تیموري مثلاً یو منطقي او د ځوانانو د فکري ودې پلوی دی، د امتیاز ورکولو کارونو لپاره ګمارل شوی دی. موږ هم د ۵۲ کال د وري تر میاشتې هغه څخه ګټه واخیسته او خپلې غوښتنې مو له پای وازانو څخه د کتاب تر لاسه کول او له هغو سره د حضوري ناستې اجازه اخیستل په یولیک کې مطرح کړې چې له ځینو برخو سره یې موافقه وشوه. د موضوع وروستی مسئله چې له زندان څخه یې زما د تیښتې امکانات برابر کړل.

دښــمن د خپل ســوچ له مخې زما د ټولو کړنو او اعمالو ناظر و، فکر یې کاوه ټولې کړنې د هغوی تــر خپل کنترول لاندې لري! د زندان مامورین به په میاشــت کې یــو ځل ناببره کوټې ته را ننوتل او

زموږ ټول وسایل به یې اړک پړک واړول که چیرې موږ کتاب یا کومه لیکنه او یا په اصطلاح بېلارې وسـایل ولرو، کشـف کړي. یو ځل هم پخپله د سـاواک مامور کوټې ته راغی. هرکله به چې زموږ له خوا خلاف کار (د هغوی له نظره خلاف) تر سترګو شو او ځینې وختونه هم زموږ د روحیې کمزوري کولو لپاره یو له موږ څخه اوین یا کمیټې ته بیول او یوه موده به یې په انفرادي سـلول کې سـاتل. د بیلګې په توګه زندان څخه د سیروس نهاوندي[۲] ترتیبنتې وروسته، شپږ میاشتې تیرې شوې وې چې سیمین او فاطمه نهاوندي[۳] یې اوین ته بیولي وې. یو ځل یې ملګرې عاطفه جعفري د یوې میاشتې لپاره، ملګرې شـهین د دوه میاشـتو لپاره اوین ته او ناهید جلال زاده[۴] د شـل ورځو لپاره کمیټې ته بوتلـل د دښـمن دغه کارونه، زیاتره د دې په ځای چې زموږ په تـاوان وي، زموږ په ګټه ول. ځکه په هغه تړلي چاپیریال کې ژوند پرته له هیڅ ځانګړې پیښې ارام او یو نواخت تیریږي، د ورځې پیښو او جریاناتو څخه څه نه اوریدل کیږي، په دغه تړلي محیط کې پرته له کوچنیو پیښـو بل څه نشـته چې د زنداني فکر ځانته واړوي. ساواک ته تلل او بیا ځلي دښمن سره مخامخ کیدلو موږ ته ټکان راکوه. زموږ دندې یې رایادولې او یو ځل بیا یې را ښووله چې د ژوند یوه شېبه هم دښمن سره پرته له مبارزې تیرې نکړو او هره ورځ تر بلې ورځې زیات د خپلو انقلابي دندو د سرته رسولو لپاره کوښښ وکړو.

# د طبقاتي ټولنې ځيره

د زنداني ښځو له درد او کړاونو څخه ډک ژوند او د هغوی د محروميتونو ډيرې زياتې بيلګې مې په سترګو ليدلې چې په وروستني تحليل کې پرته د طبقاتي ټولنې د ثمرې څخه بل څه نه دي. دغه بدمرغی او بې‌عدالتي چې توره ځيره يې زموږ په ټولنې واکمني کوي شاهدان يو.

فروزان اوه لس (۱۷) کلنه جنۍ وه چې د کوڅه‌ډبۍ (ولګردي) په جرم زندان کې اچول شوې وه. هغې په وړوکتوب کې مور او پلار له لاسه ورکړي ول، د خور او د خور د ميړه په کور کې يې ژوند کاوه. په هغه وخت کې د فارسي فلمونو په يو لوبغاړي مينه شوې وه، يو هلک سره تښتي تر څو هغه پيدا کړي. پدې ډول ژوند يې بدلمنځ (فحشا) او کوڅه ډبي ته کش کړای شو. يو ځل د دولس تومانو جريمې په خاطر چې ورکول يې له وسې پوره نه وه، زندان کې واچوله. هغه چې اميندواره وه، زندان يې د زيږد لپاره تر ټولو غوره ځای وموند. لا تر اوسه يې له زندان څخه د آزاد کيدو دوه ورځې تيرې شوې نه وې چې بيا ځلي په سرغړونې! تورنه شوه او زنداني شوه او په هماغه ځای کې يې ماشوم پيدا شو. د استوګنې ځای يې مسافر خانه وه چې ځينې وخت به هلته تلله او نور وخت به يې په واټونو کې تيريده. هلک د امنيتي حوزې د افسر ځوی و. د هغې ماشوم په زندان کې پيدا شو. ماشوم نه جامې درلودې او نه ورنی او سوزنې. د ژمې موسم و، خپله هم له يخنې لړزيدله. درې ورځې په زندان کې پاتې شوه. زندان څخه د آزادي په ورځ واورې اوريدلې، نس يې سخت درد کاوه، کانګو يې حالت ډير خراب کړی و، مامورينو ته يې په ټينګار سره زاري کولې چې دوه درې ورځې نورې په زندان کې پاتې شي يا يې لږتر لږه نيم ساعته وروسته آزاده کړي چې نس خوږکی يې ښه شي خو هيڅا ورله توجه ونکړه. ماشوم يې ورله غيږ کې کيښود او د يخ او واورو په منځ کې يې زندان څخه وشړله، فروزان په ژړا روانه وه، ماشوم چې ورباندې ډير ګران و په غيږ کې کلک نيولی و او ويل يې مجبوره يم هغه له ځان څخه ليرې کړم. روزنتون (پرورشګاه) ته د سپارلو لپاره يې ورڅخه د پارټي يا انجمن غوښتنه کوله. ځای هم نه و. بې له شکه بايد ماشوم يې د لارې په سر پريښودلی وای.

* * *

ســکینه یوه بله بدمرغه ښـځه په زندان کې بندي ده په وروســتنیو پاڼو کې به د هغې په هکله هم خبرې وکړم. هغه د خپلو کلیوالي غوره خصوصیاتو درلودلو په څنګ کې یوه زیارکښــه ساده کلیواله ښځه وه. اصلاً نه يې شو کولای بیکاره کښيني او پرته له کار څخه ژوند وکړي. د انګړ صفا کاره وه، له ســهاره تر ماښــامه يې د زندان په انګړ کې کار کاوه. تر کوم ځایه چې يې پوهاوی درلود، د زور تر بار لاندې يې غاړه نه ټيټوله. د رييس، شــتمنو او نورو غټ ســرو په مقابل کې يې غرور د ستاينې او قدر وړ خبره وه. ټول وجود څخه يې سادګي او صفايي بريښېده. په چاپلوسي بلده نه وه، ټولو سره يې ډانګپېلــې خبرې کولې. هغه يــې ظاهراً د قتل په جرم زندان ته راوړې وه. خو اصلي موضوع څه وه؟ د هغې میړه مړ شوی و او خپلو بچیانو سره په کلي کې اوسيده. هغوی کوم عايد نه درلود، له همدې کبله يې په کلي کې د يو شتمن په مځکه کار کاوه. هغه سړي يې بچيانو ته مزدوري نه ورکوله. سکينې د همدې موضوع له مخې هغه ســره دعوا کوله، د هغې په خبره په کلي کې يې ډېر زيات رســوا کړی و. هغه سړي سکينې څخه په زړه کې کينه درلوده او د يوې مناسبې موکې لپاره منتظر و چې په هغې خپل زهرجن نيش ووهي. لږ وخت تيريږي، سکينه يو سړي سره واده کوي او اميندواره کيږي، اته (۸) مياشــتنی ماشــوم دنيا ته راوړي چې مړ کيږي. دغه موضوع هغه ته پلمه په لاس ورکوي تر څو د ســکينې څخه د خپل بچي د قتل په هکله شــکايت وکړي. مسئولين! رارسيږي سکينه او ميړه يې نيســي، زنــدان کې يې اچوي او نور هيڅ...، نه ورڅخه څوک پوښــتنه کــوي او نه يې څوک خبرو ته غوږ باسي. په ځانګړې توګه هغوی چې په فارسي خبرې کولای نشي. تر يونيم کال وروسته د ملنډو محکمې کې د محکمې رييس هغې ته دومره ســپکې سپورې وايې چې په ژړا کوي يې، داسې نورې بيشــرمانه خبرې او رذالت‌آميزه قدرت ښــودنه لکه د وسلې په زور د يوې کليوالې ښځې په نښه کول او ويرول وژنم دې! که ونه وايې تا خپل ځوی مړ کړی، په دوه کالو به محکومه شې.

پدغه موده کې چې ســکينه هلته وه، بې سرپرســته واړه ماشــومان يې، پرته له دې چې څوک يې ســاتنه وکړي او لګښت يې ورکړي په کلي کې پاتې شوي ول، سربيره په دې ترهغه وخته په ښار کې لالهانده ګرځيدل ډول ډول انحرافاتو کې ښکيل شول او د دغې طبقاتي ټولنې د زرګونو قربانيانو په ډله کې راغلل. د طبقاتي ټولنې عدالت هم تر دې غوره نه وي. ايا په طبقاتي ټولنه کې کولی شو قانون او عدالت څخه خبرې وکړو، تر څو د قدرت د خاوندانو او متنفذينو په وينو ککړ لاســونه د هغوې تر شــا ونه وينو، او د دغه شــرمناکه پوچ او د ملنډو ډک عدالت څخه د کرکې او کينې په احســاس ځان ليرې وساتو...؟

# د زندان مزدورانو سره مبارزه او د خپلو انقلابي دندو یادونه

په هر حال پدې فکر وم چې په یو ډول نه یو ډول د دښمن مزدورانو سره مبارزه وکړم، تر څو هیر مو نه شي چې موږ یو بل سره څه اړیکې لرو. پدې هکله مو د زندان رییس او افسرانو سره هم ټکر درلود چې په خپل حد کې د توجه وړ ول. د هغو ځینې بیلګې دلته راوړم:

زنـــدان ته زموږ (زه، ملګرې شـــهین او ملګرې رقیه) له راتګ وروســـته د ســـاواک د لیکلي امر مطابق، عادي ښـځو سره د سیاســـي زندانیانو د ملاقات کولو کلک مخنیوی کیده. حتی غوښتل یې موږ درې کســـان له سیاســـي زندانیانو جلا وساتې چې وروســـته د ځای نشتوالي او د زندان د رییس د اعتراض له کبله چې په هغه صورت به په موږ د کنترول وس ونلري، له دې کاره لاس په ســـر شـــول. له دغه امر ســـره ســـره په ۵۱ کال د تلې میاشـــت کې یو وخت د زندان رییس او مرستیال دوه زنداني ښځې چې د نامالوم ځای څخه د چک په صادرولو او دوکه کولو زنداني شوي وې، د شتمنو او بانفوذه خلکو په کتار کې شمیرل کیدلې زموږ د کوټو په بند کې ځای ورکړ. هغوی کوټه لکه د خپل کور په شان سینګار کړه، هره ورځ به رییس او مرستیال د هغوې کوټې ته ورتلل. د زندان د ښځو غټه خبره همـــدوی وګرځیدې.هغوی چې د ډاکتر نه درلودلـــو او د خپل ژوند د ناوړه وضعیت له امله په تنګ شوې وې، زړه یې غوښتل پدې وضع د اعتراض له مخې د زندان رییس مجبور کړي تر څو د هغوی غوښتنو ته ځواب ورکړي. خو چا پرې غوږ ونه ګراوه. هغوی موږ سره داسې چلند کاوه وی به هغوی زموږ په بند کې دي. دا اعتراض باید موږ وکړو. څکه پدې ورځو کې د رییس او مرســـتیال بدکاري او بې‌شـــرمي زیاته شـــوې وه، په دې وضعیت د اعتراض کولو اړتیا مخ په زیاتیدو وه، بالاخره یوه ورځ موږ (د کوټو ملګري) له ځایه پورته شولو او د اعتراض په موخه پداسې حال چې رییس او مرستیال ته مو ښکنځلې کولې کوټې څخه بهر شولو او انګړ ته ننوتو. موږ یوازې سهار نیم ساعت او تر غرمې وروســـته یو ســـاعت حق درلود چې په انګړ کې وخت تیر کړو، په دې ورځ زموږ شتون په انګړ کې د

توجه ورړ وګرځیده. ســاتونکی زمورِ خوا ته راغی چې ولې انګړ ته راغلي یو. په غوسه مو ځواب ورکړ چې ته دخالت مه کوه زمورِ خبرې ریېس ســره دي. ټینګار یې وکړ. ریېس ته په ښــکنځلو ســره مو متوجه کړ چې موضوع کړکیچنه ده، باید موضوع ریېس ته ووایې. ریېس دوه وارې هغه راولیږه چې له مورِ څخه وغواړي دهغه څنګ ته ولاړ شو او خپل شکایات په هغه ځای کې مطرح کړو. مورِ وویل چا چې ګناه کړې باید هغه دلته راشــي، نه دا چې مورِ دهغه کوټې لاړ شــو. په هر حال ریېس راغی. پدې وخت کې ښــځې د کړکۍ شــا ته ناستې وې او د دغې صحنې ننداره یې کوله. مورِ د ریېس لیدو سره سم په ښکنځلو پیل وکړ، د دې لپاره چې ښځې یې واوري په لوړ آواز مو ویل: تاسو چې په دغه ښــځو د فاسد نوم ایښــودی دی، له ټولو تاسې زیات فاسد یاست مورِ دغه ښځو ته زیات درناوي قائل یو، هغوی فاســدې ندي چې د یوې مرئ ډوډۍ پیدا کولو لپاره دغې لارې ته کښــول شوېدي، تاسې فاسد یاست چې.....

ریېــس چټک وارخطا په هلوځلو شــو چــې موضوع وتړي. نه د خپل فســاد او تبهکاري پټولو په خاطــر ځکه چــې دا ډول کړنې دهغوی لپــاره معمولي خبرې وي بلکې پدې دلیل چې د ســاواک د امــر خــلاف یــې عادي زندانیانو تــه زمورِ په بند کې ځــای ورکړی و. هغه هڅه کوله مورِ ســره په مسالمت‌آمیزه توګه معامله وکړي خو مورِ په هیڅ ډول نه چوپ کیدو او په غوڅه توګه مو د هغه ټول دلائــل او خبــرې رد کولې تر څو مو له دې لارې د ریېس هغه برم او جلال چې د ښــځو په وړاندې یې درلود له منځه یوسو او ښځې وهڅوو چې په اعتراض سره د هغه د زور زیاتي بار لاندې سر ټیټ نکړي. له دې کبله مو هغه ســتوغې ســپورې ویلې کومې چې په حقیقت کې د هغه په شــان ســپکو او حقیرو انســانانو ســره ښایي. دغه ذلیل سړي زمورِ د خبرو په وړاندې نشو کولی څه ووایي. مورِ په مځکه ناســت وو او هغه ولاړ و، د دې لپاره چې مورِ ســره د ســازش له لارې کار واخلي، هغه هم په مځکه کښیناســت او په آرامه ژبه یې خبرې پیل کړې چې زه د دې وضعې په جوړولو کې هیڅ ګناه نلرم. ټول کارونه مرســتیال کړي دي، په دې ډول دلائلو یې ځان ملامتي څخه خلاصوه. پدې وخت کې مورِ یو یو د هغه له مخې پاڅیدو او له هغه څخه لیرې شــولو، نه مو غوښــتل دغه کرغیړن مزدور تــه د خبرو اجازه ورکړو تر څو زمورِ لپــاره خپل کارونه توجیه کړي. په هر حال مځکې څخه د ټولو پاڅیدلو وروســته وضعیت ډیــر جالب او په ورته وخت کې یې خندوونکــی حالت منځ ته راوړی و. ریېس د انګړ په منځ کې یوازې ناست و او د بې وسي په حالت کې چې ورڅخه لیرې کیدلو په مورِ سترګې نښلولې وې. درواغجن شخصیت یې بې کچې مات شوی و، له مځکې پورته شو، پداسې حال کې چې له زیاتې بې وسي نه پوهیده څه کار وکړي سر او پښو څخه یې بیچارګي او حقارت ښکاریده،

وویل: «اوس بالاخره څه کار وکړم.» ومو ویل همدا اوس دغه دوه ښځې پورتني پوړ ته ولیږدوه. هغه د دې کار لپاره موږ څخه د وخت غوښــتنه وکړه، خو موږ هغه ډول په خپلو خبرو ټینګ ولاړ وو. په پای کې پریکړه وشوه همدا اوس د ښځې مجبورې کړای شي چې کوټه تخلیه کړي. بالاخره پورتني پوړ ته د ښځو تګ سره زموږ د اعتراض موضوع پای ته ورسیدله. ښځو چې د کړکیو له شا څخه زموږ ننداره کوله او د ریېس په وړاندې زموږ د غوچ دریغ شاهدانې وې او د ریېس بې وسي او عاجزي یې د دا ډول غوچ اعتراض په مقابل لیده، په شوق راغلې او چکچکې وهلې او موږ ورله لاسونه ښورول او د صمیمیت په اظهارولو سره مو خندل.

ســربیره پر دې چې ریېس ســره دغه رنګه چلند زموږ په اړه د زندانیانو درناوی دومره زیات شو چې وروسته یې موږ د یو قدرت په بڼه پیژندلو او زموږ پخپلې روحیې یې هم ښه اغیزه درلودله. دغې موضوع د هر ډول محافظه کارانه اندیشــې زمینه لکه په مرتب ډول د کتاب او ورځپاڼو لاسته راوړلو لپــاره بده نده ریېس ته ســلام ورکړو او درناوی یې وکــړو دغه ورځې چې ورو ورو منځ ته راغلې وې محافظه کارانه اندیشې له منځه یوړې. نور نو د بیلابیلو ملګرو په نظر ریېس ته سلام ورکول سپکاوی او د ملنډو کار ښــکاریده. وروســته له دغه جریان څخه وه چې مرستیال بیا د ښځو زندان ته رانغی او بل ځای ته تبدیل شو او په څنګ کې یو شمیر افسران او ساتونکي هم بدل شول.

موږ د زندان مرســتیال ســره چې په څنګ کې د ضد اطلاعاتو مامور هم وه، ټکرونه درلودل چې زه د هغو څو بیلګې راوړم. دغه ســړي له هماغه اولی ورځې کله چې زندان کې وګمارل شــو کوښښ کړی وه د تاوتریخوالي له لارې ځان مهم او ستر وښايي، زنداني ښځو سره یې زموږ له کتنې په کلکه مخنیوی کاوه. کله یې چې لیدل کومه ښځه موږ سره خبرې کوي هغه به یې ویروله چې ګواکې ضد دولتي دوســیه ورله جوړوي، یو کســیز سلول ته یې استوله. دغه سړي موږ ســره دومره کینه درلوده چې حتی موږ یې د خپلې خوښــې کوچني کار ته هم نه پریښــودلو. مثلاً همیشه متوجه و، کله چې به موږ د کوم ملګري انځور په دیوال وځړاوه هغه به یې ژر شیرې کړل. موږ پســې یې تر شــا ښکنځلې کولې او زموږ ښیرازه او تازه او مقاومت پالونکي روحیې څخه په سخته بیره کې وه. د بیلګې په توګه یوه ورځ یو ملګري د خپل ټینګ او غښــتلې عادت له مخې په داســې حال چې سر یې اوچت نیولی و په بې پروایې او غرور د هغه له مخې تیر شــوی و. دغه ســړي د ډیرې غوســې او بې وسي له مخې ونشو کولی ځان کنترول کړي د عادي زندانیانو په مخ کې یې ملګري ته ښکنځلې کړې وې او ویلي ول.... حتی په لاره تګ یې هم مغرورانه دی. په هر حال یوه ورځ یو ملګری د یوې ناروغې ښځې د پوښتنې لپاره د زندان روغتون ته تللی و، مرستیال هم روغتون ته راغی. البته موږ تر هغه وخت پورې

نه پوهیدو چې هغه د ضد اطلاعات مامور هم دی. ملګرې په پیل کې د روغتون له وضعې او ډاکتر څخه شکایت کړی و آخر دا څه ډول روغتیا پالنه ده چې په ژیړې اخته ناروغ ۵ ورځې کانګې کوي لــه ډیــر درد او ناراحتې څخه په مځکه ارام نلري په خپل ځای پاتې کیږي او ډاکتر ســره له دې چې پوهیږي ناروغ په روغتون کې ملاست دی، حتی د دروازې له خولې یې هم پوښتنه نه کوي. جاسوس ســړي په ټولې بې شــرمې ملګرې ته په ځواب کې ویلي ول، دا کارونه تاسې پورې اړه نلري.اصلاً ته پــه کوم حق روغتون تــه راغلی یې؟ په هغه وخت کې ملګرې په هغه چیغه وهلې وه: باید تا ته وویل شي چې ته ولې دلته راغلی یې! څنګه د دې ښځې ناروغي ما پورې اړه نلري؟ په داسې حال کې چې زه د همدوی د کړاونو او بدمرغیو د له منځه وړلو لپاره اوس دلته زنداني یم. دا ته یې چې حق نلرې پښې د په روغتون کې کښیدې او په ظاهره د ناروغانو پوښتنه وکړې. پداسې حال کې دا کار نه یواځې حق بلکې زما دنده ده چې باید همیشــه د دې ښــځو په فکر کې اوسم. وروسته تر دې لانجې، چې د جاسوس سړکي غرور د زنداني ښځو په وړاندې مات شوی و، زما په نسبت یې کینه زیاته شوه د غچ اخیســتلو په هڅه کې شو. هغه یوې زنداني ښــځې ته چې لومړني خصوصیات یې تر نورو زیات ول ویلي و چې په یوې بهانې ما سره لانجه جوړه کړي او ځینو ته یې هم ویلي و چې په دغې لانجه کې مداخله وکړي او کار تر سوټې وهلو ورسوي. هغه غوښتل په دې کار وښایې چې په اصطلاح د زندان ښځې زما په ضد پاریدلې دي... خو دا په ډاګه وه هغه مینه او محبت چې ما د دغه محرومو ښځو په نســبت درلود هیڅ وخت اجازه نه ورکوله زموږ په منځ کې لانجې جوړې شي. په هر حال د جاسوس مرستیال نقشه عملي نشوه او ځوانه ښځه زموږ د محبت آمیزه چلند تر آغیزې لاندې اعتراف کولو ته مجبوره شوه او موضوع یې موږ ته رسوا کړه.

* * *

د ۵۱ کال په همدې میاشت کې هرزه خائن اشرف پهلوي یو وار زندان ته راغي. په ایران کې ټول ښــه پوهیږي چې هغه د قاچاق کونکو او د نورو جنایتکارانو د باند رییس دی چې په نېشــه‌یې توکو د هیواد د زرګونو ځوانانو د روږدي کیدو، فساد کې د ډوبیدو او بالاخره په تدریجي توګه د مرګ پولې ته د تللو ټول مسئولیت په غاړه لري. ټولې بدمرغه زنداني ښځې هغه څخه کرکه لري. په تیره بیا قاچاق پلورونکې ښځې ډیرې ښې پوهیدلې چې د ټولو سترو بدمرغیو اصلي عامل خائن اشرف پهلوي دی. تر کومه ځایه چې کله کله به په اصطلاح مســئول مقامات د زندانیانو لیدلو لپاره زندان ته راتلل او د زندان رییس زموږ چلند د ځان او همدارنګه د یاد شــوو مقاماتو په وړاندې لیدلی و، کوښــښ به یې کاوه دا ډول کســان زموږ کوټې ته کم راولي. که په تیروتنې ســره به دغه مقاماتو زموږ د کوټې دروازه

پرانیستله چټک پښیمانه کیدل او بیرته تلل.

هغوی چې به په رنګارنګ تشـریفاتو او تکبر سـره د زنداني ښځو له مخې تیریدل (پداسې حال کې چې یادې شوې ښځې یې مجبورولې د درناوي په خاطر کتار کې ودریږي) کله چې به زموږ کوټې ته ورسـیدل او موږ به یې لیدلو پرته له دې چې اهمیت ورکړو او په مقابل کې یې ځانته ټکان ورکړو په بې‌پروایي سره به هرڅوک په خپل کار بوخت ول او کله یې چې پوښتنه کوله چا یې خیال نه ساته، هک‌پک به شـول او چټک به بهر لاړل. د همدې دلیل له مخې د هرزه خائن اشـرف پهلوي راتګ سـره یې موږ دویمې (۲) شـمیرې زندان ته چې د قصر په انګړ کې د عادي زندانیانو عمومي زندان دی بوتلو.

د دویمې شمیرې زندان وضعیت پدې ډول دی: وروسته له دې چې د لویه اوسپنیزه زنګ لرونکې دروازه خلاصه شـي، اوږد تیاره او نمناکه دالان پیل کیږي چې دواړو غاړو ته یې سلولونه ځای لري. د هر سـلول په مځکه د سـرتیرو دوه زاړه پتوګان پراته دي. مځکه ډیره نمجنه ده، سـلول په پورتنۍ برخه کې کوچنۍ کړکۍ لري چې لاس ورله نه رسـیږي. انګړ یې د شـپږ په اته مترو کې مسـاحت لري دیوالونه یې ډیر اوچت دي، د لمر وړانګې ورله هیڅ نه رسـیږي. کله چې دغه زندان ته ننوځې، بې‌اختیاره د زندانیان تر سترګو کیږي چې هر یو یې د هډوکو په درد اخته دی او په خپلو ژیړو څیرو کړکیو ته کوري ښایې د لمر وړانګې ووینې!

# په هر حال کې
# خپلو نیمګړتیاو او کمزوریو سره مبارزه وکړو

عمومي زندان خپلو ځانګړو شــرایطو سره محدود او تړلی چاپیریال تړلی پدې چې زنداني کسان د هغه ځای ســتونزو او شــرایطو ســره څه ډول مخامخ کیږي، کیدای شــي د زندانیانو لپاره ښه یا بد چاپیریــال اوســي. په واقعیــت کې لوړ دیوالونه، کلپونــه (قفل ها) او د زندان ځنځیرونه نشــي کولی زندانیان د بهر له جریاناتو او پیښو بې خبره وساتې او هغوی د چوپتیا او بې‌حرکتي په لور روان کړي. هغه څه چې کولی شــي د یــو زنداني په پیاوړتیا یا مړاوي کیدو کې مهــم او ټاکونکی نقش ولري، د زندان له شرایطو سره د هغه خپل سم یا ناسم چلند او کړنه ده. په هغه ځای کې مختلف افراد له ډول ډول خویونو او خصلتونو ســره سره اوس په هر حال کې د کوچنی بورژوازي له عادتونو سره نغښتي دي. یا هغه یو رنګه حالت چې په زندان کې ځای لري، کولای شي له هغه محیط څخه د لیبرالیستي خویونو د رشــد او زرغونیدو لپاره مناســب چاپیریال جوړ کړي. په هرچا کــې د کوچنی بورژ وازي پاتې شــوني خصوصیات ذکر ته رادانګي بیا د تل لپاره لازمه ده چې په ځواک او هوښــیاري سره یې په وړاندې مبارزه وکړي. داســې ځواک او هوښیاري چې هر سړی یې باید پخپله په کار واچوي. دغه پروســه چې موږ په عمومي زندان کې له ســره تیره کړه تر څو مو وکولای شــول یو مناســب محیط جوړکړو، پدې ډول وه:

د ګــډ ژوند مســئله د زندانیانو د محدودې شــمیرې د علت له مخې، زموږ لپــاره هیڅ کله د یوې ستونزې په توګه رامخ ته نشوه. خو تر ډیرې مودې په هماغه ساده حالت کې پاتې شولو. ملګرو یوبل سره یووالی او همغږي نه درلوده چې دغه نشتون په کوټې کې د خپل منځي اړیکو په منځ کې ریشه نیوله. موږ همیشه د ساتونکو افسرانو او د زندان د رییس په وړاندې څرنګه رفتار او چلند باید ولرو، د یو نظر خاوندان وو او په هغوی زموږ نیوکې او دعوې په متحد ډول په یو آواز تر ســره کیدلې. خو زمــوږ خپــل منځي اړیکې په هیڅ ډول رضایت بخښــونکې نه وې. موږ هر یــو د کوچنی بورژوازي

خويونه ځان سره درلودل چې دغه خويونو يو بل په سخت ټكر كې اچول چې ډيره خوابدي يې منځ ته راوړله. حتى ځينې له دغو خصلتونو څخه چې په بهر كې ســاكت پاتې شوي ول په هغه ځاى كې يې د ښــيرازه كيدو لپاره مناسب محيط ترلاسه كاوه. د پراخ ليد لوري او تجربې نه درلودل، د مسايلو نه پيژندل او تر ټولو مهم دا چې په دوامداره توګه بهر څخه د ملګرو له مرستې او لارښوونې بې‌برخې پاتې كيدلو او په يوازې ځان د ســتونزو حل ســره مخامخ كيدو، كم كوښــښ كول، موږ په يو نامالوم ستومانه كوونكي وضعيت كې ډوب كړي وو، ستونزې مو ليدلې، پرته له دې چې د له منځه وړلو لاره يې وپيژنو. په هغه وخت كې مو انتقادي جلسې نيولې خو انتقاد كولو نه يوازې زموږ وضع ښه كوله، بلكه نوره يې هم خرابوله! د انتقاد په وخت كې د دې پر ځاى چې فكر مو د انتقاد په موضوع متمركز وى، دې تــه مــو پام كاوه چې انتقاد كوونكى په كومه لهجه خبرې كوي. د مخ ګونځې يې پيچلې دي كه پراخې، كله مو ليدل چې خپله د انتقاد موضوع بيخي پاتې شــوې! او په ساعتونو د انتقاد كوونكي د لحــن او قيافــې په هكله خبرې كيدلې. د كار په پاى كې هم هيڅ پايله په لاس نه راتلله. د تئوريكي مسايلو په هكله د بحث وضع هم په همدې ډول وه.

په ډير كوچني بحث كې هم د مطرح شوي بحث څخه څه په لاس نه راتلل.

البته زموږ زياتو كســانو په دوامداره توګه په صداقت ســره هڅه كوله چې دغه مســايل يوبل سره حل كړو او خپل چاپيريال ښــه جوړ كړو. هر څوك خپل ځان ســره په مبارزه اخته و، په رښــتيا سره دغه هڅې او كوښښــونه په واضح توګه ليدل كيدل. موږ ټول له موجوده وضعې څخه په تنګ راغلي وو. خو په يو ساده تحليل سره د دغه وضعيت دليل په ډاګه كيداى شو. موږ لا تر اوسه د غورځنګ په پيل كې اوســيدو او انقلابي خصلتونه څرنګه چې بايد واى هغه شــان مو تر لاســه كړي نه ول. په هر حال پرله پسې هلوځلو تر يوې كچې زموږ وضعيت مخ په ښه كيدو راووړ. كه څه هم ناوړه پايلې يې هم درلودې. په دې ډول موږ نور د كوټې په مســايلو او ځان ســره په مبارزه كولو باندې اخته وو، د زندان له انګړ څخه بهر د هيڅ مســئلې په هكله مو فكر نه كاوه، د كوچنۍ بورژوازي د خطرناكو خصلتونو د رشد په هكله مو تر دې كچې خبرې كړې وې چې دغه ضعفونه د يو موذي او خطرناک دښــمن په توګه كولى شــي زموږ انقلابي ژوند تباه كړي او حتى خيانت ته مو اړباســي په ګوته كړى وې. نور به كله چې د دښــمن كلمه ياده شوه، مخكې تر دې چې امپرياليزم او لاس‌پوڅي رژيم زموږ په نظر كې مجسم شي، زموږ ضعفونه به مجسم كيدل! موږ په زندان كې ځان رغونه خپله عمده دنده شميرله پرته له دې چې متوجه شو نشو كولى او نه بايد ضعف په مجرد ډول په پام كې ونيسو او هغه سره مبارزه وكړو، موږ په ناپوهي دغه شان كار كاوه. له همدې كبله دغو زياتو هلو ځلو سره سره مو

ډیر لږ څه تر لاسه کول. موږ خپل بد خصلتونه او ضعفونه د خپل ژوند په اړه په پام کې نه نیول او هیڅ پاملرنه مو نه کوله چې د مناسبو مادي شرایطو پرته او په تش تصمیم نیولو او د خپلو ضعفونو په رټلو نشو کولی د کوچنۍ بورژوازي خصلتونه له منځه یوسو! پدې ډول دغې بې ګټې مبارزې موږ ټول وخت ځان سره بوخت وساتلو.

سربیره پر دې، لږ لږ زموږ ډیر وخت د نورو بې ګټو کارونو لکه کنبیناستل، د خپل منځي خاطراتو په تعریف کولو تیریده. وروسته تر کتاب او ورځپاڼو نیولو او د هغو په مسایلو بحث کول چې هم زموږ د فکري رشد لامل کیده او هم یې له چټي بوختیاؤ څخه ژغورلو، په چټکي سره متوجه شولو چې زموږ چاپیریال مخ په ښه کیدو دی او له دې ځایه وپوهیدو چې باید خپله زیاته هڅه د خپل ژوند د مادي شرایطو برابرولو لپاره په کار واچوو. نور نو د انتقاد کولو په وخت کې یوازې یو د بل د انتقادآمېزه رفتار او وینا په هکله بسنه نه کوله، بلکه هر یو کوښښ کاوه داسې زمینه پخپله ځانته جوړه کړي چې وکولی شي په هغې کې خپل ضعف له منځه یوسي، ویېپیژني یا پخپله وواېي چې دغه زمینه جوړوي. ډیر زیات هغه څه چې د منظم او ډاډمن وضعیت منځ ته راوړلو په کار کې د ستونزو لامل ګرځیدل هغه د کوټې د افرادو له امله د کوټې د جوړښت او ترکیب ګډوډ کول و چې د زندانیانو تګ راتګ سره منځ ته راتلل. البته دغه ستونزې له هغه ځایه منځ ته راتللې چې زموږ مشترک ژوندون د کمون په شان نه و او په ټولو برخو کې یې خاص نظم نه درلود چې هر نوی راغلی زنداني یې ومني او ستونزې جوړې نکړي. زموږ مشترک ژوند په واقع کې یو صنفي شی وه چې قوانین یې هم په لمړنۍ کچه کې ول، هر چا ته یې د هر خصلت او هرې اندیشې سره ځای ورکاوه. باید پخوانیو زندانیانو په بیړې سره وضعیت ته سر او سامان ورکړی وای او د زندانیانو لپاره یې د کار او ژوندګي منظمه کړنلاره جوړه کړې وای. یوازې د منظمې برنامې او د کوټې د افرادو د دندو همغږې کولو له لارې یې کولی شول یو مطلوب چاپیریال جوړ کړي. داسې چاپیریال چې د افرادو ادلون بدلون سره وضعیت ګډوډ نشي او بدلون ونکړي. په وروستیو کې دا ډول چاپیریال مخ په جوړیدو وه.

زموږ ډیره بوختیا د ورځپاڼو لوستلو جوړه کړې وه. د ورځپاڼو او د راډیو له لارې بهرني خبرونو څخه خبریدلو. که څه هم د غورځنګ په اړه خبرونه همیشه نیمګړي او اړول شوي ول چې اصلاً د خلکو د ناهیلیتوب او دوکه کولولپاره خپریدل خو بیا هم د مبارزې د دوام او د غورځنګ په ټکولو کې یې د پولیسو بې وسي په ګوته کوله. پولیسو سره هره نښته او د هغوی هر ناکام عمل د انقلابیونو د نه ستړې کیدونکو هڅو او د انقلاب د پرمختګ لپاره د غوښې مبارزې ښکارندویې کوله چې دا پخپله زموږ لپاره د هیله‌مندي او خوشالئ زیری وه. چټي نده تر هغه ځایه چې دښمن کولی شي

کوښښ کوي ډېر لږ خبر، حتی د دوکې په ښه هم خپور نکړي. هغه ښه پوهیږي چې خلک د هغوی د هر ضد خلکي اقدام څخه په خپله ګټه کار اخلي. ځینې وختونه به چې د کوټې کســان محکمې ته تلــل پــه بهر کې د نارینه ملګرو په اړه یې خبرونه اوریدل او بیا بــه یې موږ ته اورول. د دغه خبرونو اغیزه زموږ له ذهن څخه د بې اهمیته مسایلو په لیرې کولو او اړینو کارونو ته په جدیت سره کتل په دغــه محیط کې زموږ عمده بوختیا د کتاب په لوســتلو خلاصه کیده. د جریانونو، اخبارونو او د بهر پیښو په اړه، سربیره پر دې زندانیان دې ته اړباسي چې د دښمن له غوښتلو سره سره چې زندانیانو ته یې یو تړلی محیط جوړکړی، تر څو له دې لارې په اوسنیو شرایطو کې د هغوی فکر غیر ضروري او فرعي مسایلو ته واړوي د مبارزې په اصلي مسایلو فکر وکړي، د انقلاب د پرمختګ لپاره لا زیات د مسئولیت احساس وکړي. مثلاً په زندان کې خپله په ابتکاري عملیاتو لاس پورې کړي.

د اوږد مهاله محکوم شوو مبارزو زندانیانو مهم کار او دنده په زندان کې د یو داسې مناسب محیط جــوړول دي، تــر څو په هغه کې نوي تــازه کار افراد چې د محکومیت موده یــې لنډه ده وروزي. د مبارزینو اصلي موخه باید په زندان کې د دې ډول افرادو روزل وي تر هغه ځایه چې دښمن د افرادو په زنداني کولو کې بې وســې پاتې شــي، ونه غواړي چې هغه زنداني کړي او دغه کار ونکړي! پوهیږو چې د ربړونې زغمل او دښمن ته د اطلاعاتو نه ورکول او په مختلفو وسایلو ربړول او سربداِل کول او په ســر یې خولی ایښــول (ښــایې د لیکونکي موخه تطمیع کول وي -ژباړونکی) او داسې نور، دا هغــه مبــارزه ده چې مبارز کس یې د خپلــو مبارزاتو په خاطر هم په بهر او هــم په زندان کې تمرین کــوي. دا د کار پــای ندی. یو مبارز ته د مبارزې لپاره مشــخص مــکان او زمان وجود نلري او په هر ډول شــرایطو کې یو انقلابي کولای شــي د ځان لپاره د مبارزې د دوام محیط جوړ کړي. په واقع کې د یو مبارز لپاره مبارزه بې‌پایه او بې‌کچې و بې‌پولې ده. د عمومي زندان په شــرایطو کې باید پدې پوه شــو چې د زندانیانو په هکله د دښــمن ټولې موخې او هلې ځلې د دې لپاره دي چې هغوی له سیاسي مسایلو او په ټولیزه توګه د انقلاب او د خلکو د خدمت کولو څخه لیرې وساتي، خیانت، بې‌طرفي او لږ تر لږه بې‌علاقګي ته یې وهڅوي. باید تل هڅه وشي چې د دښمن چلوټې او غولول افشاء شي تر څو وکولاشو د هغه په وړاندې ودریږو.

د یو مبارز ډېره مهمه او اړینه دنده د ننه په زندان او له زندان څخه بهر په ځان کې د خپلو کوچنۍ بــورژوازي خویونــو په وړاندې بیرحمانه مبارزه کول دي. دا چې پــه عمومي زندان کې خائن «نیک خواه‌هانو»، «پارســانژاده ګانو» او «نوشــیروانپورانو» په یو وار یوســلواتیا درجې خپل جهت ته بدلون ورکــوي او د همــدې خویونو د تدریجــي پیاوړتیا لپاره یې برغولی په مخ بړدي، کله چې د خپل رشــد

مناسبې کچې ته رسيږي نو بيا هماغه آخيرنی جلوه چې خلکو ته شا اړول دي په ډاګه کيږي. په واقع کې هغوې ته په لمړي سر کې دغه خويونه کم اهميته ښکاري، په غوڅه توګه ورسره مبارزه نه کوي او له منځه يې نه وړي. بلکه په هغه برغولی ږدي.

په زندان کې ځينې کســان ځانته اجازه ورکوي چې د آزادي هيله وکړي د فرار يا تيښــتې رؤيا په ســر کې روزي. توجه وکړئ ومې ويل هيله او رؤيا، نه د فرار او آزادي لپاره کوښــښ او په دې برخه کې عملي اقدام. په لمړي ســر کې دغه ډول فکر کول چندان مهم تر نظره نه راځي. خو د وخت په تيريدو ســره ورځ تــر بلې تقويه کيږي په هغه کې د بهرني ژوند خوندونــه د زندان د ژوند په وړاندي ايښودل کيږي او داسې وضعيت منځ ته راځي چی بيا په زندان کې د ژوند کولو د زغم قدرت نلري او په هر حال غواړي آزاد شي او هغه وخت د خپل خيانت په توجيه کولو لاس پورې کوي.

د دغو عيني بيلګو په ليدلو جوته ده چې په انقلابي سازمانو کې انتقاد او په ځان انتقاد کولو سره د مبارزو کسانو په فردي ژوند کې په واضيح ډول تر سترګو کيږي. په هر صورت بايد دغه واقعيت په پام کې ولرو سره له دې چې په زندان کې د دښمن په لاس اسيران يو او دښمن موږ څخه د بهر ټوله آزادي اخيســتې ده، خو په واقع کې پرته له خپل ځانه بل چا دلته ژوند کولو ته مجبور کړي نه يو. د يو ريښــتني انقلابي لپاره چې ژوند يواځې په مبارزه کې ګوري، هيڅ ډول زندان ورته د آزادي ضد په عنوان مفهوم نلري. يو انقلابي هميشــه آزاد دی حتی په زندان کې. ځکه په زندان کې هم کولی شــي مبارزې ته دوام ورکړي او د مبارزې همدغه ادامه د هغه لپاره آزادي ده. که چيرې په ځينو شــرايطو کې وسله په لاس کې نيول او جنګيدل د يو مبارز لپاره د مبارزې شرط اوسي په نورو شرايطو کې په زندان کې هم له هر امکان څخه د دښمن په ضد ګټه اخيستل د مبارزتوب نښه ده.

مګر مبارزه څه شــی دی؟ نه تســليميدل هر هغه څه ته چې رشــد او تکامل سره په تضاد او ټکر کــې وي. او هــر هغه څه چې ناهيليتوب وي د مرګ او چوپتيا څخه خبرې کوي. هر محيط د خپلو شــرايطو پر بنسټ د مبارزې لپاره مناسب شکل غواړي. ريښتينی انقلابي هغه څوک دی چې په هر محيط کې د زمان له غوښــتنې ســره سم په هغه محيط کې اساســي مطرح شوې مسئلې ته سم ځواب ووايې.

# زندان څخه تېښته

د ۵۲ کال د نوي کال لمړۍ ورځ وه. زموږ کورنۍ ټوله یو ځای زموږ د لیدلو لپاره زندان ته راغلې وه او ملاقات حضوري و. د کورنۍ غړو موږ په ډېر شــوق او محبت غېږ کې نیولو. ټول خوشــاله وو. د کوټې ملګري مو په خوشاله خوشالي کې ول، میندو سره یې خبرې کولې. دوه درې ملګري هم د ملاقات کوټې ته، هغه ځای چې هلته اوسپنیزې کټارې او جالۍ وجود لري او ملاقات همیشه په هغه ځای کې کیده تللي ول. د نارینه ملګرو یو شمیر میندو د عادي ښځو په منځ کې د پولیسو له سترګو لیرې او زندان‌ساتونکو څخه په چل او حیلې ځانونه د اوسپنیزو میلو شا ته رسولي ول او غوښتل یې ما وګوري، پورته شــوم او د ملاقات کوټې ته ورغلم. لږ ځنډ هغوی ســره چې په ډېر شوق زما د لیدلو په انتظار کې ول خبرې وکړې. د هغوی زړه غوښــتل چې د ننه زندان ته راشــي او حضوري ملاقات وکړي هغوی ته مې وویل کولای شي زما د کورنۍ په نوم زندان ته د ننه راشي.

د وري میاشــتې په دریمه ورځ یو شــمیر زیاتې چادري لرونکې زړې ښـځې او ځوانې جنکۍ زما د کورنــۍ پــه نوم زندان ته راغلــې. د هغوی د مینې او محبت په لیدلو ډېر خوشــاله ولو. پوهیدم چې هغــوی د کورنــۍ اړیکو په خاطر یا د کوم خاص شــخص لپاره زندان ته نــدي راغلې. بلکه د هغوی محبت مبارزې او مبارزینو ســره د علاقمندې نښــه وه. ټول په هیجان راغلي وو. ځان ســره مو ویل څنګه کیدای شــي په یو ډول د هغوی غوښتنو سره ســم موږ غښتلي جنګیالي او نه پخلا کیدونکي مبارزین ووینې او په یو ډول د هغوی دغه غوښتنو ته سم ځواب ورکړو. بیا سره راټول شو او په ګډه مو د هغوی لپاره انقلابي ترانه وویله. پیره‌دار او د ســاتونکو افســر په کوټې کې نه ول. هغوی کله نا کله کوټې ته سر د ننه کاوه. د غیر سیاسي زندانیانو د لیدلو لپاره زیات شمیر ملاقات کوونکو د میلو تر شا د غیر سیاسي زندانیانو د زندان په انګړ کې چې (د اختر د ورځو په مناسبت د زندان د پورتني پوړ دروازې تړلې نه وې ټول په انګړ کې ول) ډېر شــور ماشــور او ګنه ګونه وه چې کنترول کول یې ستونزمن کار وه. د همیشه خلاف چې نورو ښځو سره یې زموږ د نږدې کیدو مخه نیوله، په دغه ورځو

کې مو کولی شول نورو ښځو سره یو ځای شو. او هغوی هم زموږ کوټې ته راتللې او په ساعتونو حتی تر نیمې شپې زموږ په کوټې کې پاتې کیدلې.

ځان ســره مې فکر وکړ چې یوازې د ترانې ویــل د ملاقاتیانو لپاره کافي ندي. غوره دا ده چې یوه اعلامیه یا د اعلامیی په بڼه ولیکم او سبا یې ورله ولولم.

د ملاقاتیانو د بدرګه کولو وخت را ورســید. ملاقاتیانو موږ هر یو ښــکل کړلو او موږ د دروازې تر مخې هغوې ســره لاړو. کله چې دروازې څخه بهر تلل، متوجه شــوم چې د تیښتې لپاره ډیره مناسبه موکــه لاس ته راغلې. نه یې د ملاقاتیانو تعداد شــمیره او نه چــا د ملاقاتیانو څیرو ته کتل. پیره‌دار د دروازې مخ کې ولاړ و، پوهیدم چې په یوازې ســر کنترول کولی نشــي. ذهن ته مې راغله چې کیدای شــي فرار وکړم. حتی یوه لحظه مې وغوښــتل چې د هغوی په منځ هغوی ســره یو ځای بهر شم، خو کلــه مې چې خپل ســرو وضعې ته وکتــل د زندان پرتوګ مې په تن کې و چــې زوړ او پیوندي و او د کمیس وضعیت تر هغه ډیر بدتر و د زندان ارتې چپلې مې هم په پښو کې وې. له دې کبله وضعیت مې غیر عادي و او د بهر کسانو سره مې ورته والی نه درلود، ډیر ژر د پام وړ کرځیدم. پیره‌دار ته مې وکتل. دا چې د تیښــتې لپاره ډیره ښــه موکه وه، خو ما ونشو کولی دغې موکې څخه ګټه واخلم. د دې په څنګ کې چې پاریدلی وم، ناراحته هم شوم. مخکې ورځ مې هم همدغه شان فکر ذهن ته راغلی وه خو د دې لپار مې لږ پام کړی و. بیرته کوټې ته ســتنه شــوم. په ذهن کې مې د مسایلو د راټولولو او جوړولو فرصت نه درلود. غیر سیاســي زنداني ښــځې زموږ کوټې ته راغلې وې او نه مو شوای هغوی ســره خبرې ونکړو. هغوی سره مې لږ مرکه وکړه خو ذهن مې ډیر ګډ وډ وه. احساس مې کاوه ستر مسئولیت مې مخې ته پروت دی او ضرورت مې درلود چې په هکله یې فکر وکړم. پورته شوم په یوې پلمې د زندان انګړ ته لاړم. هلته مې هم ونشــو کړای یوازې اوســم او فکر وکړم. زنداني ښځو چې ما ســره ډیره مینه درلوده او دا چې فرصت په لاس راغلی وه، کولی مو شــول انګړ ته لاړ شو او یو ځای سره راټول شو ډیرې خوشاله وې. دغه ښځو څخه څو تنه زما خوا ته راغلې او په خبرو یې پیل وکړ.

مازیګر و. تر اوســه مې د اعلامی فکر خپل ذهن څخه لیرې کړی نه وو. ویل مې د اعلامیې په لوستلو سره به مې لږ تر لږه کورنیو ته څه کار کړی وي. غوښتل مې په لیکلو پیل وکړم چې له ځانه مې وپوښــتل: په رښــتیا دغو ځانګړو شرایطو کې چې ډیر ستر کار سرته رسولی شم د اعلامیې لیکل دي؟ یا کولی شــم بل کار هم ســرته ورسوم؟ دغه پوښتنو سره یو وار متوجه شوم. د فرار فکر له سهار راهیســې زما په ذهن کې پیاوړی کیده. ځانته مې وویل، په څه کار اخته یې؟ په داســې حال کې چې کولی شی تر دې ګټور کار سرته ورسوې، ولې وخت پدې کار تیروې؟ پورته شوم کاغذ او قلم مې یوې

څنډې ته کړل. کوښښ مې وکړ د تیښتې په موضوع جدي کار وکړم. پدې وخت کې ناهید جلال زاده د کوټې ملګرې ما پسې راغله او په شیطنت یې وویل: «ودې لیدل د تیښتې لپاره څومره مناسبه موکه وه؟» لږ مو یوبل سره خبرې وکړې او د خبرو په څنک کې مو کوښښ وکړ یوبل ته هیله مندي ورکړو چې بالاخره کولی شو فرار وکړو.

د فرار د مقدماتو په برابرولو مې پیل وکړ. لمړی باید خپل کالي بدل کړم او ښکلې جامې واغوندم. پوهیدم چې دغه کار به د ملګرو پام جلب کړي. یاد ته مې راغلل چې د مور او د نورو ملاقات کوونکو خبرې بهانه کړم. ټال نشوم ملګرو ته مې وویل: بابا دغه میندې هم څه شیانو ته توجه کوي. مور مې تل راته په ټینګار سره وایي چې باید جامې د بدلې کړې، اوس نه پوهیږم دا سمه ده چې د مور په غوښتنې رفتار وکړم که نه؟ ستاسې په نظر که ښکلې جامې واغوندم بد تاثیر خو به ونلري؟

یوه له ملګرو څخه زما د مور ناراحتي څخه ډیره تر آغیزې لاندې راغلې وه ځکه چې مور مې تر اوسه د ملګري بهروز په مړینې باور نه کاوه او د بیا لیدلو لپاره یې د نذر پخلی کوي ووېل: «دا سم کار ندی چې د هر کوچنی کار لپاره بوډۍ ښځه آزار شي. دا کار څه عیب لري؟ اوس ته تازه غواړې شیک جامې واغوندې؟» نورو ملګرو هم د هغې خبرې تأییډ کړې او ما هم په لږ ظاهري نارضایيتوب سره د هغوی خبرې ومنلې. جامې مې بدلې کړې.

شپه وه جنکی ټولې بیدې وې خو ما ته خوب نه راته. ما غوښتل وګورم د دې عمل لپاره څه کارونه لازم دي. ټول مقدمات مې یو یو په ذهن کې جوړ کړل او بیا مې د فرار صحنه مجسم کړله. ټول وجود مې شور او هیجان اخیستی وه. په ارخ تاوه شوم او خپل هیجان مې پټ کړ. سر ته مې وکتل. ناهید مې ولیده چې هغه هم بیده شوې نوه. یوبل ته مو وکتل او ومو خندل او د چوپتیا په علامت مو ګوتې په شونډو کیښودې تر څو ملګري ویښ نشي یا د ګزمې پیره‌دار رانشي. دې موضوع مې ذهن اشغال کړی و. په هر حال پوهیدم چې د فرار امکان تر دوه کسانو زیات ندی. ځکه چې د ملاقاتیانو د بدرګه کولو په وخت کې د مامورینو له مخې تیریدلو که چیرې له اووه (۷) کسانو (زموږ ټول شمیر) څخه څلور کسان کم شي چټک تر سترګو کیږي. ځان سره مې ویل، نه ښایي دغه کار ملګرې شهین یا ملګرې رقیه تر سره کړي؟ دا چې هغوی کولی شول دغه عمل تر ما په ښه شکل سرته ورسوي، شک نه درلود. خو موضوع دا وه کله چې به مو د فرار په اړه خبرې کولې دغه موضوع همیشه د زندانیانو منځ کې مطرح کیږي ملګرو د نورو دلایلو په څنګ کې له هغې ټولګې زما د فرار تبلیغي دلایل احتمالاً د هغوی د فرار په اندول زیاتې آوازې او انګازې خپرولې، ویل یې لمړنی کس چې فرار کوي د امکان په صورت کې باید زه اوسم. همدا وه چې زه نوره زړه نازړه پاتې نشوم

او تصميم مې ونيوه.

* * *

د وري په څلورمه: ملاقاتيان راغلل، بايد ډير کوچني حرکتونه او پېښــې په پام کې ونيســم، د کار خنډونه مې پيژندل. ته به وی په هغه ورځ وضع بدله شــوې وه. دوه پيره‌داران يو د کوټې په ســر او بل دکوټې په آخر کې ولاړ ول او په ځير ســره يې د کوټې وضعيت او ملاقاتيانو ته کتل. او بهر په انګړ کې هم د پيره‌دارانو شمير زيات شوی وه. د ملاقاتيانو شمير هم لکه د تيرې ورځې په شان زيات نه ول. ځــان ســره مې وويل: و دې ليدل څنګه په ځنډ وخوځيدې؟! د يــو چريک د کار تر ټولو غوره خصلت په ناخبري (غفلت) کې د دښمن نيول دي. نور نو د دښمن د غافلګير کولو فرصت له لاسه وتلی وه. په هر حال هڅه مې وکړه د ټولو ملاقاتيانو مخې ته ورشم. ځکه غوښتل مې د هغوی له وجود څخه د خپل عمل ســرته رســولو لپاره ګټه واخلم. لمړی مې خپلې مور څخه يو مقدار روپۍ او نورو ملاقاتيانو چې ټينګار يې کاوه ډالی يا يو شی ما ته راکړي، واخيستل. ځکه فکر مې کاوه په بهر کې به راته په کار شي. بيا مې ځينې ځوانو ملاقاتيانو ته وسپارلې د دې لپاره چې نور زندانيان پرې خوشاله شي، هغوی سره مې ډيرې خبرې وکړي او هر يو ته مې په زړه کوله چې ډير کوښښ وکړه پلانې سره خبرې وکړې. موخه مې دا وه چې پدې کار سره ملګري او ملاقاتيان يو بل سره ګرم شي زما کارونو ته يا زما غيابت ته متوجه نشــي. هغه ورځ د فرار ورځ نه وه. تر دې وخت پورې مې چادري او چپلې نه درلودې. دملاقات کوونکو شــمير هم لږ وه. هغوی ته مې وويل ســبا چې د ملاقات وروستی ورځ ده، نورو ته هم ووايې ملاقات ته راشي.

کله چې د بدرګې وخت راورســيد، متوجه شولو د ساتونکو افسر او دوه نور پيره‌داران د دروازې په مخ کې ولاړ دي او ملاقاتيان په کلکه کنترولوي. ناهيد ته مې وويل: عجبه وخت مو خوشې تير کړ. ولې مو له لمړۍ ورځې په جدي توګه کار پيل نکړ او بيا مو پوښــتنه وکړه: که يو له موږ څخه د فرار په لمړۍ ســر کې ونيول شــي، آيا بل کس به له دويمې دروازې څخه په تيښته بريالی شي؟ دې پايلې ته ورســيدلو چې نه، هرومرو د بهر دروازې ترل کيږي. ســره له دې چې ملاقاتيان تللي ول، خو موږ تر دې وخت پورې بيرته ستانه شوي نه ولو. هڅه مو کوله د هغوی له سترګو پټ پاتې شو. موخه مو دا وه چې سبا وروسته تر فرار څخه، ملګري زموږ غيابت ته ژر متوجه نشي او دا لکه د نن ورځې په شان عادي وګڼي، بې جهته موږ پسې ونه ګرځي او دا د دې لامل نشي چې مزدوران د فرار د برنامې له بشپړيدو د مخه، زموږ له غيبت څخه خبر شي.

مازيګر يې، زندانيان په انګړ کې کتار کې ودرول او سرشــميرنه يې وکړه او د اتياتي شــميرنې په

خاطر دوه وارې کوټې ته راغلل. نور نو پولیس ډېر تکړه شــوي و، مامورينو ګوټخنډنه کوله هیڅوک نشــي کولــی له دې ځای څخه فرار وکــړي، ځکه چې موږ ټول ځایونه تر ځارنــې لاندې نیولي دي. غوښتل يې پدې ډول موږ او نور غيرسياسي زندانيان وپوهوي که تر دې وخت پورې څوک د فرار په فکر کې وي منصرف شي. ناهید ته مې وويل: د بريا امکان څلويښت سلنه ده خو موږ دغه کار کوو، بالاخره دا خو منل شويده چې هر عمل سره د ماتې خطر هم ملګری وي.

تر سرشــميرنې وروســته په انګړ کــې ګرځيدم او راګرځيدم او د فرصت پــه انتظار کې وم چې د جامو بدلولو کوټې ته لاړه شم. هغه ځای کله چې زندانيان محبس ته راشي جامې ترې اخلي او هلته يې انبار کوي، پدې فکر کې وم چې په يو ډول هغه ځاي څخه پړونی او بوټونه غلا کړم. ســکينې ته متوجه شــوم هماغه د اريا مهري د تش عدالت قرباني شوې ښځه چې سرګذشت يې ما تر مخه بيان کړ. هغه په يو کنج کې ناسته وه او ژړل يې. څنګ ته يې ورغلم کوښښ مې وکړ د زړه ډاډ ورکړم خو هغه دومره غوسه‌ناکه وه چې چاته يې اجازه نه ورکوله د هغې څنګ کې ودرېږي، ټول يې په لاس ټيله کول او هماغه شــان يې په نارو ســورو ژړل. لږ يې څنګ کې ودريدم. د هغې په ژړا مې زړه وردرديده. نورې ښــځې هم د خپلو بدمرغيو په ياد کې ډوبې شــوې وې. «قدم خير» ځوانه ښځه چې د نيشه يې توکــو د قاچاق په تور زنداني شــوې وه، په اعتراض او ناراحتي يې د خپلې زندګي شــرح کوله. «آخر د ژونــد دغې بدرنګې وضــع، د درې بچيانو درلودل، د مېړه بيکاري مې چې پوره يو کال کار پســې وګرځيد او تر پايه يې کار هم پيدا نکړ او په آخر کې د حواســو په اختلال اخته شــو، پرته له دې کاره ما ته څه پاتې ول؟ اوس نه پوهيږم چې په بچيانو مې څه بلا پريوتې ده، په روزنتون کې يې ورځې څه ډول تيريږي؟» په قهر سره يې چيغې وهلې: «آخر ما ولې زنداني کړي؟».

نورو ښځو هم د خپلو بدمرغيو خبرې کولې. موږ هره ورځ د داسې بيلګو ترخې کيسې اوريدلې. بيا هم په هغه ورځ غوسه راغله خو کوښښ مې وکړ په زړه کې يې وساتم. وخت را ورسيده چې د جامو بدلولو کوټې لاړه شم. ښځې مې يوه يوه ښکل کړې او خدای پاماني مې ورسره وکړه.

د جامو بدلولو ماموره يوه بوډۍ خو چالاکه ښځه وه. کولی شم د بې‌حيا صفت د هغې په حق کې پــه ډاډه زړه وکاروم. تر اوســه يې د زندانيانو د بدني پلټنې په اړه ډېر برياليتوبونه تر لاســه کړي ول. ځکــه چې غير سياســي زندانيانو يې د هيروييــنو پيدا کولو لپاره لوچ لپړ د رول او په ځير ســره يې تالاشــي کول. يو وار زه هم کله چې محکمې ته تللم، د سيمين نهاوندي خط چې خپل ميړه منوچهر نهاوندي[۵] ته يې په کې پيام ليکلی وه او څو ټوټې شعرونه چې د نارينه ملګرو لپاره مې وړل ما سره پيدا کړل او دوه سوه تومانه جايزه يې واخيستله.

هغــه د جامو بدلولو په کوټه کې ناســته وه او د خپل خیــال له مخې یې زما حرکات چې د جاکټ راوړلــو پــه پلمه هلته تللې وم تر نظر لاندې نیولې وم، خو زما کار ډیر وخت ونیوه، یو پړوني او بوټانو ســره چې په ټوکرۍ کې په ځای کړي ول کوټې ته ســتنه شــوم او د دې په خاطر چې ملګري یې ونه ویني هغه مې تخت لاندې پټ کړل.

د شپې مې پټ د ملګرو کتابچې وکتلې که ناسمې لیکنې ولري، پرته له دې چې خپله متوجه شي څیرې کړم. فکر مې کاوه چې زما فرار څخه وروســته ښــایې کوټې کې وګرځي او ملګري غافلګیر کړي. په هغه شپه کې تر ساعتونو ساعتونو ویښه وم، د ملګرو په هکله مې سوچ کاوه چې بهر منتظر دي. خطرناکه مسـئولیت مې په غاړه وو. هغه ورځې مې مجســم کولې چې د یو چریک په شان ټول قاطعیت سره او ځان کې د قدرت احساس سره وسله په لاس د دښمن سینه ننبه نیسم. د مبارزې هغه مورچل په هکله مې فکر کاوه چې جنګیالیو ملګرو مې هلته په بې امانه مبارزې ســره، د دښــمن د ستم مانۍ په لړزه راوړي او بې غیرته مزدوران یې په تلپاتې وحشت او ویره کې اچولي.

* * *

پنځمه ورځ.....

سهار وه، باید په دغه ورځ مې د فرار برنامه عملي کړې واې. پرته له دې چې وغواړم هیجاني شوې وم زړه مې په شــدت ســره ترپیده. له دې موضوع څخه ډیره ناراحته وم او ځان مې خپله ملامتاوه چې آخر یانې څه، ولې باید دغه حالت په ما راشي. مګر کوم ستونمنز کار غواړي چې را پیښ شي...؟!

د یو ملګري په یاد پریوتم چې هویت یې ساواک ته مالوم نه وه. هغه یې تل ربړاوه که وشي کولی خبرې ترینه واخلي. هغه یو ځل ویلي وه: «هر واړې یې چې غوښتې دي ما د ربړونې کوټې ته بوځي بدن مې ریږدي. خو هیڅکله به تر ربړونې لا ندې یوه کلمه هم ونه وایم» او ویلي یې وه: «د انســان پرتم هم په همدې کې دی چې لړزیږي، ربړول کیږي خو یوه کلمه خبره هم نه کوي»

هر ډول چې وه کوښښ مې کاوه عادي حالت بیرته تر لاسه کړم. سهار هر څه تیار ول. د ملاقات کوونکو شــمیر تر تیرې ورځې زیات و او ټولو تور پړوني په ســر کړي ول. د پړوني او بوټانو ټوکرۍ مې د کوټې په کونج کې هلته چې ټولې ښځې جمع شوې وې په ځای کړې وه. دوه نارینه پیره‌داران او یوه ښځه پیره‌داره د کوټې په یوې څنډې کې ولاړ ول او د ساتونکو افسر هم ژر ژر په کوټې ګرځیده. مرســتیال چې تازه له رخصتي ســتون شوی و، زه یې په ځیر ســره تر سترګو لاندې نیولې وم. مور ته مــې وویل د تللو په وخت کې مامورینو ســره د ســبا ورځې د حضوري ملاقات پــه اړه ډیرې خبرې وکړي، نورو میندو ته مې هم سپارښــتنه وکړه چې هغوی هم ســاتونکو سره خبرې وکړي. موخه مې

دا وه چې ســاتونکي يو ډول ملاقاتيانو ســره بوخت او سرګرم اوسي. د فرار موکه ورسيده. دغه وخت مو خپله ټاکلې وه. ما دوه درې دقيقې مخکې خپلې کورنۍ ســره مخه ښه وکړه. د ملاقاتيانو د خداى پامانــي او خبــرو په کڼه ګونې کې مې پړونى په ســر کړ، بوټونه مې خپو کې کړل او هغوى ســره يو ځاى شوم. هيڅوک متوجه نه ول. ساتونکې ښځه چې د پرله پسې څو ورځو کارونو کې ستړې شوې وه، ورو ورو خوځيدلــه. نارينه ســاتونکو د ميندو محبت څــواب ورکاوه. د کوټې دروازې څخه ووتلو




د قصر بندخونې د انګړ اټکلي نقشه

او د انګړ دروازې ته ورسېدلو. ريیس، مرستيال، د ساتونکو افسر او څو تنه نور ساتونکي د دروازې مخې ته کتار ولاړ ول. د پرون سهار په پرتله ډېره هوسا وم. حرکات مې په طبيعي ډول تنظيم کړل. له دروازې تير شولو خو لا تر اوسه دوه ګامه مخکې تللي نه ولو چې د ساتونکي چيغه پورته شوه: «آها چيري ځې...؟!» هغه ځای کې چې مور ولاړې ولو رامنده کره. زه د ناهيد په دوه قدمي کې وم. ما چې کاملاً طبيعي او عادي وضع درلوده ساتونکی ما ته متوجه نشو. ناهيد يې ونيوله او ځان سره يې انګړ ته بوتله. يو شمير ملاقاتيان په بهر کې او يو شمير په انګړ کې ول. ساتونکي چټک راوګرځيد ل او د ښځو پرونې يې يو يو له سره ليرې کړل او مخونه يې ورته وکتل. زه هم هغه ځای د ښځو منځ کې ولاړه وم. نه پوهيدم بايد څه کار وکړم. ساتونکی د يوې ښځې خوا ته چې جوخته زما څنګ کې ولاړه وه راغی، پړونی يې ترې ليرې کړ او مخ ته يې وکتل. ما هڅه کوله داسې وضع ځانته ونيسم چې عادي ښکاره شي. ټوکری مې په بې پروايي سره د پلټنې لپاره په لاس کې ورکړه او مخ مې چې نيم پټ او نيم ښکاره وه، ساتونکي ته وکتل. هغه چې هم وضع عادي ليدلې وه، ما ته يې توجه ونکړه او نورو ښځو پسې ولاړ. پدې وخت کې څو کسه ملاقاتيان ما ته متوجه شوي ول، احساس کول يې چې وخت زمور له لاس وځي. هغوی په محبت سره زه پخپل منځ کې ونيولم او په هيجان سره يې وويل: «ژر کوه مخکې راشه» او زه په لاره شوم. په لار کې مې يو شمير نور ملاقاتيان چې پرون ملاقات ته راغلي ول وليدل. هغوی هم وضعيت ته متوجه شوي ول، ټولو په خوشالۍ د حمايت له مخې خپل منځ کې ونيولم. له دغه حمايت څخه مې دومره د خوشالۍ احساس کاوه چې حد يې نه درلود. د خپلو نيولو د لمړنيو لحظاتو په ياد کې لويدلې وم. چې د ساواک د مامورينو په لاس کې بندي وم د موټر د ښيښو تر شا يې رېړون‌خونې ته ورلم. په موټر کې د ننه مې خلکو سره په زړه کې مرکه کوله او هغوی سره مې ژمنه او لوز (قول) کاوه چې هغوی ته وفاداره پاتې کيږم. دا چې تر دې ګړۍ په خپلې وعدې وفادار پاتې شوی يم د غرور او خوشالۍ احساس مې کاوه. په مينې او محبت کې ډوبه وم، ځان سره مې ويل: خلک همدا دي. مينه يې لکه د سمندر په شان بې پايه ژوره ده او ځواک يې تر هر بل ځواکه پياوړی دی، کله چې په لاره ولويږي نور نو د دښمن ورکاوي ته څه نه پاتې کيږي.

تر لويې دروازې بايد د زندان له درې نورو دروازو څخه چې د هرې دروازې مخ کې دوه ساتونکي ولاړ ول تير شو. د خپل حرکت تنظيمول او عادي حالت نيول مهمه مسئله وه چې بايد پدې ځای کې رعايت شوي وای، کله کله مې ګامونه چټک اخيستل چې ژر تر ژره لويې دروازې ته ورسيږم او مخکې تر هغې چې دروازې وتړل شي بهر لاړه شم او د دې تر څنګه ويريدلم چې چټک تلل غير عادي وضع په ګوته کوي. ډيرې هيجاني شيبې وې،

هره شيبه زنګ ته غوږ وم چې د ساتونکو او د زندان د افسرانو غږ واورم چې تر شا مې چيغې وهې:

مخه يې ونيسئ، يو زنداني فرار کوي! د فرار له مسئلې څخه دهغوی خبريدل، پدې وخت کې د بريا نيم سلنه چانس وه. په تيره بيا که لويې دروازې ته تر رسيدلو مخکې، هغوی هلته تلفن کړی وای او دستور يې ورکړی وای چې ټولې دروازې وتړئ. نه پوهيدم چې بالاخره د نجات لپاره ګامونه مخکې اخلم او که د خطر په لور روانه يم؟! هيڅ کار مې کولی نشو. د هماغه نيم سلنې احتمالي برياليتوب په موخه پر مخه ولاړم. خپل عادي حالت مې په ټولو شيبو کې ساتلی وه. پدې ترتيب د لويې دروازې مخې ته ورسيدم. بايد په هغه ځای کې د تيريدو پاڼه ورکړو او تير شو. هغوی چې زه د خپل محبت په سيوري کې ورلم، مامورينو ته يې دوکه ورکړه او داسې يې ښکاره کړه چې د تيريدو پاڼه يې هغو سره ده چې شاته راروان دي! پدې ترتيب له هغه ځايه هم تير شولو. نور نو په بهر کې وم. موټر کې کښيناستم او نور نو د دښمنانو لاس ما ته نرسيده..... *پدې ډول وو چې زندان څخه وتښتيدم تر څو وکولی شم وسله واخلم او اوږه په اوږه انقلابي ملګرو سره بيا ځلي له زندان څخه بهر مبارزې ته دوام ورکړم او په ټول وس خپل پور تر ستم لاندې خلکو ته په خلاصون‌بخښونکي انقلاب کې ادا کړم.

## په ټينګ ايمان سره دخلکو دآزادي‌بخښونکي انقلاب په بريا بې‌پايه غوسه او کرکه دوي دخلکو په دښمنانو

---

* د مطلب پدې برخه کې، د ځينو امنيتي مسايلو په خاطر د فرار نقشه او جزييات او دهغو اجرا کول په پوره ډول ندي ويل شوي. که ملګري په هغه کې نيمګړتياوې او موهومات کوري، هغه د مخفي کاري د اصولو په مراعات کولو کې حساب کړي.

# تر ربړونې لاندې د مقاومت شننه

هغه انګیزه او عوامل چې کولی شـي د ملګرو مقاومت تر ربړونې لاندې زیات کړي. کولی شـو په لنډه توګه یې داسې بیان کړو:

۱ - د انقلاب د لارې په سـمون ټینګ باور: دغه باور باید دومره ټینګ او نه ماتیدونکی وي چې حتی که فرضاً مبارز ملګري یو یو هم خپل ارمان ته شا کړي (به فرض محال) زمونږ په ایمان او باور کې د ډیر کوچنی خلل پیداکولو قدرت ونلري. د سختو او پرله پسې ربړونو زغمل او د دښمن د ډول ډول چلوټو په وړاندې مقاومت، په ارمان باندې د ټینګ باور پرته ناشونی بریښي.

۲- دښمن څخه کرکه او ملګرو سره مینه او محبت: دغه احساس باید تر دې کچې پیاوړی شي او دومره په وجود کې ونغاړل شـي چې د مبارزې د هسـتې یو برخه وګرځي. حتی ما نشو کولای تصور وکړم چې څرنګه ممکنه ده، په داسـې حال کې چې خپله ربړونې څخه ځوریدلم، دښـمن ته اجازه ورکـړم زمـا د خبرو له مخې بل ملګری ربړونې ته کش کړي. په ما چې خپل ټول ملګري ګران دي او ټولو دښـمنانو سره کرکه لرم. آیا کولی شـم د ملګرو د ربړونې شاهده اوسم کومې ربړونې چې ما زغملې، زما نور ملګري یې هم زغم کړي؟.

که مې کولای شول داسې احساس کړم او ځان مې خائن ګڼلی، دا په هیڅ ډول ممکنه نه وه چې ربړونې څخه د ځان خلاصون لپاره، خپل ملګري د جلادانو لاس ته وسـپارم. بیا هغه وخت یو عمر روحي ربړونه چې زغمل یې ډیر سـخت وه، منلي وای سـر بیره پر دې، زما لپاره کرغیړن دښـمن ته تسـلیمیدل، خلکو سـره د مینې نه درلودلو سره یو شان و. دښمن فکر کاوه موږ د مقام لاسته راوړلو لپاره مبارزه کوو. خو ما ایمان درلود چې د آزادي په لار کې مبارزه کوم. که د دښمن په وړاندې تسلیم شـوی وای پدې مانا وه چې خلکو ته مې شـا اړولې او پرېښودلي مې دي چې نور هم استثمار شي، په واقع کې زه هم په یو ډول په دغه جنایت کې شـریک کیدلم. په خپل ټول عمر کې مې زبیښـاکګرو څخه په زړه کې دومره کرکه پاللې وه چې له یوې لحظې تصور څخه که د هغوی د غوښـتنې مطابق

رفتار وکړم،په ځان مې لړزه راتلله. ما په ټول ژوند د ســتم لاندې خلکو ســره مینه کړیوه. ایا شونې وه حتی یوه شیبه هغوی هیر کړم؟ د دښمن جنایتونه زما لپاره دومره بربنډ او نفرت پاروونکي ول چې راته ســخته وه، حتی هغوی د معمولي انســانانو په بڼه تصور کړم. په رښتیا هم د جنایتونو نښې مې د هغو څیرو کې په ډاګه لیدلې. همدا وجه وه چې د هغوی په وړاندې د تســلیمیدو یوه ذره تصور زما په ذهن کې لاره نه پیداکوله.

۳ - د مارکسیســتي تئوري په پوهاوي ســره تاریخي قضایاو ته کتل: په یو ډول دیالکتیکي تفکر ســره کولی شــو د مقاومت اغیزه د انقلاب د بریالیتوب ســره هم لنډمهال او هم اوږدمهال سره په اړیکــه کې وســاتو. دغه تصور چې زموږ د مقاومت نه کولو لنــډه آغیزه به دا وي که ملګری ونیول شــي یا ســازمان ضربه وویني ښه تصور دی. خو هغه څه چې دغه تصور تر خپلې شعاع لاندې راولي هغه داده چې فکر وکړو، زما مقاومت، زما نه تسلیمیدل، د انقلاب د بریا په اوږدې لار کې داسې یو ګام دی چې پر مخ اخیســتل کیږي او که چیرې دغه ګام په مجرد ډول نظر کې ونیســو بابیزه او بې اهمیته دی. خو د نورو ډیرو ګامونو په اړه چې د نورو ملګرو له خوا پدې لار کې اخیســتل شــویدي او اخیستل کیږي دا په خپله د دې لامل کیږي، چې د هغوی ارزښت او اهمیت په ښه توګه په ډاګه ووینو، د دې کار د تجسم په وړاندې که حتی موږ د انقلاب لار یو ګام شا ته پریږدو او د خپل خیانت درونــد والــی لمس کړو، همدا دی چې د انقلاب تاریخي جریان ته په کتلو ســره د ربړونو او په کلي توګه د دښمن راز راز چلوټو په وړاندې زموږ مقاومت او برلا سې لاپسې زیاتوي.

۴ - عیني برخورد له واقعیتونو ســره: د مارکسیسم پوهاوی دغه امکان ورکوي چې واقعیتونو سره لا زیات عیني برخورد وکړو. د ربړونې په اړه هغه څه چې د ویرې، وحشت او د معترضانه مقاومت روحیې د لاســه ورکولو لامل ګرځي، هغه څه چې تر مادي ربړونې زیاته آغیزه لري، هماغه ضعف دی چې جرړې یې د ربړونې مسئله ذهني برخورد سره تړاو لري او روحیه ماتوي. په ځانګړې توګه د ربړونې د مامورینو او پخپله د ربړونې په هکله، چې ساواک هڅه کړې ده آوازې خپرې کړې ترڅو ځان وحشــتناک وښــایي. په داســې حال کې چې په لږې واقعبیني سره وینو هغوی دومره ستړې او پلنې دســتګاه ســره سره خپل شکوه او جلال له لاسه ورکړی. ټولی ربړونې په آخري تحلیل کې هغه وســایل دي چې دښــمن ورڅخه د خپلې ګټې لپاره کار اخلي او په پای کې یو با ایمانه مبارز ژوند له لاســه ورکوي. نور نو له دې پرته بله کومه مهمه پیښــه منځ ته راتلی شــي؟ چې دا هم د یو مبارز لپاره کومه مسئله نده.

د ربړونو رواني آغیزه دهغه کســانو په اړه چې عیني برخورد ورســره نه کوي، ډیره آغیز منه ده. د

بيلګې په توګه زما د لوڅولو (لخت کردن) په هکله، کوم تحليل چې ما کاوه، ليدل مې چې د ناراحتي لړ احســاس هم نه کوم. آخر د لاس لوڅيدلو او د پښــو لوڅيدلو سره څه توپير درلود چې ما غوښتي واى ځان ناراحته احســاس کړم؟ مثلاً په وسـلې ډارول، آيا د هغه دغه شکل، يا د ګولى غږ و چې زه يې ويرولم؟ نه! د هغه مادي واقعيت، ګولى وه چې شــونې وه زما په خوايې واره شــي، مګر ما د خپل ارمان په لار کې مرګ څخه ډار درلود؟ له دې کبله بايد کوښښ وکړو چې زيات څخه زيات د عيني قضاياؤ تحليل زده کړو او له دې لارې د دښمن په وړاندې زيات ځواک تر لاسه کړو.

۵ - په دښــمن بشپړه بې باوري: بايد وپوهيږو دښمن چې په هر عمل لاس پورې کوي، ځانکړې موخې پســې ګرځي او هغه دا چې په هر راز چې شــونى وي د مبارز اســرار تر لاســه کړي او په هغه وســيله غورځنګ وټکوي. مهرباني، ربړونه، ويرول، ډول ډول کړاوونه، ســپکاوى، د هغه کسانو د ضعف رنګارنګ ښــکارونې چا چې خپلو ارمانونو ته شــا اړولې او لنډه دا هر کار چې د دښــمن له لوري صورت نيسي، يوازې همدغه موخې ته ځان رسول دي. له همدې کبله بايد د هغو ټولو عملياتو سره په تلپاتې هوښياري مخامخ شو. د دښمن د هر فرد په اړه بايد دغه بې باوري ولرو. لوى دښمن او کوچنى دښمن مانا نلري. دښمن ته کم ارزښت ورکول يوازې زموږ په تاوان تماميږي. هغه څه ته چې بايد تر هرڅه زيات اهميت ورکړو هغه د دښــمن محبتناکه چلند ته نه ويل دي. يوازيتوب، هميشــه ځورول او ربړونه کول او په رنګارنګ سوچونو اخته کول، ښايي د محبت منلو لپاره زړه پورې زمينه اوســې. خو بايد هميشــه يې په پام کې ولرو چې دښمن موږ سره پرته له کومې موخې محبت نه کوي او حتى د دښمن محبت هم دښمني ده. د دغه محبت په وړاندې لړ مقاومت د دې لامل کيداى شي چې هم د دښمن له واقعي څيرې څخه پرده ليرې کړي او هم د مبارز روحيه پياوړې شي.

۶ - د اسارت او آزادي کلماتو څخه سم او فلسفي درک ولرو: ما هميشه تر ربړونو يا په ځنځير يا بل هر حالت کې ځان آزاد احساسوه او رښتيا هم آزاده وه. هيڅ ډول محافظه کاري مجبورولى نشوم چې خپله کرکه د کلماتو په قالب کې بيان نکړم. آخر محافظه کاري د څه شــي پټولو لپاره؟ زه چې د خپل ارمان په لار کې هر څه نه تيره يم نور نو د خپل ارمان ســاتلو پرته، د خپلې کومې شــتمنې د لاســه ورکولو څخه ويره ولرم؟ ما د ربړونه کوونکو ســپکاوى او حقارت چې په زړګونو لارو يې شرم نه ډک او حقير ژوند سره تړاو درلود، احساس کاوه چې همدې ما ته اريانوونکې ځواک راکوه. پدې مې ايمان درلود چې د خلکو د لارې د مبارز په عنوان، دا زه يم چې بايد د خلکو دښــمنان محاکمې ته کش کړم. دا زه يم چې بايد د هغوى برخه ليک وټاکم او دا ډيره بې وسي او خواري وه چې اجازه ورکــړم هغوى زما په وړاندې د قدرت احســاس وکړي او ما په ګونډو کــړي. ما ايمان درلود چې زما

غوښتنه او زما لار د هغوی درک او فهم څخه ډېره اوچته وه. د هرازخيزې آزادي احساس د هر اړخيز اسارت په مقابل کې زما پياوړتيا لاپسې زياتوله.

۷ - د دښمن په هغه لارو چارو له وړاندې پوهيدل چې دښمن يې د مبارز لپاره په کار اچوي: بايد د ملګرو تجربو څخه د هغه چلوټو په هکله چې دښمن يې په کار اچوي او هغه لارې چارې چې د مبارزينو د غولولو لپاره ترې کار اخلي، ګټه واخلو. د همدې پوهاوي له مخې ده چې د دښمن ټګي او چل خنثی کړو. مثلاً پدې پوهيدل چې دښمن څه ډول هڅه کوي ځان له ټولو جرياناتو با خبره وښايي، سرې سره مرسته کوي چې په بشپړې هوښياري سره د دښمن لمړني اطلاعات بې اهميته وګڼي او خپله روحيه له لاسه ورنکړي.

۸ - د انسان په قوي ارادې او تلقين ايمان درلودل: که چيرې مو دغه ايمان په ځان کې پياوړی کړی وي، د دښمن چلوټې لکه د هيپنوتيزم کولو، د امپول تزريق کولو، د شربت په خوړلو په هکله، چې ګڼې سړی د خوب په وخت کې خبرو کولو ته اړباسي او داسې نورې دوکې خنثی کوي.

تلقين د درد د زغم په وخت کې ډېره آغيزه لري. ما د تلقين په قوت کولی شول تر ربړونې لاندې تر يوې مودې اصلاً درد احساس نکړم. کله چې ربړونه غزيدله زړه به مې غوښتل کاش چې ربړونه نوره بس کړي خو دغې غوښتنې سره مې په ځان کې د ضعف احساس نه کاوه. پوهيدم دغه ټول دردونه پای لري. «بالاخره مرګ را رسيږي. خو اراده مې بايد تر هغه وخت پورې ټينګه وساتم» دا هغه څه وه چې هميشه مې ځانته تلقين کاوه. همدا وجه وه چې د ربړونو په ټوله موده کې د خبرو کولو يا نه کولو موضوع اصلاً ما ته مطرح نشوه. بايد ووايم چې ما او ملګري بهروز په تير ژوند کې له بيلو بيلو لارو د تلقين ځواک په ځان کې پياوړی کاوه.

۹ - د نورو مبارزينو د مقاومت يادونه چې په زړه‌ورتوب سره يې د دښمن په وړاندې درلود: د نړۍ والې مبارزو تاريخ دا ډول زياتې حيرانوونکې حماسې درلودلې دي. د ايران د مبارزو تاريخ هم چې په ځانګړې توګه له پخوا نه ډېر غني شويدی، دغه امکان په لاس راکوي چې د رښتينې مبارزينو له ټينګ مقاومت څخه لا ډېر ځواک تر لاسه کړو.

ښکاره ده کوم موارد چې پورته ياد شول د يوې مثبتې انګيزې تر عنوان لاندې په مقاومت کولو کې حساب شويدي، کيدای شي چې په خپل منفي شکل کې د يوې منفي انګيزې په بڼه هم وځليږي. مثلاً په کافي اندازه ډښمن څخه کرکه نه درلودل، جريانونو ته لحظه اي کتل او هغوی ته د يو تاريخي جريان په سترکه نه کتل، په دښمن باور کول، هغوی سره د ښه چلند درلودل، په خپلې ارادې پوره ايمان نه درلودل او دغه ډول نور مسائل کولی شي د مبارز د روحيې په ماتولو کې د لاملونو

په بنه ښکاره شي.

سربیره پر دې باید په پام کې ولرو، څوک چې د خپل مبارزاتي ژوند په بهیر کې خپلو ضعفونو سره په بشپړ صداقت مبارزه ونکړي او خپل ځان همیشه تر غوچ انتقاد لاندې ونه نیسي، د خپلو ضعفونو او د تیر وخت د کوچنۍ بورژوازي ځان غوښــتنې څخه تیر نشي، حتی مبارزې سره د مینې او ایمان په درلودلو بیا هم ډیره ستونمنزه ده چې د ربړونو په وړاندې مقاومت وکړاي شي.

هغه څوک چې ځان په درواغو عادت کړي، په انقلابي صداقت ځان ســره چلند ونکړي او حتی خپل ځانته هم درواغ ووایې، تر زنداني کیدو وروسته یې د خیانت امکان زیات دی. کیدای شي درواغ د خیانت سرچینه وپیژنو.

# دښمن ته وينا!

ای امپریالیستانو او ای پردیو پورې تړل شوو پانګه والو، ای د نړۍ د خلکو د سر او مال داړه مارانو!

ای هیواد پلورونکیه خاینه پاچا، د امریکا او اسراییلو لاس په نامه نوکره!

ای خوارو او سپکو جیره خوړونکو مزدورانو!

تاسو ای دښمنانو!

پوهیږم چې د دغې لیکنې له متن څخه خبریږئ، د همدې لپاره غواړم هغه څه چې په زړه کې یې احساسوم په ژبه راوړم. غواړم په ډېر قاطعیت سره تاسې جنایتکارانو ته ووایم چې: دا ځل له پخوا څخه په لا زیاتې کرکې او کینې، د غچ اخیستلو په قوي احساس، د خپلو شهید شوو ملګرو د وینې غچ او د هغه خلکو د وینو غچ چې په شخړو کې یې تویه وئ او بیا یې د انقلابیونو غاړې ته اچوئ، هغه زیارکښو خلکو سره چې همدا اوس ورسره له پخوا څخه لا ډېره ژوره مینه، د نه شلیدونکی ټینګ پیوند احساس کوم، تر هغې چې پخوا وم په رڼو سترګو، زیات پوهاوي او شوروشوق په ټینګ هوډ تاسو سره په جنګ راپورته شوې یم.

پوهیږم هیله‌من یاست چې ما بیا ونیسئ، خو په غوڅه تاسو ته وایم چې دغه هیله به ځان سره ګور ته یوسئ، خو تاسو څخه دغه پوښتنه کوم: که فرض محال همداسې وشي، څه به وکولای شئ؟ هغه کوچنی کار چې ستاسو له لاسه پوره ده په هغې به وکولای شئ په انقلاب یوه کوچنی ضربه وارد کړئ؟ څه کار به وکولای شئ؟ آیا تر ربړونې لاندې مې نیسئ؟ په ګولیو مې وژنئ؟ آیا تر وژلو پورته هم څه شته؟ پخپله هم ښه پوهیږی چې د خلکو فدایانو لپاره د خلکو د آزادي په لار کې وژل کیدل څومره لویه نیکمرغي او ویاړ دی او تاسې اوس له دغه ټولو هلو ځلو سره زموږ په وژلو زموږ هیلې سرته رسوئ.

هوکې د خلکو د آزادي په لار کې له مرګ څخه بله لوړه نیکمرغي هیڅ وجود نلري. زه هم لکه

د نورو جنګیالیو ملګرو په شان د خلکو د فدايي چريکانو د يو غړي په توګه ستاسو د رژيم ساتونکو د نابودي لپاره په فعاله مبارزه کې برخه اخلم. ای جنايتکاره لوټمارانو، تر وروستی سلګۍ او د وينې تر آخري څاڅکي د خپل ارمان په لار کې، د خلکو د آزادي په لار کې وسله په لاس مبارزه کوم.

مورږ ته له مرګ څخه ويره نشته. که مرګ مزدورانو سره په مخامخ جګړه کې وي، که مرګ تر ربړونې لاندې. بيا مخکې تر هغه چې وسله د يو جنګيالي له لاسه په مځکه ولويږي، نور جنګيالي د هغې د پورته کولو لپاره مخې ته راځي. بيا نور ډير غوربونه زموږ جګړه ايزې چيغې اوري. نور نو زموږ لاره يواځينی لاره ده چې د خلکو د بريالیتوب تر عنوان لاندې تثبيت شويده، هغه سيلاب چې کوچنيو جريانونو څخه په لاره روان شوی ورځ تر بلې په قوت او عظمت مخ په وړاندې ځي او خنډونه له منځه وړي. ای دښمنانو! دا نه يوازې د يو تاريخي واقعيت په توګه د تاريخ په اوږدو کې په اثبات رسيدلی دی، بلکه ستاسې د خپل نظر له مخې هم دا يو حتمې خبره ده. همدا اوس د غورځنګ په ټکولو کې ستاسې بی وسي او ماتې له چريکانو او د خلکو د مخکښو سرتيرو سره په مخامخ جګړه کې په ډاګه ليدل کيږي.

ای دښمنانو! شونې ده څو نورې ورځې هم خپلو جنايتونو او لوټماريو ته دوام ورکړئ خو خپل ټاکلي برخليک څخه تښتيدلی نشئ او دا موږ يو چې تاسې به په اوږدې او سختې جګړې کې له پښو غورځوو!

**که څوک له موږ څخه په مځکه ولويږي**
**په لسګونو نور کسان را پاڅيږي**
**زموږ مرګ هر مرګ ندی**
**او زموږ شتون هر شتون ندی**

# د پنځم څپرکي توضیحات

۱ – عاطفه جعفري: د خلکو د فدایي چریکانو د سازمان غړې چې د ۵۰ کال د مهر میاشت کې ونیول شوه، په ۵۱ کال کې محاکمه او په پنځه کالو بند محکومه شوه.

۲ – سیروس نهاوندي: د ایران د خلکو د آزادیبخش سازمان د مرکزیت غړی چې په ایران کې یې د ښاري چریکانو لمړني عملیاتو ته سازمان ورکړ (د ایران او انګلیس د بانک مصادره او د امریکا د سفیر د برمته کولو په موخه د هغه په موټر حمله ) د ۵۰ کال د آذر په میاشت کې ونیول شو او د ۵۱ کال د مهر میاشت کې زندان څخه وتښتیده.

له زندان څخه د سیروس نهاوندي تیښته حقیقت نلري، په واقعیت کې یوه ساختګي تیښته وه. د دغې موضوع طرح په هغه بڼه چې پورته توضیح شوې او همدارنګه چې د ځلورم څپرکي په څلورمه ګڼې کې راغلې، په تآسف سره له هغه خپرونو څخه سرچینه اخیستې چې ساواک د نورو انقلابي مبارزینو د نیولو لپاره د خائن سیروس نهاوندي په واسطه دام غوړولی وه. واقعیت دادی سیروس نهاوندي چې په بهر کې د حزب توده انقلابي سازمان غړی وه، ایران ته تر ستنیدو وروسته خپلو دوستانو سره «د ایران د خلکو آزادیبخش سازمان» بنسټ کیښود. هغه وروسته تر بندي کیدلو خیانت وکړ له ساواک سره یې په مرسته لاس پورې کړ. له دې کبله زندان څخه آزاد شو. دا ځل یې د انقلابي ځوانانو په دام کې د غورځولو لپاره په اصطلاح یاد شوی سازمان له سره جوړ کړ. ساواک هم دغه شایعه په لار واچوله چې ګویا سیروس د زندان روغتون څخه تښتیدلی ده. خائن سیروس په هماغه کلونو کې پدې بریالی شو چې یو شمیر جنګي او هلکان د ساواک په دام کې واچوي.

۳ – سیمین او فاطمه نهاوندي: دواړه د ایران د خلکو د آزادی بخښونکي سازمان غړي دي. سیمین نهاوندي په لس کلونو بند محکومه شویده.

۴ – ناهید جلال زاده: د ایران د مجاهدینو خلکو د سازمان سمپاته وه چې د ۵۱ کال د اردیبهشت په میاشت کې د شهید مهدي رضایې سره په اړیکه درلودلو کې ونیول شوه او په درې کالو بند محکومه شوهس.

۵ – منوچهر نهاوندي: د ایران د خلکو د ازاد بخښونکي سازمان له غړو څخه وه چې د ۵۲ کال په دوبي کې د خپلو محاکماتو په لړکې لمړی په اعدام او بیا په عمري بند محکومه شوه.


امیرپرویز پویان


مسعود احمدزاده


بهروز دهقانی


سعید سلطان‌پور


مرضیه اسکویی


صمد بهرنگی


بیژن جزنی


روحی آهنگران


پوران یداللهی


پریدخت (غزال) آیتی





مهرنوش ابراهیمی


حمید اشرف


روح انگیز دهقانی


علی اکبر صفایی فراهانی

د«محسن خپرندویه» له لوري په پښتو ژبه د مقاومت حماسي کتاب
چاپ کولو ته په درنښت سره، د افغانستان له مبارزو او انقلابي
ځواکونو هم مننوویه یم چې تل یې د خلق فدائي چریکانو څخه ملاتړ
کړی او ددې کرښو لیکونکې ته یې تل مینه او پیروزینه ورکړی ده.
خوشاله‌یم هغه ستونزې چې پښتو ژبې ته ددې کتاب ژباړې لپاره ګالل
شوی وې نن ددې کتاب په چاپ سره هغه ثمر ته رسیږي. له دې پلوه
هیله‌منه یم چې پښتانه پوه او مبارز وګړي هم د خپلو نورو هیوادوالو په
څیر ددې کتاب له مخې د ایران مبارزاتي تاریخ او مبارزو او په بندخونو
کې د ربړونکو پر وړاندې د انقلابیانو مقاومت په اړه پوه شي.

اشرف دهقاني




ژباړونکی او خپرونکی:
**محسن خپرندویه**
mohsinpubs.blogspot.com